بسم الله الرحمن الرحيم

په پښتو ژبه کښې اولنی او په افغاني تاریخ کښې بې ساری په
زرګونو جدیدو مسئلو باندې مشتمل

# تفسیر ایوبي حنفي

شپاړسم ټوک ۱۶

اِلَيۡهِ يُرَدُّ ﴿۲۵﴾ ❁❁ حٰمٓ ﴿۲۶﴾


تالیف او تصنیف

د علامة العصر ابو الفضل شیخ التفسیر والحدیث فقیه دوران مفسر الزمان

## حضرت مولانا محمد عبید الله الایوبي

الکندهاري السلیمانخیلي الحنفي النقشبندي حفظه الله تعالی



مکتبة القراٰة والتجوید

کاسي روډ شالدره کوټه

# د کتاب پېژندنه

د کتاب نوم .............. تفسير ايوبي پښتو شپاړسم ټوک
مفسر ............ الحاج مولنا محمد عبيد الله الايوبي الکندهاري
السليمانخيلي الحنفي حفظه الله تعالى بفضله الوهبي
کمپوزر .............. حبيب الحق حقاني
ټايپ .............. حقاني کمپيوټر اداره
نشر کوونکې اداره .......... مکتبة القراءت و التجويد کاسي روډ کوټه
د چاپ ځای .............. لاهور پاکستان

# يو نظر دې خوا

هيڅ يو مسلمان هم په قرآن مجيد، احاديثو يا د فقهي په کتابو کې په قصده سره غلطي نه کوي، زموږ اداره تر خپله وسه پورې د کتابو تر ليکلو وروسته تصحيح ته زياته پاملرنه کوي، چې له دې کبله زموږ کتابونه معياري دي، خو بيا هم بنده بنده دی، يو نه يو ځای څه ناڅه غلطي په املاء کې يا په يوه جمله کې ځنې صادره سي، نو زموږ د ټولو ناظرينو څخه دا خواست دی چې که ستاسي تر نظر داسي غلطي تېره سي لطفاً زموږ سره تماس ونيسئ، تر څو د کتاب د دوهم وار په چاپ کې د هغې تېروتنې اصلاح وسي.

په درناوي ستاسي ورور شمس الحق شمس

بسم الله الرحمن الرحيم




الطبعة الاولى

١٤٣٢ هجري - ٢٠١١ ميلادي

**مكتبة القراءة و التجويد**

شارع كانسي كوئته - باكستان
رقم الجوال ٠٣٠٠٣٨٨٥٥٣٥

MAKTABTUL-QIRRAT
WALTAJWEED
KANSI ROAD QUETTA
BALOCHISTAN

ISBN 2-7451-3140-0





الحمد لله الذي انزل القرآن، ليكون هداية للانس والجان، والصلوة والسلام على رسوله محمد النبي الامي الذي هدانا سبل الرشد والايمان.

وبعد: دا يو ځلاند حقيقت دى چي د ټولو علومو سرچينه قرآن مجيد دى، او ټوله مروجه علوم طالبان د قرآن مجيد په اسرارو او حكمتونو باندي د پوهېدلو لپاره وايي، لكه چي شاعر وايي:

جميع العلم في القرآن لكن
تقاصر عنه افهام الرجال

الله تعالى لره دي حمد وي چي دا دى ستاسو د مستجابو دعاګانو په وجه د قرآن مجيد پنځه ويشتمه پاره "اليه يرد" او شپږويشتمه پاره "حم" له چاپه څخه راووتل.

او حضرت ايوبي مدظله العالي هم الحمد لله د تفسير وكار ته خپل ټوله وختونه وقف كړي دي، او نور ټوله مصروفيتونه او مشاغل يې ورته پرې ايښي دي، خو څرنګه چي حضرت ايوبي په هفته كښي څو مره ليكي. سمدستي يې موږ هم ورسره ليكو او

چاپ ته یې چمتو کوو

## دا تفسیر ایوبي ولې ځنډېږي؟

او دا حقیقت هم ستاسي په وړاندي ایږدو، چي حضرت ایوبي چي څرنګه څه لیک وکړي سمدستي یې موږ په کمپیوټر باندي لیکو، داسي نه ده چي حضرت ایوبي مدظله العالي ټوله تفسیر لیکلی دی او موږ یې په کرار کرار چاپوو، بلکې څرنګه چي دده لخوا تفسیر پوره کېږي فوراً یې وچاپ ته اماده کوو، خو ددې ټولو کارونو تر شا ستاسي دعاګانې هم دي، که چېري حضرت ایوبي د نوي کالو په عمر کښي لیکل کوي او بالکل د صحت او جوړتیا په حالت کښي دی، او همدارنګه موږ ته الله تعالی د لیکلو او چاپولو توفیق راکوي، نو دا ستاسي همکاري ده چي له دعاګانو څخه مو نه هېر وئ.

او الحمد لله مکتبه القرائت والتجوید په دې ویاړي چي د قرآن مجید ودې ستر خدمت ته یې ملا تړلې ده او د تجوید د کتابونو سره سره یې د علم تفسیر، علم فقه او علم عقائد کتابونه هم چاپ ته سپارلي دي.

ستاسي د دعاؤ په هیله

والسلام

قاري فضل الحق حقاني

باني مکتبة القرائت والتجوید

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله رب العلمين الرحمن الرحيم ملك يوم الدين اياک نعبد و اياک نستعين، اى في العبادة عبادة التفسير القرآن الكريم (٢٥) جزء، ٩ بجې د جمعې شپه، ۶ من شهر ربيع الاول من سنة (١۴٣٢ھ) وأساله الله عزوجل تفسيره على وجه السداد مع توفيق رب العباد بالصحة والسلام وكمال المحبة والصلوة والسلام على سيد البرية وآله وصحبه البررة، واحفظني من الآفات المانعة من هذه الخدمة العالية واسأل الله عزوجل القبول عنده عنده العلماء والطلباء والعوام من قوم افغان وعليه التكلان واجعله لوجه الكريم بدون الشرك الخفي من الرياء والسمعة اللهم منک و اياک تبارکت وتعالى.

الهى عبدک العاصي اتاکا ........مقر بالذنوب وقد دعاکا

فان ترحم فانت لذالک اهل ....... وان تطرد فمن ترحم سواکا

دا باران چې پر همهٔ مځکو اوري ....... مشرفه یې کړې ذات د کېميا ولي

إِلَيْهِ يُرَدُّ عِلْمُ السَّاعَةِ

اى علم قيامت يعني متى هي.

**فائده:** فيجب على كل مؤمن حين سئل عن وقت قيامها ان يقول الله اعلم بها ولهذا قدم اليه على عامله اعني يرد لافادة القصر الحقيقي يعني د قيامة الساعة په وخت نه نبي مرسل په خبر دى او نه ملک مقرب، فعلينا معشر المؤمنين التصديق والاعتقاد والايمان بوقوعها ونقول وقت قيامها اى بتعينها ليس الينا.

وَمَا تَخْرُجُ مِنْ ثَمَرَٰتٍ مِّنْ أَكْمَامِهَا وَمَا تَحْمِلُ مِنْ أُنثَىٰ وَلَا تَضَعُ إِلَّا بِعِلْمِهِ

د خپل پوسو څخه کم ده کم ده.

**پوهه:** چې کلمه د ما الاول نافيه ده او کلمه د من اولى مزيدة لاستغراق النفي، او ثمرات لفظًا مجرور دى لکن په محل کې د رفع دى او دا احتمال هم سته چې کلمه د ما دي موصوله وي معطوف پر ساعة، والتقدير اليه يرد علم ما تخرج من الثمرات آه، بخلاف قوله تعالى: وما تحمل من انثى فانها نافية (ولا تضع) اى الانثى و وكلمة لا زائدة البته لورود الاستثناء بعده الا بعلمه اى متعرفًا بعلمه، والمراد انه كما لا يعلم الساعة الا الله كذالک ما تخرج من الثمرات وما تحمل

الاشئ الا هو، فالاستثناء مفرغ ويتوجه اليه الافعال الثلثة على سبيل التنازع اعمل الاول وقدر في الاخرين، وقال الآلوسي رحمه الله الاستثناء من اعم الاحوال اى ما يحدث شيئ من خروج ثمرة ولا حمل حامل ولا وضع واضع ملابسًا ومصاحبًا بعلمه المحيط سبحانه، واقعًا على تعلق علمه وارادته به.

**سوال:** تخرج چي مؤنث فعل دی او مسند دی و ما ته نو د تانيث د فعل وجه څه ده؟

**جواب:** تانيث يې په اعتبار د معنى د ما دی لابمعنى السمرة.

وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ أَيْنَ شُرَكَائِي

هغه ورځ چي نداء وکړي خدای و کفارو ته چي چېري دي شريکان زما په معبوديت کي؟.

**فائده:** دا نداء او نسبت د شرکاء خدای ﷻ و ځان ته وکړی بناء پر زعم ددوی دی لکه په هغه آيت کي چي تصريح په سوې ده کريمه "اين شرکائی الذين تزعمون"

**پوه سه:** چي يوم منصوب په اذکر مقدر سره دی کما هو المتعارف.

**فائده:** ددې پوښتني د خدای عزوجل مطلب تهکم او توبيخ ددوی دی او مجمع عام رسوايي ده ددوی او پر منظر عام اقرار ددوی پر خپل خطا في الدنيا.

قَالُوا آذَنَّاكَ مَا مِنَّا مِنْ شَهِيدٍ ﴿٤٧﴾

مشرکينو وويل موږ خبر کړو تا ای خدايه اوس چي نسته هيڅ څوک د موږ څخه چي شاهدي دي ورکړي بتانو ته په شراکت د معبود بالحق سره په معبوديت يعني دوی بېزاره سي له بتانو څخه چي عذاب د خدای ﷻ ووينې، او يا معنى د آيت داده چي ما منا من احد چي دوی يعني بتان دي ويني لانهم دوی غائب دي.

وَضَلَّ عَنْهُمْ مَا كَانُوا يَدْعُونَ مِنْ قَبْلُ وَظَنُّوا مَا لَهُمْ مِنْ مَحِيصٍ ﴿٤٨﴾

يعني لاينفعهم او غاب عنهم ولايرون (ما کانوا يدعون) ای يعبدون (من قبل) ذالک في الدنيا.

**پوه سه:** چي په علم نحو کي وايي چي قبل چي مضاف اليه يې حذف سي (يعني ذالک) په عوض کي د هغه مضاف اليه دی مبني پر ضمه کرځي، او هم دا سبب دی چي سره د دخوله د من جاره قبل مضموم دی وهذه القاعدة جارية في جميع

القرآن بل في جميع لسان العرب فاحفظها تنفعک في مواضع شتی.

**درویش وایي:** چي ظن دلته په معنی د یقین دی او ددوی یقین سو چي نسته دوی لره ځای د تېښتي له عذاب څخه د خدای ﷻ، وبالفارسیة یقین دانند که از عقاب الهی نیست ایشان را هیچ گریز گاه.

**فائده:** عاقل لره په کار ده چي هرب او فرار و خدای ﷻ ته وکړي کما قال ففروا الی الله چي فرار و خدای ته وکړئ زړه به یې ارام سي او خدای ﷻ به یې انیس سي، قانون: والانیس لایخاف قهر الانیس او هو عل الملاطفة معه علی کل حال.

**حکایت:** ذو النون المصري قدس سره وایي چي موږ یو وخت په یوه کښتۍ کي سپاره وُ او زموږ سره یو ځوان صبیح الوجه چي ښه روښان مخ یې وُ، نو صاحب د کښتۍ وویل چي یوه همیانی چي په هغې کي نقود وه ورکه ده او د سپرو خلکو تلاشي یې شروع کړه د هر راکب تلاشي یې کوله، نو چي نوبت د تلاشي هغه ځوان صبیح الوجه ته ورسېدی چي تلاشي یې وکړي نو ځوان وغورځېدی له کښتۍ څخه پر څپو د دریاب کښېنستی څپه داسي ورته وګرځېدله لکه سرېر، ذو النون رح وایي چي موږ له کښتۍ څخه ورته کتل ځوان وویل یا مولای ان هؤلاء اتهمون، زه یې متهم کړی یم په غلا سره واني اقسم علیک یا حبیب قلبي چي امر کړه هره دابه بحري چي دلته موجوده وه ماهیان وغیرها چي سرونه دي راوباسي له اوبو څخه او په خولو کي دې جواهرات د دریاب وي، دي چي دا خبره لا نه وه پوره کړې چي له دریابه ماهیانو سرونه راپورته کړه چي په خوله کي د هر یوه دریابي غمی یا ملغلره وه چي برېښېدل، وروسته ځوان له څپې څخه دریاب ته وغورځېدی او په خیال و ناز پر اوبو د دریاب روان سو حتی غاب عنا چي زموږ څخه غائب سو، و یقول ایاک نعبد وایاک نستعین، ذو النون مصري رح وایي چي زه د دغه ځوان قصې باعثه کړم پر سیاحت، ذونون رح وایي چي زما په یاد سو ددې ځوان له حالاتو څخه قول د نبي کریم ﷺ لایزات في امتي، همېشه به زما په مجموع امت کي دېرش (۳۰) کسه وي چي قلوبهم علی قلب ابراهیم خلیل الرحمن (یعني دومره قوي زړونه به یې وي لکه د ابراهیم خلیل الرحمن چي نمرود چي دده لاسونه ورتړلي وه اور ته یې وغورځاوه او اورته نا رسیده جبرئیل ورته راغلی او ورته وه یې ویل هل لک من حاجة؟

ابراهیم علیه السلام ورته وویل اما الیک فلا، تا ته خو مي حاجت نسته جبرئیل ورته وویل چي خدای جل جلاله ته خواست وکړه چي له دې اوره نجات درکړي، ابراهیم علیه السلام وویل حسبه من سؤالي علمه بحالي، کافي ما لره د سوال څخه علم د خدای زما په حال سره، نو خدای جلت قدرته وعست رحمته اور ته خطاب وکړی یا نار کوني بردًا وسلامًا علی ابراهیم الی اخیر قصة ابراهیم علیه السلام، او علیه الصلوة والسلام زیاته کړه چي هر وخت چي یو له دې دېرشو کسانو څخه وفات سي بدل الله مکانه آخر.

**درویش وایي:** چي دغو دېرشو کسانو ته ابدال وایي، نو له دې حکایت څخه معلومه سوه چي هغه ځوان ته د کښتی خدای جل جلاله په نظر د لطف کتلي وه چي له قهره د دریاب نه بېرېدی او دریاب ورته مسخر ؤ.

لَا يَسْـَٔمُ الْاِنْسَانُ مِنْ دُعَآءِ الْخَيْرِ

نه ستړی کېږي انسان له دعاء څخه د خیر یعني مال او غنٰی او صحت وعافیت (مراد له دې انسان څخه کافر دی لدلالة مابعده علیه)

وَاِنْ مَّسَّهُ الشَّرُّ فَيَـُٔوْسٌ قَنُوْطٌ ﴿۴۹﴾

او که ده ته ورسېږي شر لکه فقر او مرض (فیؤس) ای فهو یؤس (حذف د مبتداء فقیر اشاره وکړه تا چي جمله سي او جزاء د ان شرطي وګرځي) او معنی د یؤس نا امیده له رحمت څخه د خدای جل جلاله (قنوط) د قنوط معنی مبالغ په قطع کي د امید له فضل څخه د خدای جل جلاله.

**درویش وایي:** چي دمخه فقیر وویل چي له انسان څخه کافر مراد دی له دې سببه چي مؤمن خو دعاء د خیر کوي او چي خیر ور ورسېږي شکریې وایي او که مسئ ور ورسېدی له فضل څخه د خدای جل جلاله او له رحمت څخه د خدای نا امیده نه ګرځي بلکې په ډېر نیاز او عجز او په کمال امید دفع د شر د خدای جل جلاله څخه غواړي.

وَلَئِنْ اَذَقْنٰهُ رَحْمَةً مِّنَّا مِنْ بَعْدِ ضَرَّآءَ مَسَّتْهُ لَيَقُوْلَنَّ هٰذَا لِيْ

**پوه سه:** چي کلمه د لام جواب د قسم محذوف ده او کلمه د ان شرطیه ده، والمعنی که مو ور ورسوو هغه انسان کافر ته رحمت یعني صحت، مال او عافیت زموږ د خوا وروسته تر هغه ضراء چي دی یې مسه کړی ؤ (لیقولن هذا لي) دا جمله جواب د قسم

ده لفظًا او جواب د شرط ده معنًى وغرضه چي دا مال او عافيت زما حق دی ولي چي په ما کي فضل او عمل سته يعني د تجارت په لار و چار و ښه پوهېږم او دوا ګاني د ناجوړيو ښه را معلومي دي، او يا معنى د آيت داده هذا بي دائمًا لايزول.

وَمَآ اَظُنُّ السَّاعَةَ قَآئِمَةً

او زما ګمان نه کېږي چي قيامت يعني بعث بعد الموت دي قائم او راسي، قالوا من يحيى العظام وهي رميم.

وَّلَئِنْ رُّجِعْتُ اِلٰى رَبِّيْٓ اِنَّ لِيْ عِنْدَهٗ لَلْحُسْنٰى

او که فرضًا زه راجع کړه سوم ورب ته زما يعني بعث بعد الموت قائم سو او زه هم را ژوندی سوم، په تحقيق د هغه سره به ماله وي حالت ښه من المال والجاه والجلال کما في الدنيا ولي چي دده عقيده داده چي ما ته چي مال او منال او جاه وجلال راکړه سوی دی په دنيا کي دا کرامت زما پر خدای ﷻ دی او دا کرامت به په قيامت کي هم پاته وي، خدای ﷻ ددوی په جواب کي وايي:

فَلَنُنَبِّئَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِمَا عَمِلُوْا وَلَنُذِيْقَنَّهُمْ مِّنْ عَذَابٍ غَلِيْظٍ ۝

جواب د قسم محذوف دی او فاء سببيه ده، يعني والله هر آئينه به موږ خبر کړو هغه کسان چي کفر يې کاوه په دنيا کي، ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي د عملوا ترجمه داسي ده چي موږ به دوی ته جزاء ورکړو په سبب د ما عملوا ای في الدنيا من الكفر والمعاصي، او هر آئينه به په دوی وڅکو يعني وبه رسوو دوی ته له هغه عذاب څخه چي ډېر به سخت وي يعني عذاب د جهنم.

وَاِذَآ اَنْعَمْنَا عَلَى الْاِنْسَانِ اَعْرَضَ وَنَاٰ بِجَانِبِهٖ

او هغه وخت چي موږ احسان وکړو يعني په نعمت سره لکه مال او صحت وغيرهما پر کافر، نو دی اعراض کوي له شکر څخه د هغه نعمت (وَنَاٰ بِجَانِبِهٖ) النای ثنی الجانب، په پښتو بغل وپېچي، يعني تباعد عنه تعالى بکلية لفرط غفلته.

وَاِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ فَذُوْ دُعَآءٍ عَرِيْضٍ ۝

او چي دی يعني کافر مسه کړي يعني ده ته ورسېږي (لفظ د مس چي پر ادنى

سوء کوي اشاره ورته ده چي يو ادنى سوء و کافر ته ورسيږي) نو دى اوږده دعاء په دفع کي د سوء کوي که فقر وي او که ناجوړي وي الى غير ذالک.

**سوال:** دعاء خو جسم نه دى چي عرض يا طول ولري؟

**ځواب:** هو! لکن دا لفظ مستعار دى مماله عرض وسيع من الاجسام لکثرة الدعاء والعرب يستعمل العرض والطول في الکثرة يقال فلان اطال في الکلام والدعاء واعرض، فلاني سړي ډيري اوږدي خبري وکړې او ډېره اوږده دعاء يې وکړه واعرض او ډيري پسروري خبري يا دعاء يې وکړه اى کثير، وانما قال عريض ولم يقل طويل ولي چي عريض ابلغ دى تر طويل، ولي طول الاشياء ډېر دي والعرض اقله والعمق اقل من کليهما يعني في العرف فاذا کان عرضه کثير فالطول بالطريق الاولى کثير دى قال الله تعالى في صفت الجنة عرضها السمٰوٰت.

**پوښتنه:** د مخه يې داسي وويل په حال کي د کافر "اذا مسه السوء فيؤس قنوط" او دلته يې دا وويل "فذو دعاء عريض"؟

**جواب:** دواړه آيته په کافرانو کي دي، والمعنى اذا مسهم الشر دعوا مخلصين له الدين (وهذا معنى د ذو دعاء عريض) بيا چي په اجابت کي د دعاء تاخير وويني يئسوا ويقطعوا بخلاف المؤمنين الصادقين فانهم لا يقنطوا ويرون في تاخير الاجابة حکمة الله عزوجل، او پر مؤمن چي انعام وکړل سي د خداى ﷻ له خوا څخه شکر وايي ولانا'بجانبه، او بل د اصل سوال دا دى يعني د دفع د تعارض يؤس قنوط بالقلب للنظر الى کفره ومعاصيه و ذو دعاء عريض باللسان بالنظر الى کثرة رحمته تعالى، او بل جواب د وقنوط من الاصنام و ذو دعاء عريض من الله، او هغه جواب چي بعض مفسرينو راوړى دى چي اول آيت يعني فيؤس قنوط په کافرانو کي دى او دوهم آيت يعني ذو دعاء عريض په مؤمنانو عاصيانو کي دى انتهى. فليس بشيئ لانه خروج من سوق الکلام لان الآيات ههنا في بيان حال الکفرة کما لايخفى.

**فائده:** وفي الحديث الصحيح من احب ان يستجاب دعائه في الشدة (که د چا خوښه وي چي زما دعاء دي په حال کي د شدت لکه مرض او فقر وغير ذالک قبول سي) فليکثر الدعاء في الرخاء، نو دي ډېره دعاء کوي په حال کي د رخاء يعني لکه صحت او غنٰى وغير ذالک.

قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِن كَانَ مِنْ عِندِ ٱللَّهِ

و وایه یا محمد (ﷺ) و کفارو ته د مکې چې تاسي خبر را کړئ (مجموع ارئیتم په عربي ژبه کي په معنی د اخبروني دی بالاتفاق) که چېري وي قرآن له جانبه څخه د خدای.

**فائده:** ان شرطیه چي لپاره د شک دی رایې وړی او اذا یې نه راوړی نظرًا انکارهم کون القرآن من عند الله ولیس الشک راجعًا الیه ﷺ فافهم.

ثُمَّ كَفَرْتُم بِهِۦ مَنْ أَضَلُّ مِمَّنْ هُوَ فِى شِقَاقٍۭ بَعِيدٍ ۝

وروسته تاسي کفر و کړئ په قرآن سره یعني چي من عند الله نه دی بلکې مفتری د محمد (ﷺ) دی، نو څوک ډېر گمراه دی تر هغه چا چي په اختلاف بعید کي وي له حق څخه.

**فائده:** دا آیت متصل دی په هغه قول پوري د خدای ﷻ "قل هو للذین آمنوا هدًی وشفاء".

**سوال:** مناسب ضمیر نه ؤ یعني من اضل منکم، نو د اسم ظاهر د راوړلو څه حکمت دی؟

**جواب:** حکمت یې دا دی چي موصول په ممن کي په ځای کي د ضمیر راوړی لپاره د بیان د حال د دوی چي دوی په شقاق بعید کي دي له حق څخه وتعلیلاً وعلت بیانول دي چي په دوی مزید ضلال سته، لان ترجمة الآیة یعني حاصلها ان القرآن من عند الله کان حقًا بلاشبهة وبعد ذالک کان الکفر به شقاقًا بعیدًا من الحق وانتم مع ذالک کفرتم به فلا اضل منکم.

سَنُرِيهِمْ ءَايَٰتِنَا فِى ٱلْءَافَاقِ وَفِىٓ أَنفُسِهِمْ

ژر دی چي موږ به و وینوو په دوی آیات د قدرت خپل په اطرافو کي د دوی یعني اهل مکه. ابن عباس رضي الله عنهما وایي یعني منازل الامم الخالیة (یعني کورونه او ښارونه د پخوا امتو چي هلاک سوي بالاستیصال او دوی یعني کفار مکه هغه منازل مهلکه وینې په اسفارو کي د دوی شام ته لکه دیار د ثمودیانو او وطنونه د قوم لوط.

"وَفِىٓ أَنفُسِهِمْ" عطف علی في الافاق باعادة حرف الجر یعني في الاستقلال کواحد منها یعني یوم بدر چي سره د کثرت د عدد د مشرکانو د مکې چي تخمینًا

(۱۰۰۰) کسه ته بالغ وه او ټوله هم مسلح وه او علیه الصلوة والسلام سره د مؤمنانو فقط (۳۱۳) کسه وه او سلاح یې هم نهایته محدوده وه، بیا این همه له کافرانو څخه اوویا (۷۰) کسه ووژل سول او اوویا یې په بند کي د مسلمانانو بندیان سول او هغه نور وتښتېدل، نو دا ټوله واقعه له آثارو څخه د قدرت د خدای وه، او بعض مفسرین وایي چي له في انفسهم څخه مراد بلایا او امراض دي، او مجاهد او السدي وایي چي مراد له آیاتو افاقیه ؤ څخه فتح د دقری ؤ ده علی محمد ﷺ والمؤمنون وفي انفسهم فتح د مکې ده او عطاء او ابن زید وایي چي آیات في الآفاق مراد څني اقطار السمٰوات والارض دي من الشمس والقمر والنجوم والنبات والاشجار والانهار او ایات في انفسهم من لطیف الصنعة وبدیع الحکمة، او بیضاوي وایي چي مراد له آیات في الآفاق څخه ما اخبرهم النبي ﷺ من الحوادث الآتیة واثار النوازل الماضیة وما یسر الله ولخلفائه من الفتوح والظهور علی ممالک الشرق والغرب علی وجه خارق للعادة، وفي انفسهم ماظهر فیما بین اهل مکة وما حل بهم کفتح مکة او یا ما في بدن الانسان من عجائب النعمة الدالة علی کمال القدرة.

**درویش وایي:** چي علامه بغداد السید محمود الآلوسيؒ د بیضاوي و تفسیر ته نژدې تفسیر کړی دی، او علامه البرسويؒ هم تر تفسیر د بیضاوي او د آلوسيؒ طویل تفسیر کړی دی چي یې هم پکښي داخل کړی دی، نو زه هم وایم والله اعلم.

حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَهُمْ اَنَّهُ الْحَقُّ

حتی چي ښکاره به سي دوی ته چي قرآن حق من عند الله دی او رسول د ده محمد ﷺ مبعوث من عند الله دی، او یا معنی داده چي توحید مؤید من عند الله دی او دین حق دی او شرک باطل دی عنقریب.

اَوَلَمْ يَكْفِ بِرَبِّكَ اَنَّهٗ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ ۝

کلمه د باء زائده ده او "ربک" مرفوع محلاً دی که څه هم په سبب د دخول د باء مجرور دی لکن حقیقةً فاعل د کفٰی دی.

**قانون:** زیادت د باء نه راځي مګر د کفٰی سره یعني د فاعل شرط د کفٰی.

**پوه سه:** چي "انه آه" بدل دی د فاعل څخه د کفٰی والمعنی اولم یکف ان ربک علی کل شیئ شهید، او استفهام لپاره د انکار دی او کلمه د واو لپاره د عطف ده پر محذوف کما مر مرارًا في هذا التفسیر، تقدیره اتشک یا محمد (ﷺ) في عاقبة امرک ولم یکف انه تعالی علی کل شیئ شهید، نو هغه خدای به اظهار د معجزاتو چي وعده یې کړې ده د تا سره کما حقق سائر الاشیاء الموعودة او یا معنی د آیت داده چي خدای عالم په حال ستا او د کفارو د مکې دی، یا معنی د آیت داده چي آیا نه منع کېږي انسان له معاصیو څخه او ده لره کافي نه ده چي دی منع کړي له ګنهو څخه هغه دا چي خدای مطلع دی پر هر شي ولا یخفٰی علیه خافیة نو بیا به جزاء ورکړي، او مقاتل وایي او لم یکف بربک شاهدًا علی ان القرآن من الله وشهادته علی ذالک جعله معجزًا، وقیل غیر ذالک.

أَلَآ إِنَّهُمْ فِى مِرْيَةٍ مِّن لِّقَآءِ رَبِّهِمْ ۗ أَلَآ إِنَّهُۥ بِكُلِّ شَىْءٍ مُّحِيطٌۢ ﴿٥٤﴾

آګاه اوسئ چي دوی یعني کفار مکة په شک کي دي بلکې په انکار کي دي له ملاقات څخه د خدای ددوی (یعني بالبعث بعد الموت والجزاء ای العذاب علی الکفر والثواب علی الشکر) آګاه اوسه چي خدای پر هر شي احاطه کړې ده یعني من حیث العلم اجمالاً وتفصیلاً او من حیث القدرة التامة لایفوته شیئ منها.

**درویش وایي:** چي تفسیر د سورة فصلت د تفسیر ایوبي پر شپږم تاریخ د ربیع الاول په وخت کي د مازدیګر د ورځي د یکشنبې پای ته ورسېدی (۱۴۳۲) من الهجرة النبویة علی صاحبها الصلوة والسلام والتحیة وعلی آله واصحابه البررة الکملة والحمد لله علی توفیقه لهذا العبد الضعیف لتفسیر کلامه المجید وصلی الله تعالی علی خیر خلقه محمد وآله وصحبه اجمعین.

مصرع: من نیز حاضر میشوم تفسیر قرآن دربغل

وما توفیقي الا بالله علیه توکلت والیه انیب الله منک والیک تبارکت ربنا وتعالیت لا ملجأ ولا المنجأ الا الیک.

سُوْرَةُ الشُّوْرٰى مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ ثَلٰثٌ وَّخَمْسُوْنَ اٰيَةً وَّخَمْسُ رُكُوْعَاتٍ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

حٰمٓ ﴿١﴾ عٓسٓقٓ ﴿٢﴾

**پوښتنه:** بغوي وايي چي د حسن بن الفضل څخه چا پوښتنه وکړه چي ولي يې حٰمٓ عٓسٓقٓ دوه ځايه کړي، او كٓهٰيٰعٓصٓ چي پنځه حروفه دي دوه ځايه يې نه کړي؟

هغه په جواب کي ورته وويل چي دا سورت له هغو سورتونو څخه دی چي په سر کي يې حٰمٓ دی نو يې هغسي راوړی لکه نور حواميم سورتونه يعني چي يوازي حم پکښې وي په اول کي، او بل جواب يې دا و وايه چي په دې سورت کي حم مبتداء ده او عسق يې خبر دی ځکه حم عسق دوه آيته بلل سوي دي، ولي چي مبتداء او خبر خو يو ځای نه ليکل کېږي بخلاف کهيعص هغه يو آيت ګڼل سوی دی. او بعض داسي جواب ورکوي چي اهل تأويل په کهيعص اختلاف نه لري چي دا حروف دي د تهجي وي وكذا في اخوانه مثل المص لا غير التهجي بخلاف حم عسق فانهم اختلفوا فيه قال بعضهم حم د حروفو څخه نه دی او دوی يې فعل بولي معناه حم ای قضی ماهو كائن بلکې عکرمة له ابن عباس څخه داسي روايت کړی دی چي قوله حٰمٓ عٓسٓقٓ که د حروف تهجي څخه نه دی بلکې (ح) حلم ته د خدای اشاره ده او (م) مجد د خدای دی او (ع) علم د خدای دی او (س) سنا يعني بلندي د خدای ده او (ق) قدرت د خدای دی، اقسم الله بها ای بحلمه ومجده وبعلمه وسنائه وقدرته، دغه رنګه له ابن عباس ﷺ څخه روايت دی ما من نبي صاحب كتاب الا وحيت حٰمٓ عٓسٓقٓ.

**پوښتنه:** د مخه تېره سوه چي حم مبتداء ده او عسق يې خبر دی نو د حمل يې څه معنٰی ده؟

**ځواب:** حم په معنی د هذه السورة عسق دی يعني نوم يې عسق دی.

**درويش وايي:** چي جواب د مبتداء او خبر ضعيف دی جدًا.

**فائده:** سورة الشوری روح المعاني، روح البيان، مظهري، بيضاوي او نور ګڼ شمېر مفسرين يې مکيه بولي من غير استثناء، لکن په بحر العلوم کي وايي هي مكية الا اربع آيات من قوله تعالى لا اسئلكم اجرًا الا المودة في القربى الى

اخیر اربع آیات فانها مدنیة، وقال مقاتل" چي په دې سورة کي مدني دی دا قول د خدای ﷻ ذالک الذي یبشر الله عباده الی الصدور، او بعض مفسرانو دا آیت هم استثناء کړی دی ام یقولون افتراه الخ، جلال الدین السیوطي" وایي دلالت کوي چي دا آیت هم مدني دی ما اخرجه الطبراني والحاکم في سبب نزولها انها نزلت في الانصار، او دا آیت هم مدني ګڼل سوی دی "ولو بسط الله الرزق العباده الخ" فانها نزلت في اصحاب صفة او دا آیت هم بعضو مدني ګرځولی دی "الذین اذا اصابهم آه" حکاه ابن الفرس.

**پوښتنه:** دومره ډېر مستثنیات چي لري نو ولي روح المعاني، روح البیان، مظهري، بیضاوي او نور ګڼ شمېر مفسران یې یوازي مکي بولي؟

جواب: اطلاق د مکي پر دغه سورت په اعتبار د اغلب اجزاؤ دی.

كَذٰلِكَ يُوحِيٓ إِلَيۡكَ وَإِلَى ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكَ ٱللَّهُ ٱلۡعَزِيزُ ٱلۡحَكِيمُ ۝٣

ای مثل ما في هذه السورة من المعاني او یا معنی داده چي مثل ایحاء د دې سورت خدای" اوحی الله الیک والی الرسل من قبلک.

**سوال:** وحي و من قبل الرسول ﷺ ته خو ماضي وه، نو مضارع یې ولي راوړه؟

**ځواب:** لپاره د احضار د حالت ماضیه او بل لپاره د تنبیه پر دې چي ایحاء د خدای ﷻ عادت مستمره دی (نو مضارع لپاره د استمرار ده)

**فائده:** د عزیز معنی غالب ده فیما اراده لایمنعه مانع عن فعل مایریده، او د حکم معنی معبب في حکمه ولا یصدر عنه عبث.

لَهُۥ مَا فِي ٱلسَّمٰوٰتِ وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِۖ وَهُوَ ٱلۡعَلِيُّ ٱلۡعَظِيمُ ۝٤

**پوه سه:** چي جمله صفت ده الله بتقدیر الذي یعني الذي له آه خدای لره دي ملګا وخلقًا وعبیدًا هغه شیان چي په اسمانو کي دي من ذوی العقول کالملائکة او غیر ذوی العقول کالشمس والقمر والکواکب وغیرها مما لایعلمه الا الله (دا تعمیم بناء پر دې دی چي کلمه د ما عامه ده دواړو فریقینو ته شامله ده وهو الاصح) او هغه شیان چي په مځکه کي دي من ذوی العقول کالانس والجن اوغیرهم من الحیوانات الماکولة وغیرها من الجبال والانهار والدفائن والخزائن

من الجواهرات والذهب والفضة وغيرها مما لايعلمها الا الله عالم الغيب. او خدای ؒ علٰی او بلند دی په قدرت پر خپل العظيم حكمته.

## تَكَادُ السَّمٰوٰتُ يَتَفَطَّرْنَ

يو قرائت يې په ياء هم راغلی دی يعني يكاد لان الفاعل وهو السمٰوات مؤنث غير حقيقي يجوز فيه التذكير والتانيث كما حقق في النحو "يتفطرون" والمعنى قريب ده چي اسمانونه سره وچوي، قتادهؒ وايي من عظمة الله جلاله جل شانه. او بل جماعت د مفسرينو وايي منهم الحاكم وصححه عن ابن عباسؓ انه قال تكاد السمٰوات يتفطرون ای من ثقلها لكنها لم يتفطرون بقدرة الله تعالىٰ وقيل چي له سبب څخه د ترک د مشركانو او يا د سبب څخه د نسبت د ولد و خدای ﷻ ته لكه نصارى چي وايي عيسى ابن الله كما في سورة مريم لقد جئتم شيئًا اِدًّا ان دعوا للرحمن ولدًا تكاد السمٰوات يتفطرون، وقيل يتفطرون من كثرة الملائكة كما روى ابن مردوية عن انسؓ والذي نفس محمد بيده ما فيها ای والسمٰوات موضع بشر الا فيه جبهة ملک ساجد يسبح الله بحمده، وروى البغويؒ بلفظ ما فيها موضع قدم الا وعليه ملک قائم او راكع او ساجد.

## مِنْ فَوْقِهِنَّ

كلمة من للابتداء يعني ابتداد انفطار به يې له لوړي څخه د اسمانو كيږي.

**پوښتنه:** جهة فوق يې ولي په انفطار سره خاص كړی؟

**ځواب:** لوی والی د عظمة د خدای او د جلال د ده د لوړي خوا څخه دی من العرش والكرسي او صفوف د ملكو چي تسبيح او تحميد او تهليل وايي حول العرش هم ده لوړي خوا څخه دی، فالمناسب ان يكون ابتداء التفطر للسموات من تلک الجهة الفوقانية، يعني اول به لوړ اسمان كښته راولوېږي ثم وثم الى ان ينتهى الى اسفلها فيطفر الاسفل على الارض فلا يبقىٰ سماء الاسقت على الاخرى كما في قوله تعالى في سورة مريم "تكاد السموات يتفطرون منه وتنشق الارض وتخر الجبال هدًا ان دعوا للرحمن ولدًا" نو دا آيت دلالت پر دې كوي چي تفطة ده من تحزن به ضرور او په طريق اولى كيږي، ولي چي دغه كلمه محال ده چي رحمن

لره ولد سته خو د مخکي والو څخه صادره سوې ده نو چي دغي کلمه شعساء پر لوړو اسمانو تاثير وکړي نو پر کښته به په طريق اولي تاثير کوي.

**درويش وايي**: چي علماء د تفسير د قرآن عزيز وايي چي د قرآن مبارک ايتونه على الاكثر تفسر بعضها بعضًا دي، نو چي په سورت مريم کي لکه عنقريب چي ذکر سو چي انفطار د اسمانو له سببه څخه د نسبت د ولد و خداى ﷻ ته دي چي عيسى ابن الله يې باله نو په دې اوسني آيت کي چي عنقريب ذکر سو يعني تكاد السموات يتفطرون د فقير په شخصي رايه سره هم هغه تفسير د سورة مريم اولى بالقبول دى،، مصرع: وللناس فيما يعشقون مذاهب.

وَالْمَلٰٓئِكَةُ يُسَبِّحُوْنَ

او ملکي دده تنزيه وايي عما يقول الظالمون من نسبة الولد اليه تعالى شانه وبل عن كل ما لايليق بشانه تعالى خاضعين لما يرون (اى يعلمون) من عظمة الله "بحمده) اى ملابسين بحمده تعالى يعني سبحان الله وبحمده لپاره د شكر د انعامامو د خداى ﷻ پر دوى.

بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَيَسْتَغْفِرُوْنَ لِمَنْ فِى الْاَرْضِ ؕ

او طلب د مغفرت کوي د هغه چا لپاره چي په مځکه کي وي (اى المؤمنين په سبب د اخوة په ايمان کي)

اَلَآ اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ۝

آگاه اوسه چي خداى غفور بخښونکى د ګنهو د بندګانو بالتوبة جزمًا و بلا توبة ان شاء او خداى پاک مهربان دى پر بنده ګانو باندي چي مهلت ورکوي او ژر عذاب نه پر نازلوي خصوصًا امت د نبي الرحمة ﷺ

بيت:.. صبا سے ميں ہم غريبوں کا سلام کہنا.... نہيں ہے کوئی بجز تمہاری بس ميرا التجاپيام کہنا

**فائده**: جمله د "وستغفرون" حال ده له فاعل څخه د يسبحون.

وَالَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَآءَ اللّٰهُ حَفِيْظٌ عَلَيْهِمْ ۖ

او هغه کسانو چي اخستي يې دي ما سوى د خداى څخه شرکاء او انداد (که

بتـاني وي او کـه ملکـي دي) حفیظ یعني رقیب او ساتندوی او خبر دی ددوی په احوالو او عمالو، نو هغه حالات او اعمال ددوی د خدای ﷻ سره محفوظ دي فیجازیهم في الدنیا والآخرة.

وَمَآ اَنۡتَ عَلَیۡهِمۡ بِوَکِیۡلٍ ۝

او ته نه یې یا محمد پر دوی باندي وکیل چي ته به دوی و هدایت او اسلام ته رسوې، یعني ما علیک الا البلاغ المبین وقد فعلت فلا تحزن بعدم ایمانهم.

وَکَذٰلِکَ اَوۡحَیۡنَآ اِلَیۡکَ قُرۡاٰنًا عَرَبِیًّا

**پوه سه**: چي کذالک اشاره ده مصدریة ته یوحی او قرآنا چي عربیًا یې صفت دی منصوب دی مفعول به د اوحینا دی، او یا کذا اشاره ده معنی ته د آیت متقدمه فانه مکرر في القرآن في مواضع نو کاف یې مفعول به او قرآنا عربیًا یې حال دی، حسین کاشفي ؒ سلیس ترجمه این آیت نمود ومیگوید همچنانکه وحي کرده ایم هر پیغمبر را قرآنیکه بلغت قوم او و وحي کردیم بتو قرآني بلغت عرب که قوم تو اند تا که ایشان فهم کنند انتهی.

لِّتُنۡذِرَ اُمَّ الۡقُرٰی وَمَنۡ حَوۡلَهَا

ای اهلها چي مراد ځني مکې وال دي، ولي اکثر عرب د مکې شخه وتلي دي.

**فائده**: مکه مکرمه یې ام القری وبلل تشریفًا لها واجلالاً. ولي د مکې په بنار کي بیت الله المکرم ومقام ابراهیم ؑ موجود دی، او بل په دې سبب چي په حدیث شریف کي راغلي دي چي ځمکه تولې لاندي تر مکې مکرمې خدای ﷻ غوړولې ده، نو محل د نورو قریو مکې ته لکه محل د لونو دی و مور ته.

"وَمَنۡ حَوۡلَهَا" چي شاوخوا د مکې چي نور عرب دي.

ترجمه: ددې لپاره مي قرآن عربي تا ته یا محمد وحي کړی تا چي ته وبېروې په دغه کتاب عربي سره اهل د مکې او شاوخوا د مکې چي نور عرب دي (تا چي دوی ټول ستا سره په اعلاء کي د کلمة الله مرسته وکړي) او یا مراد قرې د ټولي ځمکي دي مشرقها ومغربها جنوبها وشمالها. کما جاء في الحدیث الصحیح کما رواه

الطبراني بسند صحيح عن السائب بن يزيد قال رسول الله ﷺ (۱) فضلت على الانبياء بخمس (ماته تفضيل راکړل سوی دی پر نورو انبياؤ په پنځه شيانو) بعثت الى الناس كافة (زه استول سوی يم و ټولو خلکو ته بخلاف سائر الانبياء فانهم مخصوص بقوم لکه موسیٰ و عیسیٰ علیهما السلام الى بني اسرائيل فقط لا العرب مثلاً) (۲) و ذخرت شفاعتي لامتي (ما ذخيره کړې شفاعت خپل د خپل امت لپاره يعني في يوم القيامة) (۳) ونصرت بالرعب شهرًا امامي وشهرًا خلفي (زما سره کومک کړل سوی دی يعني د خدای ﷻ له جانبه څخه چې زما څخه بېرېږي يعني کافران يوه مياشت مسافت د مخ د خوا او يوه مياشت مسافه د شا د خوا.

**سوال:** که کفار له ده څخه بېرېدلای نو بدر، احد او احزاب ته ولې دده د جنګ لپاره راتله؟

**ځواب:** جنګ خو منافي له بېري سره نه دی، ژوندی مثال يې د افغانستان جنګ دی بې چاره بې سلاح يو محدود نفر طالبان د دين اسلام د ساتنې لپاره د امريکا او ناټو د عسکرو سره جنګېږي، سره ددې چې امريکايان او ناټو په بمبار طيارو پر دوی بمباری کوي او نوري درنې وسلې پر دوی استعمالوي.

(۴) وجعلت لي الارض مسجدًا وطهورًا (او ماته ګرځول سوې ده مځکه مسجد (يعني د لمانځه ځای، يعني هر ځای د مځکې چې وخت د لمانځه راغلی هو، زه کولای سم چې لمونځ وکړم بخلاف اهل الاديان الاخر چې د هغو لمونځونه مخصوص په کنائسو او مبيع سره ددوی وه او بل دا چې زما لپاره مځکه چې او به نه وي ځای د طهارت ده يعني بالتيمم عند عدم الماء او په نورو امتو کې تيمم لپاره د لمانځه يا نور لکه مسح المصحف روا نه ؤ.

(۵) واحلت لي الغنائم ولم يحل لاحد من قبلي (او ماته روا سوي دي يعني د خدای ﷻ له خوا څخه غنيمتونه او د غنيمت اخذ و هيڅ چا ته د نورو امتونه ؤ روا (بلکې د نورو امتو قانون شرعي دا ؤ چې غنيمتونه به يې جمع کړه که به په غنيمتو کې چا غلا نه وه کړې د اسمان له خوا څخه به اور راغلی ټول غنيمتونه به يې وسوځل. او که به په غنيمتو کې غلا سوې وای نو اور خو به راغلی د اسمان له خوا څخه لکن غنيمتونه به يې نه سوځل، دا علامه د نه قبول وه بيا به نبي د هر امت

چي به ؤ د خلګو سره به یې قومًا قومًا بیعت کاوه د هر سړي لاس چي به د نبي له لاسه نه جلا کېدی هغه غل ؤ، نو هغه غله چي به غلا کړی شی راوړی وای او پر غنیمتو یې ایښی وای وروسته به اور سوځل) او مسلم په کتاب صحیح کي او ترمذي له ابی هریرة رضي الله عنه څخه داسي روایت کړی دی چي علیه الصلوة والسلام وویل: فضلت علی الانبیاء بست، په شپږو شیانو، او شپږم یې دا روړی دی وختم بی النبیون او ختم کړل سوي دي په ما سره انبیاء یعني تر ورځي د قیامت بل نبي نسي راتلای (ځکه یو لقب د رسول الله ﷺ خاتم الانبیاء دی).

وَتُنْذِرَ يَوْمَ الْجَمْعِ لَا رَيْبَ فِيْهِ

او چي ته وبېروې (یعني اهل مکه ومن حولها (دا مفعول به د تنذر دی) حذف کړل سوی دی لپاره د تعمیم او تهویل) له یوم الجمع څخه مراد قیامت دی، وجه التسمیة لانه یجمع فیه الخلائق من الاولین والآخرین واهل السموات والارض او عمل کونکی سره د عملو.

**پوه سه:** چي یوم ظرف نه دی بلکې کلمه د باء ورسره محذوفه ده ای بیوم الجمع کما في قوله تعالی لتنذر یوم التلاق، في سورة حم ای بیوم التلاق.

"لَا رَيْبَ فِيْهِ" کلمه د لا لپاره د نفي جنس ده یعني هیڅ شک نسته په وقوع کي د یوم الجمع.

**پوښتنه:** د یوم الجمع څخه مراد ورځ د قیامت ده، منکران یې تر حد تېر دي فضلاً عن الشاکین نو د نفي الجنس څه توجیه ده؟

**ځواب:** قرآن مبارک خو داسي وایي چي هیڅ شک په راتلو کي د یوم الجمع نسته دا نفي خو صحیح دي یعني چي نظر صحیح ولري نو خو باید په دې یې یقین سي چي په دنیا کي خو عاملین د ایمان او طاعت سته او عاملین د کفر او معصیت سته، د دې دوو ډلو تر منځ امتیاز ضروري دی بالثواب للفریق الاول والعقاب للفریق الثاني، په دنیا کي خو امتیاز کلي نه دی سوی فلا بد من الدار الآخرة یمتاز الفریقین فیه او انکارًا یا شک د منکرانو خو ددوی په زړو کي، ولنعم ماقیل: الشمس شمس وان لم یرها عین الضریر (یعني پر لمریې سترګي بر ښني)

والعسل عسل وان لم يجد طعمه فاه المرير (چي خوله يې ترخه يعني صفراوي وي) حاصل د جواب دادی چي تاوان او شک په يوم الجمع کي چي قرآن په ناطق دی نسته، تاوان د منکرانو په زړو کي دی.

فَرِيقٌ فِي الْجَنَّةِ وَفَرِيقٌ فِي السَّعِيرِ ۝

يوه ډله د مجموع دوو ډلو څخه به په جنت کي وي او يوه د مجموع دوو ډلو څخه به په اور کي وي.

**پوه سه:** چي پر مجموع لفظ د جمع دال دی.

**درويش وايي:** چي بعد جمعهم في الموقف لانهم يجمعون اولاً في الموقف ثم يفرقون فريق منهم يعني المؤمنين في الجنة وفريق وهم الكافرون في السعير، فيحصل الامتياز الكلي بين قسمى المجموع الكلي فافهم.

**سوال:** فريق خو په دواړه ځايه کي مبتداء ده او في الجنة يا في السعير يې خبر دی نو د فريق چي نکره ده نکره ابتدائيه يې څرنګه صحيح کېږي؟

**ځواب:** دا نکره متخصصه ده په صفت سره چي منهم محذوف دی يعني فريق منهم په دواړه ځايه کي ويدل على المحذوف بانى الكلام يعني المجموع الذي دل عليه لفظ الجمع فتدبر.

وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَجَعَلَهُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً

که د خدای ارادہ وای ګرځولي به يې وای دوی يعنې دغه امت چي دوې فرقې سو امت يو، قال ابن عباس پر يوه دين واحد چي دين د اسلام دی كما جاء في اية اخرى ولو شاء الله لجمعهم على الهدى.

**پوه سه:** چي مراد له دې شرطيه څخه يعني ولو شاء الله آه مشيت تكويني دی يعني بدون اختيارهم لكن چونكه بنده ګان خدای پاک و خپل اختيار ته سپارلي دي په دنيا کي چي ايمان مختاره کوي يا كفر لهذا امة واحدة نه وګرځېدل بلکې فريقين.

**درويش وايي:** چي شرطيه يې مصدر په لو امتناعي سره کړی دی لپاره چي داسي اراده خدای جل جلاله چي حکيم مطلق دی خلاف د حکمت څخه ده لان الايمان الاضطراري موجب د ثواب نه دی په اخرت کي او نه كفر اضطراري سبب د عذاب

دی، نو معنی د آیت داده که فرضًا خدای ﷻ یو د دغو دوو ارادو څخه کړې وای یعني ایمان الجمیع یا کفر الجمیع هغسي به سوي وای لکن چي داسي اراده یې نه وکړه له دې جهته څخه چي فائده د خلق الله الاختیار في عباده ظاهره سي یعني دخول د جنت به مربوط باختیارهم الایمان والطاعة في الدنیا و دخولهم النار به په سبب د کفر اختیاري ددوی په دنیا کي به مربوط سي فلا یبقی للکافرین موضع اعتذار في دخولهم النار.

وَّلٰكِنْ يُّدْخِلُ مَنْ يَّشَآءُ فِيْ رَحْمَتِهٖ

لکن خدای داخلوي چي ورته اراده یې یې په رحمت کي یعني الهدایة الی دین الاسلام باختیاره.

وَالظّٰلِمُوْنَ مَا لَهُمْ مِّنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ

او ظالمون یعني کافران په اختیار سره ددوی کفر بالاختیار نسته دوی لره په ورځ د اخرت کي نه دوست او نه مرسته کونکی چي دوی له عذاب څخه د اور خلاص کړي.

**فائده:** د ولي او نصیر تر منځ عموم او خصوص من وجه دی، کاهي د سړي ورور یا زوی چي دده د ورور یا پلار سره د چا جنګ وي هغه بل ورور یا زوی مرسته ورسره وکړي د ظالم دفع څني وکړي، وهذه مادة الاجتماع للولي والنصیر، او ګاهي پردی سړی د مظلوم پر پله ودرېږي او له ظالم څخه یې خلاص کړي، نو دلته دا بېګانه سړی نصیر دی او ولي نه دی، او ګاهي د یو سړي د زوی د یو چا سره جنګ سي پلار یې حاضر وي لکن ناجوړی یا سپین ږیری وي له زوی څخه ظالم نسي دفع کولای نو دا پلار ولي دی نصیر او کومک کونکی نه دی، نو کافرانو ته په قیامت کي نه ولي سته او نه کومکي چي دفع د عذاب له ده څخه وکړي.

**نکته:** په دې وروستني ډله کي چي کافران دي خدای داسي نه وویل ویدخل من یشاء في نقمته (ای عذابه) چي صریح مقابل به وای د یدخل من یشاء في رحمته اشاره ودې ته ده چي ادخال في العذاب سبب یې په خپله داخلان دي بسبب سوء اختیارهم الکفر في الدنیا لا من جهة الله تعالی فقط لکونه ح ظلمًا کما في

الادخال في الرحمة فانه من عنده تعالى چي مؤمن ته يې توفيق د هدايت او ايمان ورکړی چي موجب د ادخال في الجنة يې په خپل خدا داده اختيار سره مختار کړی بخلاف الکافر لانه صرف الاختيار الى الکفر چي موجب د اورؤ.

**سوال:** که خدای ﷻ کافر ته توفيق د موجب د جنت ورکړی وای خو هغه به هم ايمان راوی وای؟

**ځواب:** کافر خو خپل خدا داده اختيار و کفر ته مبذول کړی نو بيله اختياره دده هدايت په کافر پيدا کول امر تکويني دی، هغه د مخه مو بيان وکړی چي خدای داغسي نه کوي فتدبر غاية التدبير.

اَمِ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖۤ اَوْلِيَآءَۚ

آيا دوی يعني المشرکين مختار کړي ماسولی له خدای ﷻ څخه دوستان. دا جمله عطف ده پر والظالمون.

**پوه سه:** چي کلمه د ام منقطعه ده معنی يې بل ده، او همزه کلمه د بل لپاره د انتقال ده د ماقبل کلام څخه و مابعد ته او همزه لپاره د انکار دی د وقوع دد غه اتخاذ من دونه اولياء چي مراد ځني بتان او شيطانان دي ای لاينبغي ذالک يا معنی داده چي تتخذون اوليا نه دي.

فَاللّٰهُ هُوَ الْوَلِيُّ

خدای ﷻ فقط ولي دی کما يدل على قيد فقط چي فالله مبتداء ده او الولي يې خبر دی او هو ضمير فصل دی چي ضمير فصل په قول د نحاتو دلالت کوي پر حصر د خبر پر مبتداء يعني ههنا حصر الولي پر الله باندي.

**فائده:** دا جمله جواب د شرط محذوف ده گويا چي ابطال د ما اتخذوا اولياء يې وکړی ان ارادوا الولي في الحقيقة فالله هو الولي الذي يجب ان يتخذوه المولى ويعتقدون انه تعالى هو المولى لا ولي سواه يعني هو تعالى متولي الامور من الخير والشر والنفع والضرر لا الاصنام لانها لاتنفع لمن يعبدوها ولا تضر لمن ينکر عن عبادتها.

وَهُوَ يُحْيِ الْمَوْتٰى ۫ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝

خدای چي ژوندي کوي مړي یعني بالنفخة الثانیة، ثم ترقی من احیاء الموتی الی عموم قدرته تعالی علی کل شيئ اراده، یا دا جمله علت ده لقوله هو الولي یعني نشته په اسمانو او ځمکه کي داسي معبود چي مړي دي ژوندي کوي کما قال ابراهیمعليه السلام لنمرود ربی الذي یحیی ویمیت.

وَمَا اخْتَلَفْتُمْ فِيْهِ مِنْ شَيْءٍ فَحُكْمُهٗٓ اِلَى اللّٰهِ ؕ

او هغه شی چي ستاسي پکښي اختلاف وي ای خلکو یعني من الدین (لکه چي د مؤمنانو او کافرانو چي اختلاف دی هر یوه ډله وایي چي زموږ دین حق دی او د مقابلې ډلي دین باطل دي) ''فحکمه الی الله'' د مختلف فیه من الدین حکم مفوض دی و خدای ته چي خدای به فیصله کوي په ورځ کي د قیامت، نو تمیز به د محق د مبطل ځخه کوي یعني فریق في الجنة وهم المؤمنون وفریق في السعیر وهم الکافرون.

ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبِّيْ

یعني قل لهم یا محمد دغه څوک چي حکم کوي په مختلف فیه کي بین الناس من امر الدین الله وبس ''ربي'' چي زما خدای دی.

**فائده:** ربي یا بدل دی د لفظ الله ځخه یا عطف بیان دی د الله ځخه.

عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ ۖ وَاِلَيْهِ اُنِيْبُ ۝

''علیه توکلت'' پر هغه رب زما توکل دی په دفع کي د شر د اعداء الدین بل في الامور کلها، او ده رب ته زما رجوع په ټولو مشکلاتو کي (یعني د دنیا او د آخرت)

فَاطِرُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ جَعَلَ لَكُمْ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ اَزْوَاجًا

چي خالق دی د اسمانو او د ځمکي (دا خبر آخر د ذالکم او یا خبر د مبتداء محذوف دی ای هو فاطر آه) پیدا کړي یې دي هغه خدای ستاسي د نفع لپاره ستاسي له جنس ځخه چي هغه هم انسانان دي ماینې ستاسي، ولي پر خلاف الجنس باندي لکه انسان ماینه چي خره وي فوائد د ازدواج نه مرتبیږي من النسل واللبن وغیرهما.

وَمِنَ الْاَنْعَامِ اَزْوَاجًا

يعني جعل الانعام من الانعام ازواجًا ذكورو اناثًا متفقة في النوع مثلاً د اوښ زوج به اوښه وي وهكذا د غوايي دا به غوا وي وهكذا الضان والمعز.

يَذْرَؤُكُمْ فِيْهِ لَيْسَ كَمِثْلِهٖ شَيْءٌ

مشتق دى له زرؤ څخه چي معنا يې كثرة دى يعني په فوائد او تناسل سره به هر نوع انعام ډېرسي كما نراهم.

**بوه سه:** چي ضمير د كم مخاطبين او انعام دواړو ته راجع دى تغليبًا للمخاطبين على الانعام "فيه" يعني په تدبير الهي كي، او بعض مفسرين وايي چي في په معنى د باء ده فالمعنى يكثركم بالتزويج په انسانانو كي والانعام فرع لهم في ذالك.

**بوه سه:** چي لفظ د مثل زائد دى اى ليس هو كشيئ فادخل المثل التاكيد كما في قوله تعالى فان آمنوا بمثل ما آمنتم به وقيل الكاف زائدة اى ليس مثله شيئ يناسبه، قال ابن عباس‌رضي ليس له نظير، يعني كه مثل زائد كړې او كه كاف معنى يې ليس له نظير ده فافهم. اهل المعاني وايي چي كاف په معنى د مثل دى، فالتقدير ليس مثل مثله شيئ او دا كنايه د عدم المثل له تعالى، ولي چي كه خداىؒ لره مثل واى نو خو بې مثل لره هم مثل واى چي عين خداى ؤ، او بعض مفسرين وايي لكه په قول د يو سړي چي بل ته وايي مثلك لايفعل كذا بطريق المبالغة في نفي الفعل عنه فانه اذا نفي عمن يناسبه كان نفيه باطريق الاولى واذا كان ليس كمثله شيئ كناية لايشترط في الكناية امكان المعنى الحقيقي اى المثل له تعالى كما في قولهم فلان طويل النجاد كناية عن طول القامة وان لم يكن له نجاد اصلاً (يعني د توري بند) و نظيره بل يداه مبسوطتان كناية عن قوله تعالى جواد كريم مع استحالة الجارحة عليه تعالى اى اليد، وقيل معنى الآية داده چي مثل په معنى د صفت دى اى ليس كصفته صفت شيئ بحذف المضاف.

وَهُوَ السَّمِيْعُ الْبَصِيْرُ ⑪

او خداى عالم دى په ټولو مسموعاتو سره او عالم دى بما هو من جنس المبصرات.

لَهٗ مَقَالِيْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ

مظهري ؒ يې تفسير داسي كړى دى "اى لله تعالى خزائن الرزق في السموٰت والارض، قال الكلبي اى المطر والنبات انتهى.

**درويش وايي:** چي دا لفظي ترجمه د مقاليد نه ده بلكې حاصل د معنى دى، اصلي ترجمه يې ما نقله البرسوي عن الجواليقي في كتابه المعرب المقليد (يعني چي مقاليد يې جمع ده) المفتاح فارسي معرب بل لغت د مقليد اقليد دى، قال البرسوي وهي كناية عن الخزائن وقدرته تعالى عليها وحفظه لها ومثل ذالک قال الكاشفي ؒ كليدهاى اسمانها وزمينها يعني مفاتيح رزق چه خزائن آسمانها باران است و گنجينهٔ زمين نبات است انتهى، ابن عطاء ؒ وايي چي مقاليد الارزاق صحة التوكل عليه تعالى ومقاليد القلوب صحة المعرفة بالله ومقاليد العلوم الجوع انتهى.

يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ ۚ اِنَّهٗ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ⑫

فراخي كوي د رزق د هغه چا چي د خداى اراده ورته وسي (يعني امتحانًا لشكره) او تنگوي رزق (د من يشاء امتحانًا بصبره) په تحقيق خداى پر هر شي علم لري فيفعل ما ينبغي.

**درويش وايي:** چي په دې آيت سره دفع سو ما عسى ان يتوهم بعض الناس چي امتحان ته څه ضرورت دى د شكر او د صبر خداى ﷻ خو په ټولو حالاتو خبر دى.

حاصل الدفع يې دادى چي خداى ﷻ خو بېشكه په هر شي خبر دى لكن مناط د ثواب او د عقاب د دنيا امتحان دى بالشكر وعدمه والصبر وعدمه.

شَرَعَ لَكُمْ مِّنَ الدِّيْنِ مَا وَصّٰى بِهٖ نُوْحًا

مشروع كړى تاسي ته يا امة محمد (ﷺ) له دين څخه هغه دين دى چي وصيت كړى وُ په هغه دين يعني توحيد الله وغيره من العقائد الحقة التي لا اختلاف للرسل فيها و نوح عليه السلام ته.

**پوه سه:** چي نوح يې اول راوړى لانه اول من اتى بالشرائع الجديدة من الحلال والحرام.

وَّالَّذِيْٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ وَمَا وَصَّيْنَا بِهٖٓ اِبْرٰهِيْمَ وَمُوْسٰى وَعِيْسٰٓى

او هغه دين چي ما يې وحي كړي دي و تا ته ا هغه دين دى چي موږ وصيت كى دى په هغه دين سره ابراهيم، موسىٰ او عيسىٰ (عليهم السلام) ته.

**پوه سه:** چي حقيقت د وصيت او وحي يو دى، يو ځاى وحي ويل بل ځاى وصيت ويل تفتن في العبارة دى الذي هو من شعب البلاغة القرآن.

**پوه سه:** چي په دې ايت كي تنبيه پر دې ده چي اسلام دين قديم دى اجمع عليه الرسل چي مشاهير د رسولانو اوالوالعزم د دوى پر هغه دين متفق دي او هر يوه د دوى امر جدي كړى دى و خپل امت ته په هغه دين سره.

**پوښتنه:** تخصيص د مذكورين په ذكر سره د څه حكمت لپاره وكړى؟

**ځواب:** اشرنا اليه من قبل چي دغو مذكورينو علوشان درلودى او په تاريخ كي انبياوُ ډېر شهرت درلودى، او بل ځواب دادى چي د دې انبياوُ عليهم السلام په راوړلو كي رغبت كول دي د كفارو من المشركين واليهود والنصارى الى دين محمد ﷺ لكون دينه ﷺ دين انبيائهم لان هذه الفرق حتى المشركين كلهم متفقين على دين ابراهيم، كريمه (واجعل لي لسان صدق في الآخرين) حكاية عن قول ابراهيم عليه السلام وحاصل الآية چي دين د اسلام چي خداى جل جلاله مشروع كړځولى دى لپاره د امت د محمد ﷺ يو نوى كار نه دى بلكې دغه دين د ټولو انبياوُ دين دى فان الحق لايكون الا واحداً وما بعد الحق الا الضلال، او اهل كتاب يعني يهوديان او نصارى چي انكار كوي د دين څخه د محمد ﷺ صرف او صرف عناداً او تكبراً يې كوي.

**درويش وايي:** چي امام مظهري وايي چي دين (يعني ما مضىٰ شرع لكم في الدين) هو الايمان بالله وحده وبصفاته وبانبيائه وكتبه وملائكته والبعث بعد الموت وبكل ماجاء به الانبياء (يعني چي په امنت بالله وملائكته وكتبه ورسله واليوم الآخر والقدر خيره وشره من الله تعالى والبعث بعد الموت) سره جمع دي وروسته يې ويلي دي وهذا امر جامع للشرائع والمتفق عليها، وروسته يې سوال د نسخ د بعض احكام شرعيه ؤ راوړی دی چي دا نسخ اختلاف لره د اديانو مستلزم نه ده انتهى.

**درويش وايي:** چي مظهري چي د دين معنى بيان کړه او وروسته يې دا هم وويل وهذا امر جامع الخ نو خو ددې توهم ځای نه سو پاته چي څوک دي توهم وکړي چي نسخ د بعض فروعي احکامو به مستلزم اختلاف لره د اديانو حتى چي د دفع ته دي ضرورت وي لانه لمن يشک في ان اجتماع النقيضين وكذا ارتفاعهما محال.

اَنْ اَقِيْمُوا الدِّيْنَ وَلَا تَتَفَرَّقُوْا فِيْهِ

**پوه سه:** چي کلمه د ان مصدريه ده اى اقامة الدين والمصدر بدل دی د ما وصى څخه چي مفعول د شرع ؤ، يا مصدر خبر دی د مبتداء اى هو چي محذوف دی او راجع دی و ما وصى آه ته، اقامة الدين اى خذوا ما اتاكم الرسول بلا زيغ وانحراف وهذا معنى د اقيموا الدين ده.

"ولا تتفرقوا فيه" او تاسي تفرق او اختلاف مه کوئ په اصولو کي د دين باتباع الاراء او بالتعصب والعناد لکه امت د عليه الصلوة والسلام چي درواويا (۷۳) فرقې ګرځېدلي دي كما اخبر به المخبر الصادق ﷺ ستفترق امتي على (۷۳) الى اخير الحديث، دا افتراق په متابعت د اهوا او ارا دی، او يهودانو او نصارى چي ترک د ايمان بمحمد ﷺ وکړی صرف تعصب او عناد ؤ کما مر عنقريب، د علي ﷺ څخه روايت دی لا تتفرقوا فالجماعة (اى الاتفاق) رحمة، والفرقة عذاب، قال رسول الله ﷺ من فارق الجماعة شبرًا (يعني يوه لوېشت) فقد خلع ربقة الاسلام عن عنقه (ده وکښې وړغندی د اسلام له غاړي څخه) رواه احمد و ابو داوٗد عن ابى ذر ﷺ، وعن ابن عباس قال قال رسول الله ﷺ يد الله على الجماعة، رواه الترمذي وحسنه (اى حفظ الله نصرته على الجماعة).

**حکایت**: یو حکیم وصیت وکړی و اولاد ته خپل چي دی د مرګه سره مخامخ سو چي هغه زامن یې جماعت وه یعني ډېری وه هغو ته یې وویل چي ورسئ في نفر یوه لکړه راوړئ هغهٔ چي هغو لکړي راوړې حکیم ټولي سره جمع کړې زامنو ته یې وویل چي ماتي یې کړئ یوه نه سوې ماتولای، وروسته یې یوه یوه لکړه کړه هر زوی ته چي به یې ورکړه چي ماته یې کړه هغه به ماته کړه، نو حکیم زامنو ته وویل هکذا انتم بعدي لن تغلبوا ما اجتمعتم (زما وروسته به تاسي داسي یاست تاسي به د دښمن له خوا نه مغلوبه کېږئ تر هغه وخته چي تاسي په اتفاق یاست) واذا تفرقتم تمکن عدوکم (چي تاسي سره په اختلافسو است دښمن به قدرت پیدا کړي پر تاسي او ټوله به هلاک کړي) وعن معاذ بن جبلؓ قال قال رسول اللهﷺ ان الشیطان ذئب الانسان کذئب الغنم (یعني شیطان داسي لېوه دی د انسان لکه لېوه د مېږو او د پسو) چي لېوه د مېږو یا د پسو هغه پسه خوري چي د نورو پسو څخه جلا وي یا لېري وي یا په یوه ناحیه کي وي، ایاکم والشعاب وعلیکم بالجماعة والعامة (زه تاسي منع کوم له کښو څخه د غرو یعني د جماعت څخه د وتلو خلګو لکه روافض، خوارج، معتزله، کرامیه، شیعه، سلفیه، وهابیه چي د اهل السنة والجماعة د لوی ډلي څخه یې ځانونه ګوښه کړي وي او هوی نفساني یا د غرض نفساني په وجه جلا سوي وي، و علیکم پر تاسي لازمه ده پیروي د جماعت او د اکثریت د خلګو، رواه احمد، الحدیث المتفق ستفرق امتي (۷۳) فرقة کلهم في النار الا الناجیة، الحدیث.

كَبُرَ عَلَى الْمُشْرِكِينَ مَا تَدْعُوهُمْ إِلَيْهِ ۚ

ګران پرېوځي پر مشرکانو هغه دین چي ته دوی ورته رابولې چي دین محکم دی چي ناطق دی بالتوحید وترک عبادة الاصنام والبعث بعد الموت وغیر ذالک.

اللَّهُ يَجْتَبِي إِلَيْهِ مَن يَشَاءُ وَيَهْدِي إِلَيْهِ مَن يُنِيبُ ﴿١٣﴾

خدای مختاروي الی دینه او الی ما تدعوهم الیه او یا و خپل ځان ته. چي د خدای ورته اراده سي (خواه د هغه سړي ورته اراده وي او که نه وي په زړه کي یې داعیه د ایمان او اسلام ورپیدا کړي) او د حق لاري ښوونه ورته کوي چي خدای

ته رجوع وکړي یعني له خدایه طلب د توفیق د حق لاري و غوارِي، اهل التصوف وایي چي خدای پاک و ځان ته جلبوي بعض کسان بېله اختیاره هغه نو دې ډلي ته مراد الله وایي انبیاء ﷺ دي، ځکه چي نبوت موهبي دی کسبي نه دی، والصدیقون او هغه ډله چي اناب الی الله دي یعني رجوع و خدای ﷻ ته وکړي بالمعنی المذکور قریبًا او خدای ﷻ هد یت دې ډلي ته ورکړی دی، دې ډلي ته مریدون وایي یعني اختیار ددوی دخل پکښي کړی دی وهم الاولیاء الله الصالحون، وفي الحدیث القدسي ان تقرب العبد مني شبرًا (یوه لوېشت) تقربت الیه ذراعًا (یو گز) وان تقرب مني ذراعًا تقربت الیه باعًا (یوه غېږ) وان اتاني یمشي (که بنده عادي ماته را روان وي) آیتیته هرولة (په ځغاسته سره) والحاصل ان قرب الله تعالی من العبد ضعف قرب العبد منه.

**درویش وایي:** چي دا حدیث پر حقیقت نه دی محمول بلکي تمثیل دی له دې سببه چي قرب د خدای ﷻ و بنده ته ډېر دی تر قرب د بنده و خدای ﷻ ته، حاصل دادی چي بنده باید همېشه و رب عزوجل ته په طاعاتو ځان نژدې کوي او په عمل صالح سره یمحوا الله خطایاه، فان العبد اذا رجع عن السیئات واناب الی الله اصلح الله شانه، فقیر وایي داده معنی د ویهدي الیه من ینیب.

وَمَا تَفَرَّقُوْٓا اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًۢا بَيْنَهُمْ ؕ

عطف علی شرع قال ابن عباس ؓ یعني اهل الکتاب من الیهود والنصارٰی.

ترجمه: نه دي سره متفرق سوي اهل کتاب مگر وروسته تر دې چي دوی ته راغلی علم د کتب سماویه ؤ چي د مخه نازل سوي وه علم پر دوی چي دین د انبیاء ؑ د ټولو یو دی و ان اوحی الی محمد ﷺ هو الذي جاء به ابراهیم و موسٰی و عیسٰی ؑ، نو څه وجه ده اهل کتابو لره یعني یهود او نصارٰی چي پر محمد ﷺ باندي ایمان نه راوړي، ددې سببه خدای ﷻ په دې آیت کي بیان کړی دی "بغیًا بینهم" له جهته د عناد او تکبرًا علی محمد ﷺ، في القاموس بغی علیه یبغی بغیًا، علا (ځان یې لوړ باله) وظلم (او ظلم یې وکړی) وعدل (د حق لاري څخه یې عدول وکړی) یعني اهل کتاب ښه په دې پوهېدل چي محمد ﷺ د خدای رسول دی بدلالة المعجزات علیه او قرآن کتاب الله دی بدلالة اعجازه علیه، کریمه "ان کنتم في

ریب مما نزلنا علی عبدنا فأتوا بسورة آه" لکن مانع د منلو یې طلب د جاه و جلال او طلب د دنیا و طلب ملکها وسیاستها وحمیة الجاهلیة في المشرکین لا لان لهم شبهة في نبوته ﷺ وحقیة القرآن... بیت:

تکبر عزازیل راخوار کرد ........ بزندان لعنت گرفتار کرد

وهم ای المشرکین والیهود والنصاری مثله، نو دوی هم په زندان کي د لعنت لکه شیطان گرفتار دي.

وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّكَ إِلَىٰٓ أَجَلٍ مُّسَمًّى لَّقُضِيَ بَيْنَهُمْ

که نه وای یوه خبره چي خدای ﷻ د مخه په لوح محفوظ کي د مخه کړې ده یعني تاخیر عذاب المجرمین تر وعدې پورې چي هغه مدت معلوم دی چي په دار الجزاء قیامت کي مجرمینو ته عذاب ورکول کیږي "لقضی بینهم" فیصله به کړل سوې وای یعني د خدای ﷻ له خوا څخه په مابین کي د من آمن و من کفر یعني په دنیا کي چي کفار بې په استیصال سره (یعني یکلخته) له منځه وړي وای او مؤمنان به یې پر دوی مسلط کړي وای.

وَإِنَّ الَّذِينَ أُورِثُوا الْكِتَٰبَ مِنۢ بَعْدِهِمْ

او هغه کسان چي کتاب ورکول سوی دی یعني یهودان چي تورات یا نصاری چي انجیل و دوی ته په میراث ورپاته سوی دی وروسته تر انبیاء د دوی، او بعض مفسرین وایي بعد الامم الماضیة، او بعض مفسرین وایي چي مراد مشرکین د مکې دي او له کتاب څخه مراد قرآن مبارک دی او دهم ضمیر راجع دی و اهل کتابو ته.

لَفِي شَكٍّ مِّنْهُ مُرِيبٍ ﴿١٤﴾

دوی یعني اهل کتاب په شک کي دي د خپلو کتابو څخه یعني دوی علم نه پر لري، ولي چي په کتابو کي د زیادت او نقصان د دوی د علماؤ له خوا څخه لاس وهل سوی دی لاغراض فاسدة ولاجل حب الدنیا وحب حفظ ریاستهم علی العوام یا د مشرکانو شک دی په قرآن مجید کي، کریمه "لولا انزل هذا القرآن جملة واحدة" یعني لکه تورات او انجیل. کریمه "کذالک لیثبت به فؤادک الایة" (مریب) چي دوی یې په قلق او اضطراب کي اچولي دي.

فَلِذٰلِكَ فَادْعُ ۚ وَاسْتَقِمْ كَمَآ اُمِرْتَ ۚ وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَهُمْ ۚ

ای للتفرق من اهل الکتاب "فادع" ته دعوت ورکوه خلکو ته.

ته پر خپل دعوت ثابت قدم اوسه او متابعت مه کوه د خواهشات زائغه ؤ د اهل کتابو یا د مشرکانو د مکې، په صحیح حدیث کي راغلي دي "شیبتنی هود" (زه سپین ږیری کړم سورت هود و امثالها) چا ورته وویل ولي یا رسول الله؟ فقال لان فیها فاستقم کما امرت، او حقیقت استقامت امر عظیم شدید دی، لایستیقمها الا الانبیاء علیهم السلام، ولهذا خاطب في هذه الآیة رسول الله ﷺ بحسب استعداده الکامل في امر الله وقال هو لاجل ضعف استعداداتهم استقیموا ولن تحصوا ای لن یطیقوا یعني حقیقة الاستقامة التي امرت بها، حسین کاشفي په تفسیر حسیني کي وایي در تبیان اورده که ولید بن مغیره بآنحضرت ؑ گفت از دین و دعوت که داری رجوع کن تا من نصفی از اموال خود بتو دهم، و شیبه وعده کرد که اگر به دین پدران باز آیی دختر خود درعقد نکاح تو آرم، این آیت نازل شد که بر دعوت خود مقیم ودر ملت ودین خود مستقیم باش ولا تتبع اهوائهم الباطلة.

**فائده**: کلمه د فاء جواب د اما شرطیه محذوف ده تقدیره اما انت فادع الناس الی اقامة الدین واتباع ما اوتیت وعدم التفرق.

وَقُلْ اٰمَنْتُ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ مِنْ كِتٰبٍ ۚ وَاُمِرْتُ لِاَعْدِلَ بَيْنَكُمْ ۗ

او ته ووایه یا محمد ؑ ما ایمان راوړی دی په هغه سره چي خدای ؑ نازل کړي دي هر کتاب چي وي) یعني بجمیع الکتب المنزلة لا کما قالت الیهود والنصاری نؤمن ببعض الیهود بالتورات ونکفر ببعض الیهود بالانجیل والقرآن والنصاری نؤمن بالانجیل ونکفر بالتورات والقرآن یریدون ان یتخذوا بین ذالک سبیلاً.

"وامرت آه" زه امر سوی یم په عدل سره چي عدل وکړم په مابین کي په تبلیغ کي د شرائع یعني ټولو ته یې علی السواء ورسوم د چا مراعات ونه کړم او که څوک ما ته مخاصمه پیش کړي یعني که څه هم د مؤمن او د کافر پر یوه مځکه وغیره سره دعوه وي زه باید د مؤمن مراعات ونه کړم چي حق د کافر په جانب کي وي.

په حدیث شریف کي راغلي دي چي تقریبًا ټولو صحیح کتابو د احادیثو راوړی

دی یو وخت د یو مؤمن منافق او د یهودي په یوه شي کي سره خصومت ؤ او په واقع کي حق په جانب یهودي ؤ، نو یهودي و ظاهر الامر مسلمان ته وویل چي راځه چي فیصله ستاسي پر نبي وکړو، ولي یهودی په دې پوهېدی چي محمد رسول اللهﷺ حق وایي مراعات د چا نه کوي او رشوت هم نه اخلي، ظاهر الامر مسلمان ورته وویل چي راځه فیصله پر کعب بن الاشرف چي د یهودانو مشر ؤ وکړو، چي هغه به پر رشوت خوره ؤ، د دې حدیث مضمون په قرآن کریم کي بېله نو مانو اخستلو راغلی دی.

**اَللّٰهُ رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ ۖ لَنَآ اَعْمَالُنَا وَلَكُمْ اَعْمَالُكُمْ ۖ لَا حُجَّةَ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ ۖ**

الله تعالی زموږ رب دی او ستا هم لانه خالق الکل ومتولي امور الکل، موږ لره خپل عملونه دي او تاسي لره خپل یعني هر چا ته به د خپل عمل جزاء ورکول کېږي په ورځ کي د قیامت اما الجنة واما النار، هیڅ خصومت زموږ او ستاسي تر مابین نسته ستاسي عملونه موږ ته تاوان نه رسوي او زموږ عملونه تاسي ته تاوان نه رسوي، لاتذر وازرة وزر اخری بلکي زه تاسي رابولم و اسلام ته د نصیحت د لاري فلا وجه للخصومة.

**فائده**: دا آیت په مکه مکرمه کي نازل سوی دی قبل الامر بالقتال والمعادات، نو ایة د قتال دا ایت منسوخ کړی دی قال الله تعالی "یا ایها الذین آمنوا لاتتخذوا عدوی وعدوکم اولیاء الی قوله بدا بیننا وبینکم العداوة والبغضاء ابدًا حتی تؤمن بالله وحده.

**اَللّٰهُ يَجْمَعُ بَيْنَنَا ۚ وَاِلَيْهِ الْمَصِيْرُ ۝**

خدای به جمع کړي موږ تولو له یعني په ورځ کي د قیامت، هورې به خدای قضاوت وکړي په حق، او خدای ته دی رجوع د تولو.

**شان نزول**: ابن المنذرة د عکرمه څخه روایت کړی دی چي دا سورة چي نازل سو اذا جاء نصر الله والفتح (ای فتح مکة) ورئیت الناس یدخلون فی الدین الله افواجًا" مشرکانو د مکې و مسلمانانو ته چي په مکه کي د دوی سره موجود وه یعني د پسخنده "قد دخل الناس فی دین الله افواجًا فاخرجوا من بین اظهرنا" نو تاسي مسلمانان زموږ د مابین څخه ووځئ، کم تقیمون بین اظهرنا. تر څو به تاسي زموږ په مابین اوسېږئ.

**بوه سه**: چي لفظ د اظهر مقحم دی و الاصل بیننا فنزلت هذه الآیة.

## وَالَّذِينَ يُحَاجُّونَ فِي اللَّهِ

او هغه کسان چي بېي ځايه حجت وايي په خداى ؑکي، اى في دينه وقدرته، او قتادهؒ وايي چي مراد ځني يهود او نصارىٰ دي دوى به ويل كتابنا (زموږ كتاب يعني تورات او انجيل دمخه دي ستاسي تر كتاب يعني القرآن) ونبينا اى موسىٰ وعيسىٰ ؑ دمخه دي تر نبي ستاسي يعني محمد ﷺ فنحن خير منكم فهذه خصومة محضة.

## مِنْ بَعْدِ مَا اسْتُجِيبَ لَهُ حُجَّتُهُمْ دَاحِضَةٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ

يعني وروسته تر دې چي خلكو ته دعوت محمد ﷺ وركړى نو اسلام يې راوړى ودخلوا في دينه لظهور معجزته وحسن دعوته، نو ددوى دليل او خصومت باطل دى په نېز د خداىؑ (يعني چي دوى په تقدم ددوى د كتابو او د نبيانو ددوى دليل وايي كمامر)

## وَعَلَيْهِمْ غَضَبٌ وَلَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ ۝

او پر دوى غضب د خداى ﷻ دى چي ستاسي سره باطل دلائل وايي، او دوى لره دى عذاب سخت په سبب د كفر ددوى بعد ما وضح الله طريق الهدى يعني تكبرًا وعنادًا.

## اللَّهُ الَّذِي أَنْزَلَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ وَالْمِيزَانَ

الالف واللام للجنس چي شامل ټولو كتبو الهيه وُ ته دي (بالحق) متلبس په حق سره بعيدًا من الباطل (مراد له حق ځنې عقائد حقه او احكام شرعيه دي).

**پوه سه:** چي مراد لـه ميزان ځنې استعارةٌ ده، والمعنى المراد ءَالشرع الذي يوزن به الحقوق ويسوى بين الناس كالميزان العرفى (يعني ترازو) چي په هغه تلل كېږي حقوق واجبة بين الناس في البيع والشراء وغيرهما، او يا مراد انزال د نفس او تسويه دى، نو معنى داده چي په الهيه كتابو په عدل سره، نو تسميه ده په ميزان تسميه د مسمىٰ ده په اسم د اله فان الميزان العرفي آلة العدل.

**فائده:** د انزال ځنې مراد يا معنى حقيقي ده چي آدم ؑ ته نازل سوه ټوله آلات د صنائعو له اسمانه ځنې، يا مجازي معنىٰ ده اى انزل الامر به من السماء بواسطة الروح الامين.

وَمَا يُدْرِيْكَ لَعَلَّ السَّاعَةَ قَرِيْبٌ ﴿١٧﴾

**پوه سه:** چې قريب يې مذكر راوړی سره د تانيث د ساعة، اما لان القريب بمعنى ذات قرب يا ساعة په معنى د بعث بعد الموت دی، او يا د دې سببه چې ساعة مؤنث غير حقيقي دی وفي يجوز التذكير والتانيث.

**ترجمه:** ته څه شي خبر كړی يې شايد قيامت به نژدې وي، يعني فالتبع الكتاب واعمل بالشرع و واظب على العدل د مخه تر دې چې ناببره قيامت درباندې را نه سي او ميزان د عدل الهي قائم نسي، مقاتل" وايي چې عليه الصلوة والسلام د قيامت ذكر كاوه وعنده قوم من المشركين، نو هغو و عليه الصلوة والسلام ته وويل په لهجه د تكذيب متى الساعة؟ كله دی قيامت چې ته يې هر وخت موږ ته ذكر كوې او موږ څني داروې؟ فانزل الله تعالى هذه الآية.

يَسْتَعْجِلُ بِهَا الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِهَا ۚ

طلب د ژر راتګ كوي په ساعت هغه كسان چې دوی ايمان نه لري پر قيامت، يعني استهزاءً دا خبره كوي چې الساعة كله دی او دوی غالب ظن دا دی چې قيامت يعني بعث بعد الموت نسته بلكه محال يې بولي، كريمه كيف يحيي العظام وهي رميم.

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مُشْفِقُوْنَ مِنْهَا ۙ وَيَعْلَمُوْنَ اَنَّهَا الْحَقُّ ۗ

او هغه كسان چې ايمان يې راوړی وي پر خدای او پر رسول او پر قرآن، هغه بېرېږي له قيامت څخه (لاحتمال العذاب يفعل الله مايشاء) او دوی يقين لري چې قيامت حق دی يعني هرو مرو راتلونكی دی.

اَلَآ اِنَّ الَّذِيْنَ يُمَارُوْنَ فِي السَّاعَةِ لَفِيْ ضَلٰلٍ بَعِيْدٍ ﴿١٨﴾

خبر او سه چې هغه كسان چې ناحقي بحث كوي چې مجادله يې بولي او شک لري په قيام كي د قيامت (په قاموس كي وايي چې مرية په كسره د ميم او په ضمه د ميم شک ته وايي) هر آئينه په لويه ګمراهي كي دي عن الحق، ولې بعث بعد الموت خو له غائباتو څخه دی لكن مشابه د محسوساتو سره دی، يعني د خزان په وخت كي

چې سرسبزه ځمکه وي په نباتاتو سره سپېره و د ربږي يعني هيڅ شين بوټی پاتـه نـه سـي دا د ځمکي مرګ دی. بيا چې مياشتي د پسرلي راسي تو لـه تخمونـه د ځمکي څخـه راوځي او ځمکه از سر نو سر سبز او شاداب و ګرځي دا بعث بعد الموت د ځمکي ژوندی، نو هغه څوک چې له بعث څخه منکر وي مع کمال قدرتـه تعالی او کتاب الله او سنة نبوي شاهدي ورکړي او عقل هم شاهد پر دار الجزاء دی تا چې د مؤمن او کافر امتياز سره وسي او دغه رنګه د مطيع او عاصي فرق سره وسي دا سړی نو د ابتداء څخه و حق ته ډېر لېري دی وهذا معنی قوله تعالی لفي ضلال مبين .. بيت:

برگ درختان سبز در نظر هوشيار..... هر ورقی دفتريست معرفت کردگار

**درويش وايي:** چې لـه دې آيت څخـه څـو شيان ښکاره سـول (۱) الاول: ذم الاستعجال، ولذا قيل العجلة من الشيطان، خدای ﷻ چې شيطان امر کړی په سجده و آدم ﷺ تـه ده عجولانـه بلا تفکر دا و ويـل انا خير منـه. فقهاء" وايي چې عجلت مذموم دی مګر نه په شپږ ځايه کښې (۱) اداء الصلوة اذا دخل الوقت يعني چې وخت د يوه لمانځه داخل سي سړی دې په مقدماتو د لمانځه لګه اودس، و مسجد تـه تلل تا چې جماعة ځني فوت نه سي (۲) دفن الميت اذا حضر داسي نه کوي چې فلانی نه دی راغلی (۳) تزويج البکر اذا ادرک چې مراني وو هل داسي دي نه کوي چې زه يې په لکهاؤ روپې ولور ورکوم يا يې د خان صاحب زوی ته ورکوم (۴) وقضاء الدين اذا وجب چې وخت يې پوره سي که موجل ؤ (۵) و اطعام الضيف اذا نزل داسي به وايي چې موږ پر لس بجې مثلاً ډوډی خورو، ولي چې شايد مېلمه به ډېر وږی وي (۶) تعجيل التوبة اذا اذنب چې ګناه وکړي ژر دي توبه کاږي... بيت:

توبه بکن امروز تو هر گز مگوي دا کنم... شايد بميری صبحدم فردا نيابی در شمر

(۲) الثـاني: التـصديق والايمـان وذالـک بجميـع مـا يکون بـه المـرء مؤمنًـا خصوصًا السـاعة، (۳) والثالث الاستعداد لها ای للساعة بالاعمال الصالحات.

(۴) والرابع: مدح العلم اذا قرن الخوف والخشية، نو بايد عـالم دي په علم خپل اعجاب نه کوي، ولي چې د فرعون علم پر نبوت د موسیٰ ؑ ؤ لکن د ربوبيت دعوی دې ايمـان څخه منع کړي، او يهود انو علم درلودی پر نبوت د عليه الصلوة والسلام. کريمه: يعرفونه کما يعرفون ابنائهم لکن جاه و جلال په بني اسرائيلو کي مانع

دا یمان و کړ خپدل، غیر ذالک من الفوائد ونسب الی الامام اعظم ابو حنیفة رحمه الله
جمیع العلم في القرآن لکن تقاصرت عنه افهام الرجال.. پښتانه وايي:

دریاب که لوی دی چمچې دي خپله ده.

## اَللّٰهُ لَطِيْفٌۢ بِعِبَادِهٖ

خدای مهربان دی پر خپلو بندګانو، قال ابن عباس رضي الله عنه حفی بهم، معنا یې قهرمان دی، وقال عکرمه بار بهم احسان کونکی دی، وقال السدي رفیق بهم ددې معنا هم مهرباني کونکی دی.

**درویش وايي:** چي ددې تفسیر یو مآل یو دی صرف په لفظ کي یې فرق دی معنا یې یوه ده، وقال مقاتل لطیف بالبر والفاجر حیث لم یهلکهم (یعني فاجران) جزاء لمعاصیهم (په جزاء کي د ګنهو ددوی یې دوی نه دي هلاک کړي) بیت:

ادیم زمین سفرۂ عام اوست..... بدین خوان یغما چه ظالم چه دوست

ای کریمی که از خزانه غیب..... گبر و ترسا وظیفه خور داری

دوستان را کجا کنی محروم.... تو که با دشمنان نظر داری

وقیل: لطیف (ای علیم) بالغوامض علمه وعظیم من الجرائم حلمه وینشر عن المناقب ویستر عن العیوب، ویعطی العبد فوق الکفایة ویکلفه بالطاعة دون الطاعة.

**درویش وايي:** چي دا معاني او خواص په خدای کي سته لکن تفسیر یې په دې آیت کي د مفرد لفظ کول مشکله ده، دا معاني تو له مظهري راوړي دي، ودل هذه الآیة علی بعض التفاسیر المذکورة ان الله مطلع باحوال العباد فلا بد من تصحح الحال ومراقبة الاحوال، له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دی چي دی سره د بعض اصحابو و صحراء ته وتلي وه لنزهة الخاطر، نو هوري یې کتو غوبني پخې کړې، نو ډوډی او غوښي چي پخې سوې او دوی د ډوډۍ د خوړلو اراده وکړه هوري یو شپانه پسونه پوول هغه یې هم راوبولی چي راسه زموږ سره به ډوډۍ وخورې، راعي ورته وویل: کلوا وانا صائم (تاسي یې خورئ زما روژه ده) د تجربې لپاره دوی راعي ته وویل کیف تصوم في مثل هذا الیوم الحار شدید الحرارة، راعي دوی ته وویل ان نار جهنم اشد حرارة من هذا الیوم اصحابو رضي الله عنهم ده جواب ډېر خوند

ورکړې، بیا اصحابو ورته وویل چې پر موږ یو پسه خرڅ کړه من هذه الاغنام (له دې پسو څخه) موږ به یې تاته ثمن درکړو سره د یو څه غوښو، راعي ورته وویل چې پسونه زما نه دي زما د بادار دي چې زه یې مریی یم فکیف ابیعکم مال الغیر، اصحابو لپاره د تجربې د پوهنې دده ورته وویل چې پر موږ یې خرڅ کړه بادار که پوښتنه در څخه وکړه ته ورته ووایه چې هغه پسه لیوانو وخوړی، راعي ورته وویل فاین الله؟ زه که دروغ ووایم خدای به چېرې وي یعني خدای پر ما علم لري، صحابه کرامو ته دده جواب معقول ډېر خوند ورکړی صحابه چې مدینې منورې ته را ستانه سوه ابن مسعود د مالک څخه هغه راعي مریی سره د اغنامو رانیوی سمدستي یې راعي مریی ازاد کړی او پسونه یې ټول هغه ته ورو بخښل، نو ابن مسعود چې به کله هغه راعي ولیدی نو داسې به یې ورته وویل فاین الله.

**درویش وایي**: چې دا د مریي خبره فاین الله په اصطلاح کې د صوفیه کرامو مراقبه وایي، په دې مناسبت دا یو حکایت عجیب او غریب واورئ چې یو نبي له انبیاؤ څخه په یوه غره کې عبادت کاوه.

**یوه سه**: چې غرونه کراسي د انبیاء علیهم السلام دي الاترى ان النبي ﷺ قبل النبوة په غار حراء کې تعبد کاوه کما في صحیح البخاري، آیا ما مع الماء بقدر الضرورة والطعام ایضًا، یعني دومره اوبه او ډوډۍ به یې ورسره وړه چې دده به نیت و د اوسېدو په غار حراء کې او داغه رنګه لوی مشائخ کرام او اولیاء الله په غرو کې تعبد کاوه، تاسي ورسئ د هرات د ښار د مزاراتو مطالعه وکړئ چې ټوله یا په غرونو کې دي یا غرونو ته نژدې دي)

**درویش وایي**: چې دا جملې معترضه وې اوس بیرته د حکایت پر لور د هغه نبي چې په غره کې یې عبادت کاوه، راوي وایي چې نژدې و هغه نبي ته یوه جاري چینه وه، نو پر آس سپور سړي له هغې چینې څخه اوبه وڅیښلې یو ګړی یې ارام وکړی د هغه فارس سره یوه همیانۍ وه چې په هغه کې زر دینار وه، همیانۍ یې په وخت کې د ارام د ملا څخه خلاصه کړه په وخت کې د تګ هغه همیانۍ ځني هېره سوې وه، بل سړي چې چینې ته راغلی همیانۍ چې یې ولیدل هغه یې یوړه، نبي دا ټوله حالات مشاهده وليدل، وروسته نو یو فقیر راغلی چې یوه پلنډه بتې یې ټول

کړي وه او به يې وڅښلې پرېوتی د استراحت لپاره، هغه اول فارس چې هميانی يې د دې چينې سره څنګ هېره سوې وه ډېره زمانه وروسته يې ورپه ياد سوه چې هميانی خو ستا څخه پر هغه چينه پاته سوه بېرته راو ګرځېدی چينې ته راغلی، هغه فقير پروت ؤ هغه ته يې وويل چې زما څخه دلته هميانی هېره سوې ده، فقير ورته وويل چې ما خو هميانی نه ده ليدلې او نه مې اخستې ده، هميانی والا چې هر څه تلاشي وکړه د فقير په پلنده کې هميانی نه سوه پيدا، نو فقير يې تر عذاب لاندې راوستی حتی چې مړ يې کړی، فقال ذالک النبي الٰهی هميانی خو دغه فقير نه وه اخستې بلکې بل ظالم واخسته يعني تر مالک د هميانی وروسته راغلی الٰهی تا دغه مالک د هميانی مسلط کړی پر دغه بېچاره فقير باندې حتی چې ناحقه يې قتل کړی، نو خدای ﷻ نبي ؑ ته وحي راواستولې ان اشتغل بعبادتک يعني خپل عبادت کوه فليس معرفة سر هذه الواقعة اليک، نبي ؑ و خدای ﷻ ته التجاء وکړه چې ماهم په دې سر خبر کړې خدايه، وحي ورته راغلې چې دغه فقير پلار د هغه اول فارس چې هميانی څنګ پاته سوې وه وژلی ؤ ما هغه فارس ته قدرت ورکړی پر قصاص د پلار، او پلار د فارس اول زر دينار من مال آخذ السرقة فرددته اليه من ترکته، ذکر هذه القصة الامام الهمام ابو حامد محمد الغزالي ؒ، حافظ شيرازي ؒ وايي:

درگاه خانه که ره عقل و فضل نیست .... فهم ضعیف درای فضولی چرا کند

يَرْزُقُ مَنْ يَّشَآءُ ۚ

رزق ورکوي و هغه چا ته چې د خدای ؑ اراده ورته وسي يعني مايشاء، نو خدای ؑ خاصه وي هر څوک د بندګانو څخه بنوع من البر علی ما اقتضته حکمته (څرنګه چې حکمت د خدای ؑ يې تقاضا کوي) او هر چا ته چې خدای ؑ رزق ورکوي من مؤمن و کافر و ذی روح لکه حيوانات بري او بحري فهو ممن يشاء الله ان يرزقه، د جعفر بن محمد څخه روايت دی چې لطف په رزق کې د دوو جهتو څخه دی (١) انه جعل رزقک من الطيبات (ای الحلالات) (٢) والثاني انه تعالی لم يدفعه بمرة واحدة بل يرزقک تدريجًا.

وَهُوَ الْقَوِيُّ الْعَزِيزُ ﴿١٩﴾

او هغه الله ښکاره دی قدرت دده غالب دی، څوک مانع د ارادې دده نشي کېدلای، دا جمله حال ده.

مَنْ كَانَ يُرِيدُ حَرْثَ الْآخِرَةِ نَزِدْ لَهُ فِي حَرْثِهِ

د چا چي اراده وي کښت د اخرت، في القاموس و الحرث الكسب وجمع المال والزرع آه، والمراد ههنا ثواب الاخرة.

**پوه سه:** چي ثواب د آخرت يې مشابه کړی په کښت سره لانه ثمرة العمل في الدنيا ولهذا قيل الدنيا مزرعة الآخرة يا يې مشابه کړی د کسب سره فانه (اى ثواب الآخرة) يحصل بما كسب في الدنيا من اعمال الخير والطاعات.

"نزدله فی حرثه" موږ زياتوب کوو په کسب او په کښت دده کي، ادنی مرتبه يې په يوه حسنه لس ضعفه ورکوم رفته رفته په سبب د اخلاص او نيت او وخت حتی چي (۷۰۰) قال الله عزوجل كمثل حبة انبتت سبع سنابل في كل سنبلة مائة حبة" لکه مثل د يوې دانې چي شنه کي اووه وږي په هر وږي کي سل دانې وي.

وَمَنْ كَانَ يُرِيدُ حَرْثَ الدُّنْيَا نُؤْتِهِ مِنْهَا وَمَا لَهُ فِي الْآخِرَةِ مِنْ نَصِيبٍ ﴿٢٠﴾

که څوک اراده لري په طاعت سره برخه د دنيا يعني جاه و جلال او شهرت په دنيا کي لکه مرائي يعني رياء کار، موږ به د دينا يو شی ورکړو چي موږ دده په قسمت کړی وُ يعني هغه مخصوص شی هم نه چي ده غوښتنه کول، او نسته ده لره په اخرت کي د ثواب هيڅ برخه کلمه د من لپاره د استغراق د نفي ده، دا جمله عطف ده پر نؤتيه، په حديث متفق عليه کي د بخاري او مسلم له عمر بن الخطاب رضي الله عنه څخه روايت دی، ده وويل قال رسول الله ﷺ انما الاعمال بالنيات (يعني ثواب د اعمال يعني له قسم څخه د طاعت، په نياتو پوري د عمل کونکو مربوط دی) وانما لكل امرئ ما نوى فمن كان هجرته (چي په هغه زمانه کي هجرت له مکې څخه مدينې منورې ته فرض وُ) الى الله ورسوله (يعني د خدای او رسول د رضا لپاره) فهجرته الى الله ورسوله.

**سوال:** كلمه د من شرطيه ده څرنګه شرط او جزاء سره يو ځاى سوه؟

**ځواب:** په قيد سره جلا كېږي يعني من كان نيته بالهجرة كذا و كذا فهجرته ثوابًا الى الله ورسوله، ومن كانت هجرته الى دنيا يصيبها، يعني چي انصار د مدينې د پرې مالي مرستې ورسره كوي، او امرئة يتزوجها (لكه مهاجر د ام قيس، يو سړى ؤ د ام قيس سره يې وعده كړې وه چي زه هجرت كوم مدينې ته كه ته هم هجرت وكړې نو هورې ستا سره نكاح كوم، نو دې مهاجر لپاره د نكاح د ام قيس هجرت وكړى) فهجرته الى ماهاجر اليه (يعني ثواب د هجرت يې نسته)

او بغوي ؒ له ابى بن كعب ؓ څخه روايت كړى دى قال قال رسول الله ﷺ بشر هذه الامة بالبناء والرفعة (دا يې عطف تفسير دى) والنصرت والتمكين في الارض (دا دوهم عطف تفسير دى) فمن عمل عمل الآخرة للدنيا لم يكن له نصيب في الآخرة.

اَمْ لَهُمْ شُرَكٰٓؤُا

آيا دوى لره، يعني اهل مكه لره شركاء سته، كلمه د ام منقطعه ده په معنى د بل لانتقال الى مضمون آخر والهمزة للانكار لكه دوى چي دا زعم كوي، تخصيص د شركاء چي يې په دوى سره وكړى لانهم اتخذوها شركاء لله ﷻ في العبادة.

شَرَعُوْا لَهُمْ مِّنَ الدِّيْنِ مَا لَمْ يَاْذَنْۢ بِهِ اللّٰهُ ؕ

شرعوا (اى تلك الشركاء شرعوا صفت د شركاء دى) قال ابن عباس ؓ شرعوا دينًا غير دين الاسلام يعني الشرك وانكار البعث والعمل للدنيا (ومعنى الانكار چي داسي خو نه ده لان شركائهم جمادات.

**پوه سه:** چي جمله د مالم يأذن به الله متصل ده بقوله شرع لكم من الدين.

وَلَوْلَا كَلِمَةُ الْفَصْلِ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ ؕ

كه نه واى كلمه يعني خبره د قضاء سابق الهي بتاخير العذاب الى يوم القيامة، هر آئينه فيصله به سوې واى په منځ كي د مؤمنانو او كافرانو، او خداى ؓ به ځان فارغ كړى واى له تعذيب څخه د من كذبك يا محمد ﷺ.

**پوښتنه:** څه سر دى په قضاء سابق كي چي عذاب د كافرانو به تر ورځي د قيامت ملتوي وي او په (لقضى بينهم) سره كار ګذاري ونه سوه؟

**ځواب:** كه عمل په لقضي بينهم په دنيا كي كړه سوى واى نو ايمان اضطراري كېدى او اضطراري ايمان خداى تعالیٰ ته مقبول نه دى او ايمان د مؤمنانو مشاهده كېدى والمعتبر عند الله الايمان بالغيب دى، وجه يې داده چي تعذيب د كافرانو خو په دوږخ سره دى نو سره د دوږخ د ليدلو بيا چا انكار كولاى سواى له اسلام څخه، ولهذا قيل لايدخل النار يعني للتابيد الا مؤمن اى مؤمن ذالك اليوم، او داغه رنګه كه قضاء په دنيا كي سوې واى ايمان د مسلمانانو له دائرې څخه د غيب و مشاهدې ته رسېدى وكلا الامرين مخالف للحكمة الالهية، والله اعلم بالصواب.

وَاِنَّ الظّٰلِمِيْنَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۲۱﴾

او په تحقيق سره دى د ظالمانو لپاره (مراد ځني مشركان دي چي اعلیٰ درجه ظالمان وه ولي چي معنیٰ د ظلم وضع د شي ده بې ځايه ولا ظلم اعظم من ظلم المشركين حيث وضعوا معبوديت چي حق د خالق مطلق دى في الجمادات چي بتان دي) دوى لره دى عذاب درد وركونكى اى في الآخرة (اليم چي پر وزن د فعيل دى له بابه څخه د مجرد دى په معنیٰ د مفعل دى يعني اسم فاعل له بابه د افعال) كما قول الشاعر:

امن ريحانة الداعى السميع ....... يورقنى واصحابى هجوع

چي په شعر كي سميع په معنیٰ د مسمع دى، ولهذا الشعر قصة طويلة.

**نكته:** اسم ظاهر يعني الظالمين په ځاى كي د ضمير راوړى يعني ولهم لپاره د تسجيل عليهم بالظلم.

**فائده:** مسلمان لره په كار ده چي په هر مشكل كي متوجه و خداى تعالیٰ ته اوسي ليندفع الشر وينعكس الامر، په حديث شريف كي راغلي دي چي سالم بن عوف رضی الله عنه د ښمنانو په بند نيولى ؤ، نو پلار يې و عليه الصلوة والسلام ته راغلى د زوى قصه يې ورته وكړه، عليه الصلوة والسلام ورته وويل: اتق الله، واكثر من قول لاحول ولاقوة الا بالله ففعل فجاء ابنه بعد مدة ومعه مائة ابل، قال الحافظ الشيرازي رحمه الله:

سرور عالم نسيم بشارتى خوش داد .. كه كس هميشه بگيتى دژم نخواهد ماند

تَرَى الظّٰلِمِيْنَ مُشْفِقِيْنَ مِمَّا كَسَبُوْا

ته به وويني يا به ستا علم راسي ظالمان يعني المشركين يوم القيامة يعني چي دوی دوږخ ته ځي (مشفقين) خائفين چي بېرېږي به (مما كسبوا) اى من جزاء ما كسبوا في الدنيا من الشرک والمعاصي.

**فائده:** مشفقين مفعول ثاني دی د ترى كه رؤيت علمي وي مفعول اول الظالمين دی، يا حال دی د الظالمين څخه كه رؤيت بصري وي چي يو مفعول غواړي.

وَهُوَ وَاقِعٌ بِهِمْ

او هغه اى جزاء ما كسبوا كه دوی بېرېږي او كه نه جزاء د ما كسبوا پر دوی واقع ده دا حال مقدره بولي په نحو كي، نحو قوله تعالى چي كفار چي دوږخ ته داخل سي خالدين فيها يعني مقدر خلودهم فيها، دلته يې ترجمه داده مقدر وقوع الجزاء بهم.

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فِيْ رَوْضٰتِ الْجَنّٰتِ

او هغه كسان چي ايمان يې راوړی وي او اعمال صالحه يې هم كړي وي په باغو كي د جنتو به وي.

**پوهه:** چي روضات هغه ښو ښو ځايو ته د جنت وايي.

لَهُمْ مَّا يَشَآءُوْنَ عِنْدَ رَبِّهِمْ ذٰلِكَ هُوَ الْفَضْلُ الْكَبِيْرُ ﴿۲۲﴾

او دوی لره ثابت دي، له مايشاؤن څخه مراد ما يشتهونه من الحورات والثمرات وغيرها، په نېز د خدای ؒ ددوی (ذالک) اى ما ذكرت من روضات الجنات په تأويل د مذكور (تا چي صحيح سي تذكير د ذالک) دا كاميابي ده لويه يعني تر ټولو كاميابيو د دنيا لويه كاميابي ده.

ذٰلِكَ الَّذِيْ يُبَشِّرُ اللّٰهُ عِبَادَهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

دا ثواب مذكور زېری كوي خدای ؒ و خپلو هغو بندګانو ته چي ايمان يې راوړی وي او اعمال صالحه يې هم كړي وي، اللهم اجعلنا من اهل هذه البشارة بلطفه و كرمه .... بيت:

بضاعت نه اوردہ ایم الا امید .... خدایا ز لطفم مکن نا امید

اگر چه گفته اند:

کار نیکو کن اگر مزد نیکو میطلبی.... کن چرا بر که نیکوتر نیکوکار دهند

**پوښتنه:** الذي موصول دی او يبشر الله يې صله ده په صله کي خو عائد و موصول ته ضروري دی؟

**ځواب:** عائد و موصول ته خو ضروري دی که مذکور وي او که محذوف دلته محذوف دی، والتقدير يبشر به الله، وروسته يې حرف جر حذف کړی بيا يې ضمير عائد و موصول ته چي مجرور ؤ حذف کړی کما هو عادة العرب من التدريج في الحذف، روح المعاني وايي ولا مانع کما قال الشهاب من حذفهما معًا انتهى، او مظهري هيڅ اشاره نه ده ورته کړې، روح البيان اشاره ورته کړې ده سوال او جواب يې نه دی راوړی، في روح البيان: اى يبشرهم به على لسان النبي ﷺ انتهى، ايوبي په سوال او جواب سره راوړه.

قُلْ لَّآ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ اَجْرًا اِلَّا الْمَوَدَّةَ فِى الْقُرْبٰى

ته ووايه يا محمد و کفارو ته د مکې چي زه سوال نه کوم (يعني نه غواړم پر تبليغ د دين و تاسي ته او پر نور بشارت تاسي ته پر ايمان راوړلو باندي) اجرًا" اى نفعًا "چي په عرف کي مال ځني مراد دی" مګر نه محبت ستاسي "في القربٰى" اى لقرابتي منکم، نو کلمه د في لپاره د سببية ده، کما ورد في الحديث النبوي "ان امرئة دخلت النار في هرة" په سبب د پشي چي يو جنايت يې کړی ؤ ښځي دا وتړل نه يې ډوډی ورواچول او نه يې ايله کول چي خپله يو موږک ونسي او ځان په موړ کړي حتى چي پشي دې ښځي د لوږي مړه کړه والى هذا ذهب مجاهد وقتاده وجماعة، والخطاب يعني في لا اسئلکم اما لقريش على ما قيل چي قريشو يو څه مبلغ سره جمع کړی ؤ چي و عليه الصلوة والسلام ته يې په رشوت کي ورکړي چي ته زموږ خدايانو ته بد مه وايه يعني چي دا جمادات دي لاتنفع ولا تضر، يعني دا نقود به تاته فائده سي، و نزلت هذه الآية، او عليه الصلوة والسلام لره په تړلو قريشو کي قرابت ؤ، اخرج احمد والشيخان والترمذي وغيرهم عن ابن عباس رضي الله عنهما چي له ده څخه چا پوښتنه وکړه عن قوله تعالى الا

المودة في القربى فقال سعيد بن جبير قربى آل محمد ﷺ فقال ابن عباس رض يعني لسعيد بن جبير علجت (تلوار دي وکړی) ان النبي ﷺ لم يكن بطن من قريش (يو قوم د قریشو) الا وله قرابة فيهم، او يا ضمير و انصار ته راجع دی بناء على ما قيل چي انصارو عليه الصلوة والسلام ته څه مال راوړی يعني هغه وخت چي دی په مکه کي ؤ چي دی صرف کړي په خپلو خواهشو کي، نو دا آيت نازل سو نو عليه الصلوة والسلام مال وررد کړی او عليه الصلوة والسلام لره قرابت ؤ په انصارو کي چي دده ماماګان وه فان ام عبد المطلب بنت زيد النجارية (يعني د بني النجار له قومه څخه وه) وكذا اخوال آمنه يعني ام رسول الله ﷺ كانت على ما في بعض التواريخ من الانصار ايضًا، او يا خطاب و ټولو عربو ته دی لقرابته عليه منهم جميعًا في الجملة، والمعنى ان لم تعرفوا قدري لنبوتي وكوني رحمة عامة (وما ارسلناک الا رحمة للعالمين) ونعمة لامة فلا اقل الا مردتي لاجل حق القرابة وصلة الرحم چي تاسي په هغه سره يعني په صله رحمي سره غمخوري کوئ.

**درويش وايي:** چي دا ټوله روايات تاسي واوريده وظاهر هذه الروايات ان الخطاب لقريش كما اخرجه سعيد بن منصور وعبد بن حميد والحاكم صححه ابن مردوية والبيهقي في الدلائل عن الشعبي قال اكثر الناس علينا في تفسير هذه الآية يعني لا اسئلكم الآية، نو موږ ابن عباس رض ته خط نوشته کړی ددې د تفسير لپاره، ده موږ ته داسي جواب راواستاوه چي ان رسول الله ﷺ كان وسط النسب في قريش ليس بطن من بطون قريش الا ولدوه يعني اما من جانب الاب ومن جانب الام، قال الله تعالى لا سئلكم عليه اجرًا يعني على التبليغ وايصال امر الله تعالى اليكم الا المودة في القربى يعني زما سره محبت وساتي لقرابتي منكم وتحقوني بها، قال البغوي رح قال قوم هذه الآية منسوخة، ولي چي دا آيت په مکه مکرمه کي نازل سوی دی چي کفارو د مکې عليه الصلوة والسلام ته ډېر اذيت ورساوه فانزل الله تعالى هذه الآية فامرهم، نو دوی يې امر کړه په مودة سره د رسول الله ﷺ په سبب د قرابت په دوی کي يعني په هر بطن کي د قريشو کما مر في حديث ابن عباس رض وروسته چي عليه الصلوة والسلام هجرت وکړی مدينې منورې ته او انصارو ځای ورکړی او فوق العادة کومک يې ورسره وکړی، نو الله عزوجل دا اراده وکړه چي

عليه الصلوة والسلام د نورو ورونو سره دده چي انبيا عليهم السلام دي چي د هغه نورو انبياؤ په باره كي دا آيت نازل سوى دى حيث قالوا "وما اسئلكم عليه من اجر يعني پر تبليغ د رسالت من اجر ان اجري الا على رب العالمين" فالآية الاولى يعني ما اسئلكم الا المودة في القربى، الاولى منسوخة په دغه آيت سره چي آنفًا ذكر سو، وايضًا په دې آيت هم منسوخ دى "قل لا اسئلكم عليه من اجر وما انا من المتكلفين" وغيرها من الآيات، والى هذا ذهب الضحاك بن مزاحم والحسين بن الفضل قال البغوي في الآخير وهذا قول غير مرضى لان مودة النبي ﷺ واقاربه وكف الاذى عنه وعن اقاربه فريضة محكمة لايحتمل النسخ لحديث انس رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ لايؤمن احدكم حتى اكون احب اليه من والده وولده والناس اجمعين، او له حضرت انس رضي الله عنه څخه داسي حديث هم منقول دى چي درې خويه په سړي كي وي وجد بهن حلاوة الايمان (د ايمان خوند به ووينى) (۱) من كان الله ورسوله احب اليه مما سواهما (۲) چي څوک محبت د مؤمن بنده سره كوي د الله عزوجل لپاره (يعني محبت د بنده سره به نه وي مگر لپاره د خداى جل جلاله مثلاً ښه عالم يا ښه عابد سړى دى يعني دنيايي غرض نه پكښي لري) (۳) ومن يكره ان يعود في الكفر بعد ان انقده الله منه كما يكره ان يلقى في النار، روى الحديثين للبخاري ومسلم في الصحيحين وعلى هذا انعقد الاجماع انتهى قول البغوي.

**درويش وايي:** چي مظهري دا خبره پسي ښځرلې ده حتى درې صفحې يې په ذكي كړي دي كما هو رأيه چي نقل يې موجب د تطويل بلا فائدة دى نو ځكه درويش هغه صرف نظر كړى.

وَمَن يَقْتَرِفْ حَسَنَةً نَّزِدْ لَهُ فِيهَا حُسْنًا ۚ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ شَكُورٌ ﴿٢٣﴾

څوک چي فعل د يو ښه خصلت وكړي، مظهري وايي چي مراد له دې څخه حب رسول الله ﷺ وحب آله او محبت د نائبانو دده لكه خلفاء راشدين رضي الله عنهم. ولي كه دا نه وي مراد نو دا جمله د سابق سره ارتباط نه لري يعني قوله تعالى "الا المودة في القربى" لكن لفظ يې عام دى ټولو حسناتو ته شامل دى لكن محبت رسول الله ﷺ وآله په دخول اولى پكښي داخل دى، او روح البيان وايي چي اية حسنة كانت سيمًا حب رسول الله وحب آله. او ابن عباس رضي الله عنه يوازي محبت د قرابت د عليه

الصلوة والسلام مراد کړی دی ''نزدله فیها حسنًا'' ای مضاعفة الثواب فیها بای معنی کانت اقتراف الحسنة وقیل نزلت هذه الآیة في ابی بکرؓ لغایة حب رسول اللهﷺ وقوله ای ابو بکرؓ ارتبقوا محمدًا في آله (ان الله غفور شکور) یغفر ذنوب من یحب رسوله وآله وکذا لک غفور لکل من تاب عن معصیة، او شکور دی لمن لمن تاب عن معصیة، یا معنی داده چي ثواب ورکوي پر طاعت او پر محبت د آل الرسول، والثاني هو الاولی لئلا یلزم التکرار في غفور و شکور کما لایخفی.

قال الجامي'':

بصـــدق و صفا همی گویند جامی ..... غـــلام غلامان آل محمد

بیت: هر دم از ما صد درود وسلام ..... بر روان پاک آنحضرت مدام

بیت: حسن را خاتمه بر خیر گردان ..... بحق مـصطفی و چار یاران

دو بیت معنوي:

لسعت حیة الهوی کبدی ..... فلا طبیب لها ولا راق

الا الحبیب الذی شغفت به .... فعنده رقیتی وتریاقی

ترجمه: لسع: د زهري حیوان لکه لړم مار خوړلو ته وايي، وحاصل معنی البیت، وخوړل مار د عشق حقیقي.

**پوه سه:** چي اضافة د حیة الهوی اضافت د مشبه به دی و مشبه ته یعني هغه عشق حقیقي لکه مار داسي دی یعني سړی بېقراره کوي، نو نه طبیب سته د دغي هوی او نه دم کونکی. مګر نه هغه حبیب چي زه پر عاشق یم (د شغف معنی سخت عشق دی چي عشق حقیقي دی) نو په نېز د هغه حبیب زما د مار خوړلو دم دی (د رقیقة معنی دم دی پر مار خوړلي باندي) او په نېز د هغه حبیب زما تریاق دي، تریاق یوه مرکب دوا ده چي د ماریا لړم خوړلي لپاره دوا ده.

**درویش وايي:** چي پر هامش د مکتوبات لمجدد الالف الثاني الشیخ احمد السرهندي قدس سره دغه دواړه بیتونه موجود دي، که څه هم د مکتوبات په نسخه کي صرف دغه عبارت راغلی دی ''فلا طبیب لها ولا راق'' په هامش کي د مکتوبات داسي روایت راغلی دی چي علیه الصلوة والسلام د یوه صحرایي شخه دغه دوه بیته واورېده او امریې کړی په تکرار سره، والله اعلم بالصواب.

**درويش وايي:** چي دا حكايت او دوه بيته ما په مناسبت د محبت د رسول اللهﷺ او د اولاد دده راوړل.

## اَمۡ يَقُوۡلُوۡنَ افۡتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا‌ ۚ

**پوه سه:** چي كلمه د ام منقطعه ده او دا جمله متصله ده په هغه جمله پوري "قل لا اسئلكم عليه اجرًا" او ام په معنى د بل دى، كلمه د بل لپاره د انتقال ده من مضمون الى اخر، او همزه يې لپاره د انكار او توبيخ دى، والمعنى بل ايقولون كفار مكة (افترى على الله كذبًا) دروغ وايي محمد (ﷺ) په دعوى كي د نبوت من جانب الله دى، يا قرآن منزل من جانب الله بولي.

## فَاِنۡ يَّشَاِ اللّٰهُ يَخۡتِمۡ عَلٰى قَلۡبِكَ‌ ؕ

كه د خداى ؒ اراده واى ستا پر زړه باندي به يې مهر لګولى واى.

**پوه سه:** چي دا جمله معترضه ده دډ لپاره يې راوړه چي دا بعيده خبره ده چي تا غوندي سړى دي افتراء پر خداى ؒ وايي، ولي چي افتراء پر خداى ؒ هغه څوک وايي چي مختوم على قلبه وي جاهلاً بربه، فاما من كان ذا بصيرة و معرفة بربه، هغه پر خداى ؒ افتراء نه وايي كانه قال ان اراد الله خذلانك ستا ناكامي په دې دعوى كي د نبوت، نو ستا پر زړه به مهر در لګولى واى تا چي ته دلاوره سې پر افتراء على الله، واذ ليس فليس، او مجاهد ؒ وايي: يربط على قلبك بالعبر حتى لايشق عليك اذاهم وقولهم انك مفتر، او قتاده ؒ وايي كه د خداى ؒ اراده واى ستا پر زړه به يې مهر لګولى واى او دا چي كفار وايي چي دا قرآن افتراء على الله دى او محمد (ﷺ) يې له ځانه جوړوي، دا قرآن به يې له تا څخه هېر كړى واى، نو حاصل دا دى چي ته چي مسلسل دا قرآن وايي او احكام او معاني يې و خلكو ته بيانوې، نو ته مفتر نه يې بلكي رسول برحق يې او قرآن منزل من عند الله دى.

## وَيَمۡحُ اللّٰهُ الۡبَاطِلَ وَيُحِقُّ الۡحَـقَّ بِكَلِمٰتِهٖ‌ ؕ

دا جمله مستأنفه ده لنفي الافتراء عما يقوله محمد ﷺ بانه لو كان ما يقوله محمد ﷺ خداى ؒ به محوه كړي واى اذ من عادته عزوجل محو الباطل واثبات الحق.

**پوه سه:** چي د كلمات تفسير چا په وحي سره كړي دي او بعض په قضاء سره كړي

دي او چا په وعده سره کړي دي يعني خداى ﷻ وعده کړې ده چي باطل به محو کېږي لکه شرک او اثبات د حق به کېږي په قرآن سره يا په قضاء د خداى الذي لامرد له.

إِنَّهُۥ عَلِيمٌۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ۝٢٤

په تحقيق خداى به خبر دى په هغه څه چي د خلګو په سينو کي وي يعني په زړو کي وي.

وَهُوَ ٱلَّذِى يَقْبَلُ ٱلتَّوْبَةَ عَنْ عِبَادِهِۦ

او خداى هغه مهربان ذات دى چي قبلوي توبه د خپلو بندګانو څخه که توبه له کفر څخه وي او که له نورو ګنهو څخه وي.

**پوهسه:** چي توبه په لغت کي مطلق رجوع ته وايي، او په شرع کي قيل التوبة ترک المعاصي نية وفعلاً والاقبال على الطاعة نية وفعلاً، او سهل بن عبد الله وايي: التوبة الانتقال من الافعال والاحوال المذمومة الى الافعال والاحوال المحمودة ومآلها واحد، او بيضاوي د علي ﷺ څخه روايت کوي چي لفظ د توبه په شپږو شيانو پوري مربوط دى (۱) پر تېرو سوو ګنهونو باندي پښېماني (۲) د ضائع کړل سوو عبادتونو لکه لمونځونه روژې را ګرځول (۳) او د مظالمو رد يا عفو له مظلوم څخه غوښتل (۴) اذابة النفس في الطاعة: ويلول دي د ځان په طاعت کي لکه ده چي ويلي کړى ؤ په معصيت کي (۵) تلخګي د طاعت به برداشتوي لکه ده چي خوند اخستى ؤ پر معصيت (۶) البكاء بدل الضحک وقت المعاصي.

**درويش وايي:** چي داسي توبه د اولياء الله توبه ده، او بغوي په شرح السنة کي له ابن مسعود څخه روايت کړى دى: الندم التوبة والتائب من الذنب كمن لا ذنب له. فقير وايي چي دا سهل او اسانه معنى د توبې ده.

**درويش وايي:** چي الله عزوجل په توبه د خپل بنده په سبب د غايت رحم ډېر خوشحاله کېږي، چنانچه مسلم له انس بن مالک ﷺ څخه روايت کړى دى قال قال رسول الله ﷺ الله اشد فرحا بتوبة عبده حين يتوب اليه من احدكم (الله عزوجل سخت او ډېر خوشحاله کېږي په توبه د خپل بنده هغه وخت چي بنده خداى ﷻ ته توبه وکاږي له يوه ستاسي څخه) كان راحلته بارض فلاة عليها طعامه وشرابه (چي وي

راحله یعني اوښه دده په داسي مځکه کي دښت و بیابان وي چي پر هغه اوښه دده دوډۍ او اوبه وي) په بل روایت کي راغلي دي چي ده اوښه چوکه کړې وه او د ګرمی له کبله د یوې درختي لاندي پرېوتی بیده سو، د اوښي ګوډه چونکه ده نه وه تړلې نو اوښه د باره سره و ځنګه ته د خورک لپاره ولاړه دی چي ویښ سو سترړی سوی هم ؤ چي وې کتله اوښه نه معلومېږي، هذا ما في رواية اخرى، نو هر څه طلب چي یې وکړی له اوښي نا امیده سو، نو یې د ځان سره فکر وواهه چي تر هغې درختي لاندي به پرېوځي تر څو چي مري د تندي له سببه. په دې دوران کي چي دی د مرګ په انتظار ؤ بیده سوی ؤ چي راکښېښتی اوښه یې سره د طعام او شرابو سر ته چوکه ده، اوښه یې تر مهار ټینګه کړه او د ډېري خوشحالي یې داسي وویل: اللهم انت عبدي وانا ربک (ته زما بنده یې زه دي رب یم) یعني خوله یې خطاوتل، دده خیال خو دا ؤ چي داسي ووایي اللهم انت ربي وانا عبدک لشدة الفرح.

**درویش وایي:** چي په لږ تفاوت د الفاظو البغوي‌ؒ هم روایت کړی دی په خپل سند له حارث بن سوید څخه چي دی وایي چي عبد الله چي مریض ؤ د پوښتني لپاره ورغلی ؤ هغه وویل چي سمعت رسول الله ﷺ ثم ساق الحدیث المذکور بادنی تفاوت في الالفاظ وروی مسلم عن ابی هریرة ؓ قال قال رسول الله ﷺ ان العبد اذا اعترف بذنبه (چي بنده اقرار وکړي په خپله ګناه سره) ثم تاب. تاب الله علیه، متفق علیه، نو خدای ﷻ یې توبه قبلوي.

**فائده:** په دې حدیث کي د توبې نسبت و بنده ته هم وسو او خدای ته هم سبب یې دا دی چي اصل معنی د توبې رجوع ده چي بنده ته یې نسبت وسي معنی یې رجوع له معصیت څخه و طاعت ته او چي خدای پاک ته یې نسبت وکړل سي معنا یې رجوع ده له عقوبت څخه و مغفرت ته. له ابن عباس ؓ څخه روایت دی چي توبه عامه ده للمؤمن یعني العاصي چي له عصیانه توبه وکاږي والکافر چي له کفره توبه وکاږي) والولي والعدو (له ولي څخه مؤمن مراد دی له عدو څخه کافر مراد دی) وقال السري السقطي ؒ چي توبه حقیقي دا ده چي یوه ګناه چي سرې وکړي مثلاً زنی وروسته توبه وکاږي نو چي بل وخت هغه ګناه وریاد سي په زړه کي خوند د هغې ګناه نه ور ګرځېږي بلکې کراهت د فعل یې په زړه کي پیدا سي.

نصیحت: په توبه کي تلوار په کار دی من یوم الی غد ته دې نه ځنډوي. بیت:

توبه بکن امروز تو هر گز مگو پردا کنم ... شاید بمیری صبحدم فردا نیابی در شمر

وروی عبد العزیز ابن اسماعیل یعني قال رسول اللهﷺ یقول.. (تعجب دی و حال ته د بني آدم) یذنب الذنب ثم یستغفر (ای بعد الندم علی الذنب) فاغفرله لاهو یترک ذنوبه ولا هو ییاس من رحمتي (نه دي نا امیده کېږي له رحمت څخه زما) بالندم والاستغفار اشهدکم (یعني یا ملائکتي) اني قد غفرت له.

**فائده:** که چا د توبې پر شرائطو برابره توبه وکښل وروسته یې په دې کي شک ؤ چي زما توبه به خدای قبوله کړې وي او که نه، نو دا شک یې ګناه کبیره ده لان الله تعالی قد قال في مواضع عدیدة ان الله هو التواب الرحیم.

امیان وایي: خدای دي مو توبه قبوله کړي، دا خواست غلط دی، داسي باید وایي خدای ﷻ دي د توبې توفیق راکړي، لان قبول الله التوبة موعود من الله.

**پوه سه:** چي توبه د خولې شی یوازي نه ده لکه عوام چي وایي توبه مي ده خدایه بلکې هغه شرائط لري چي یو له هغو څخه الندم بالقلب دی.

**پوه سه:** چي یو سړي که ګناه کول وروسته له هغې ګناه کولو څخه عاجزه سو وروسته وو ایي چي زما توبه ده، دا توبه د عجز ده، مثلاً یو سړی غلاوي کوي د خلګو کورو ته ورلوېږي، وروسته په سترګو ړوند سي یا شل سي بیا وایي چي خدایه زما توبه ده له غلا څخه، دا توبه نه ده داسي توبه خو فرعون هم وکښه چي په دریاب کي غرق سو او اوبو پورته کړی ده داسي وویل لا اله الا الله الذي آمنت به بنو اسرائیل یعني توبه یې وکښل، دې قول ته توبه د ایاس وایي، په یوه حدیث کي راغلي دي چي: الله افرح بتوبة العبد (هرآئینه خدای ﷻ ډېر زیات خوشحاله کېږي په توبه د بنده) من المضل الواجد (د یو چا څخه چي شی ورک سي او پیدا یې کړي) ومن العقیم الوالد (چي د سړي عیال نه کېږي ډېره زمانه، یعني وچ وي او والد وګرځي یعني عیال خدای ورکړي) ومن الظمأن الوارد (تر ډېر تږي چي اوبو ته ورسېږي)

# وَ يَعْفُوْا عَنِ السَّيِّاٰتِ

او خدای پاک عفو کوي د ګنهو صغیرها و کبیرها بالتوبة وبلا توبة لمن شاء.
بخاري او مسلم له ابو هریره ﷺ څخه روایت کړی دی قال قال رسول الله ﷺ قال رجل لاهله (یعني چي هیڅ کار د خیر یې نه ؤ کړی خپلو قریبانو ته یې وویل) اذا مات فحرقوه (چي دی مړ سي یعني زه مړ سم ما په اور وسوځئ، بیا نیمایي د ایرو مي په دریاب کي و پاشئ او نیمایي په وچه کي) فو الله لئن قدر الله علیه (قسم دی زما په خدای که خدای قادر سو پر ما)
**سوال**: د دې سړي خو د خدای ﷻ په قدرت تامه کي شک ؤ، نو دا سړی خو مسلمان نه ؤ؟
**ځواب**: دا سړی امي ؤ په دې جهل او شک کي معذور دی.
لیعذبنه عذابًا لایعذبه احدًا من العالمین (خامخا به عذاب ور کړي ده ته دومره عذاب چي هیڅ چا ته یې د عالمیانو به دومره عذاب نه وي ور کړی) فلما مات (نو څه وخت چي هغه سړی مړ سو ورثه ؤ یې دده وصیت پر ځای کړی یعني و یې سو او په بحر او بر کي یې دده ایرې وپاشلې، نو خدای پاک دریاب امر کړی فجمع ما فیه (دریاب هغه دده ایرې راجمع کړې، او بر یې امر کړی هغه هم ایرې راجمع کړې ما فیه) نو هغه سړي ته خدای ﷻ وویل چي دا کار دي ولي وکړی؟ قال من خشیتک یا رب (ستا له بېري څخه ای زما ربه) وانت اعلم (او ته زما په حال ښه خبر یې) فغفرله، وروی احمد عن ابی الدرداء ﷺ انه سمع النبي ﷺ یقول علی المنبر یعني پر منبر ولاړ ؤ داسي یې وویل: ولمن خاف مقام ربه جنتان (هغه چا لره چي بېرېږي له دریدو څخه و خدای ته یعني په ورځ د قیامت دوه جنته دي) ابو الدرداء ﷺ وایي ما ورته وویل ‹ ان زنٰی وان سرق یا رسول الله، بیا دوهم وار علیه الصلوة والسلام هغه آیت مکرر کړی، بیا ما دوهم وار ورته وویل وان زنٰی وان سرق یا رسول الله؟ بیا دریم وار رسول الله ﷺ هغه آیت تلاوت وکړی، ابو درداء ﷺ وایي چي بیا ما ورته وویل وان زنٰی وان سرق یا رسول الله؟ فقال وان رغم انف ابی الدرداء، که څه هم پزه د ابو الدراء په خاورو کېږي. فقیر وایي چي دا یوه مقوله ده چي عرب یې په ذلت کي استعمالوي.

وَيَعۡلَمُ مَا تَفۡعَلُونَ ﴿٢٥﴾

او خدای علم لري پر کارو چي تاسي يې فعل کوئ، يعني من الطاعة و العصيان، په يوه روايت کي راغلي دي چي يو سړي د الدينوري څخه پوښتنه وکړه "ما اصنع فكلما وقفت على المولى صرفني البلوى (زه څرنګه وکړم حتى چي زه هر وخت ودريږم پر دروازې د مولى يعني د خدای ﷻ زما څخه بلوی نه دفع کوي) دينوري ورته وويل: كن كالصبي مع امه فكلما ضربته يجزع بين يديها ويتضرع فلا يزال كك حتى تضمه اليها، ترجمه: او سه د خدای ﷻ سره لکه کوچنی د مور سره چي مور هر وار چي دا خپل زوی په چپلاخه مثلاً ووهي کوچنی ورته ژاړي مور ته عجز کوي، رفته رفته مهربانه موريې اخير په غېږ کي ونيسي نو هغه د کوچني مقصد که يې تی غوښتی که يې ډوډی وغيره غوښتل ورته حاصل کړي، په يوه صحيح حديث کي راغلي دي چي بعض ګناه کاران لاس ونه پورته کړي خدای ﷻ ته يعني دعاء د مغفرت د ګنهو څني کوي فلا ينظر اليه بالرحمة يعني خواست يې نه کړي قبول ثم يدعو ثانيًا فيعرض عنه بيا په نظر د رحمت نه ورته ګوري، د ريمه پلا بيا زاری او عجز ورته وکړي، نو خدای ﷻ ملکو ته ووايي: يا ملايكتي قد استحيت من عبدي وليس له رب غيري فقد غفرت له، ما بخښلی دی.

**درويش وايي:** چي حياء په جناب کي د خدای ﷻ مجاز دی، وقد مر بيانه في سورة البقرة في تفسير قوله تعالى ان الله لا يستحيى ان يضرب مثلاً الى اخير الآية... بيت

کرم بين ولطف خداوندگار ..... گنه بنده کرده ست واو شرمسار

بايزيد البسطامي قدس سره سلطان العارفين په يوه مناجات کي و خدای ﷻ ته داسي د عجز بيت ويلی دی:

چهار چيز اورده ايم شاها که در گنج تو نيست
عاجزی و مسكينی فقر و گناه اورده ايم

درويش په خپل وار خدای ﷻ ته دا بيتونه وايي:

الهی يا الهی يا الهی ..... ندارم جز اميدت تکيه گاهی
ندارم توشۀ راه قيامت ..... بجز شرمندگی و رو سياهی

ندارم طاعت مقبول درگاه ..... اشـــک نــدامـت آه آهـی
شفیع آورده ایم روئ محمد ..... مرا از ذنب خود کن عذر خواهی
بحق و حرمت فـرقان اعظم ..... کـــرم کـن بر من گم کرده راهی

وَيَسْتَجِيبُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

دا جمله عطف ده پر يقبل. قبلوي خواست د هغو کسانو چي ايمان يې راوړی وي او اعمال صالحه يې هم کړي وي که مالي وي او که بدني وي، که ظاهري وي او که باطني وي.

**سوال:** يستجيب خو متعدي بنفسه نه دی، نو دلته يې څرنګه متعدي بنفسه ګرځولی دی و الذين ته؟

**ځواب:** لام جاره ورسره محذوف دی کما في قوله تعالى واذا کانوهم ای کانوا لهم، او عطاءؒ د ابن عباس؄ څخه روايت کړی دی چي معنی د آيت يې داسي کړې ده "ويثبت الذين آمنوا بالقول الثابت" الی اخيره، او بيضاويؒ وايي چي معنی د استجابة الاثابت على الطاعت.

وَيَزِيدُهُمْ مِّنْ فَضْلِهِ ۚ وَالْكٰفِرُونَ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ ۝

او ورکوي خدای پاک دوی ته زائد پر هغه شي چي دوی يې خواست کاوه يا يې دوی مستحق وه، او ابو صالحؒ له ابن عباس؄ څخه روايت کړی دی چي د يستجيب معنی ده "يستجيب الذين آه" چي د دوی شفاعت قبلوي په اخوان کي د دوی او يزيدهم من فضله چي شفاعت د دوی په اخوان الاخوان کي، او کافرانو لره دی عذاب سخت.

**پوه سه:** چي مراد له شدت څخه شدت في نفسه دی او يا معنی داده چي نسبت و بعضو مؤمنانو ته که چېري وکړل سي لکن عذاب د و مره نه وي لکه د کافر في الکم والکيف فتأمل، دا جمله عطف ده پر هو الذي يقبل التوبة.

**پوښتنه:** بعض کسان خدای ته په عاجزی درخواستونه وکړي لکن خواست يې نه وي قبول سوی يعني هغه شی چي ده له خدايه غوښتی وي هغه په لاس نه وي ورغلی؟

**ځواب:** (۱) په صحيح حديث کي راغلي دي چي سعد بن وقاص و عليه الصلوة

والسلام ته وويل چي ته خداى ته خواست وكړه چي زما خواست دي قبلوي، عليه الصلوة والسلام ده ته وويل يا سعد اجتنب الحرام فان كل بطن دخله لقمة من الحرام لايستجاب دعوته اربعين يومًا (اى سعده له حرامو څخه اجتناب وكړه، ولي چي يوه ګوله د حرام كه چېري د چا نس ته داخله سي، نو څلوېښت ورځي به د هغه دعاء نه قبلېږي) (٢) او په بل صحيح حديث كي راغلي دي چي ان الرجل يطيل السفر اى في طريق (لكه مثلاً حج يا عمرې ته روان وي) اشعث (سرېې بېروي) اغبر (پښې يې سپېرې وي) يقول يا رب (يعني ديو شي خواست خداى ته كوي) لاسونه يې د اسمان و خوا ته پورته نيولي وي) و مطعمه حرام و شربه حرام (د خوراک او څېښاک شى يې حرام وي) وغذا بالحرام (او غذاء يې له حرامو څخه وي) فانى يستجاب لذالک الرجل دعائه (نو چېري به قبلونه وسي د دغه سړي د دعاء)

په تفسير بحر العلوم كي وايي چي د نيابت د اجابت مضامين ټول له مسلم دي او مقبول دي، ولي چي آيتونه پر دې دلالت كوي چي د مطيع لربه خواستونه ټول مقبول دي على كل حال، او دا نه ده لازمه ان يستجاب لكل مؤمن فان بعض الذنوب يمنع الاستجابة ويرد الدعوت كما اذا كان المطعوم والمشروب حرامًا والقلب لاهيًا غافلاً، يعني دعاء يې صرف په خوله وي زړه يې غافل په لهو كارو كي فكر وهي په خوله دعاء كوي.

**درويش وايي:** چي په نننۍ زمانه كي دعاء پر شرطو د استجابت ډېره نادره ده الا من بعض اولياء الله والخواص من العباد لان اكل الحرام لايخلو عنه الا من شذ وندر.

(٢) ځواب: د عمومي خلكو دا خيال دى چي قبلونه د دعاء فقط دا ده چي هغه شي چي ده غوښتى له خداى څخه هغه شى خداى ورکړي لكن استجابت په دغه كي حصر نه دى، ګاهي يو بنده يو شى له خدايه غواړي مثلاً چي ماته يو ښه موټر د سپرلي لپاره راكړې خداى پاک د هغه په عوض كي تر هغه ښه شي وركړي، مثلاً ښه صالح عالم زوى خداى وركړي، او ګاهي يو سړى له خدايه زوى غواړي لكن په علم د خداى زوى دده لپاره شر وي، خداى په عوض كي د هغه يو شر چي ده ته متوجه وي ځني دفع كړي مثلاً يو دښمن چي دده د قتل نيت يې كړى وي د زړه يې ځني وباسي.

(٣) ځواب: د بعضو دعاګانو د اجابت خداى پاک دده لپاره ذخيره وګرځوي

د آخرت، كما ورد چي په ورځ د قيامت بعض مؤمنان چي خپل جنت ته ورسي جنت تر خپلو اعمال صالحهٔ ډېر بالا په خيال ورسي، ولي په جنت كي د هر عمل صالح عوض جلا دى، نو ددې سړي چي په جنت كي دده تر عمل بالا شيان په خيال ورسي من قصور و غلمان وحور، نو دى په جناب كي د رب العزة پوښتنه وكړي چي دا بالا شيان زما لپاره په جنت كي د څه سببه دي، خداى پاك ورته ووايي چي دا بالا بود شيان له دې كبله دي چي تا به ماته خواستونه كول يعني د دنيا د يو شي چي هغه كار په ذخيره په جنت كي درته دركړل سو، نو هغه داسي تمنا وكړي چي كاشكي په دنيا كي زما غوښي خلكو په غچيو پرې كولاى او ما خداى ته خواست كولاى او هغه خداى نه قبلولاى او د اخيرت لپاره يې ذخيره كولاى.

(۴) څلورم ځواب: كه څوك اطاعت د خداى د امر نهي وكړي يعني استجابت د خداى د دعوت وكړي، خداى به دده استجابت كړى واى.

(۵) پنځم ځواب: علماء وايي چي استجابت د دعاء ګاهي طول زمان غواړي په علم كي د خداى لكن داعي يې ژر غواړي نو چي خداى د داعي مطلوب بالدعء شى ده ته نه كړي ور، نو دى وايي زما دعاء قبوله نه سوله، فقير وايي الى غيره من الجوابات، حاصل دادى چي روايت سوى دى چي دعاء او عجز و خداى ته عبادت دى كما ورد في الحديث الصحيح "الدعاء مخ العبادة" نو مسلمان ته په كار ده چي د يو ادنٰى شي چي محتاج سي د الله عزوجل څخه دې غواړي د مخلوق طمع دي له زه څخه وباسي، د ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دى قال قال النبي ﷺ ان الله يغضب على من لايسئله ولايفعل ذالك احد غيره تعالى، انتهى.

وَلَوْ بَسَطَ اللَّهُ الرِّزْقَ لِعِبَادِهِ

كه خداى ﷻ فراخه كړي رزق و خپلو بندګانو ته، چي مراد ځني مؤمنان دي، البغوي وايي چي خباب بن الارت وايي چي دا آيت په موږ يعني مساكينو كي نازل سوى دى، ولي چي موږ به و كتل بني قريضه او بني النضير او بني قنقاع ته چي د يهودانو د درو قبيلو نومان دي، يعني چي دا قبيلې په عيش كي د دنيا وې، نو موږ مساكينو هم دا تمنا وكړه چي كاشكي موږ هم په ورته عيش او نوش كي واى، فنزلت هذه الآية ولو بسط الله الرزق لعباده.

لَبَغَوْا فِي الْأَرْضِ

دوی به تکبر او فساد کړی وای په مځکه کي يعني لبغي بعضهم على بعض استيلاءً واستعلاءً، قال ابن عباس رضي الله عنهما بغيهم طلبهم منزلة بعد منزلة ومركبًا بعد مركب وملبسًا بعد ملبس كما هو عادة الاغنياء في الدنيا خصوصًا الكفرة.

**پوه سه**: چي اصل بغي تجاوز دی تر حد د اعتدال او اقتصاد فيما يتجرى كمية وكيفية.

**پوه سه**: چي لزوم د بغي پر بسط باندي بناء پر غالب دی، والا فقد يكون فقيرًا متكبرًا وظالمًا لكن البغوي مع الكبر اقل، ولي چي فقر يې اکثر سبب د انکسار دی والبغي في الاكثر مؤدي الى البغي، حسين کاشفي وايي: واين در غالب است که ذی النورين رضي الله عنه مالدار ترين مردم بود برو گز ايشان بغي وطغيان ظاهر نه شد، و گفته اند مال دنيا بمثال باران است که بر تمام زمين ميبارد و از هر قطعه ازان گياه ديگر رويد ... بيت:

باران که در لطافت طبعش خلاف نيست ........ در باغ لاله رويد ودر شوره بوم

قال عليه الصلوة والسلام: هغه ډېر چي زه ېرېږم پر امت خپل زهرة الدنيا وكثرتها.

ع: .... نفس را بد خونباز ونعمت دنيا مکن.

وَلَٰكِن يُنَزِّلُ بِقَدَرٍ مَّا يَشَاءُ ۚ إِنَّهُ بِعِبَادِهِ خَبِيرٌ بَصِيرٌ

خدای تعالی نازلوي ارزاق ددوی په اندازه د حکمت خپل چي وغواړي، په تحقيق خدای پاک په خپلو بندګانو سره ښه خبر دی او ليدونکی دی چي ددوی ټيټ احوال ورته معلوم دي، او مآل د امورو ددوی هم ورته معلوم دی (کلمه د ما موصوله ده مفعول به ده د ينزل، و بقدر حال دی منه مقدم عليه)

**فائده**: اخرج الحاكم وصححه چي دا آيت په اصحاب صفه ؤ کي نازل سوی دی چي فقراء د مسلمانانو وه او په صفه کي د مسجد نبوي به اوسېدل دوی به ويل: لو ان لنا اموالاً فتمنوا الغنى، وهذا حديث مروي عن علي كرم الله وجهه.

**درويش وايي**: چي مظهري د بغوي رحمه الله يو طويل حديث رانقل کړی دی چي ډېر متشابهات عبارات پکښي دي چي مبتدي بلکې ډېر ملايان يې په تأويل نه پوهېږي،

نو فقیر له دې کبله نه کړی را نقل چې مطالعه کونکي د تفسیر ایوبي د نفع اخستلو په ځای کې واقع نه سي، انما الاعمال بالنیات، حدیث في صحیح البخاري فافهم.

**پوښتنه:** ته خو یې په تأویل سره خبر یې، نو ته یې تأویل و کړه؟

**ځواب:** زه خو یې په خپله تأویل نه سم کولای البته د متأخرینو له کتابو څخه به یې تأویلونه را نقل کوم، زه په خپله بېرېږم چې غلط تأویل را څخه ونسي، ولي د متأخرینو په کتابو کې مختلف تأویلات د مذکوره حدیث کړل سوي دي، زه کوم تأویل را نقل کړم، یا دا چې مطالعه کونکو ته د تفسیر ایوبي څه ګټه نه لري... بیت:

نه مجتهد یم، نه قاضي یم، نه مفتي ... خوشه چین د کتابو د اهل تفسیر یم

حاصل دا چې لوی بار باید ثوک نه کړي په شا امکان لري چې ملا یې ماته کړي.... بیت:

آئے تھے ہم مثل بلبل سیر گلشن کر چلے .... دیکھ مالی باغ اپنا ہم تو اپنے گھر چلے

**وَهُوَ الَّذِیْ یُنَزِّلُ الْغَیْثَ**

خدای هغه مقتدر خدای دی چې نازلوي باران.

**پوه سه:** چې غیث هغه نافع باران ته وایي چې خلک وساتي له جدت څخه ای القحط.

**پوه سه:** چې جمله د وهو الذي عطف ده پر وهو الذي یقبل التوبة آه باندي، او په مابین کې جمله شرطیه یعني ولو بسط الله آه جمله معترضه ده.

**مِنْ بَعْدِ مَا قَنَطُوْا وَیَنْشُرُ رَحْمَتَهٗ ؕ وَهُوَ الْوَلِیُّ الْحَمِیْدُ ﴿۲۸﴾**

چې خلک له نزول څخه د باران نا امیده سوي وي... بیت:

چه خوش باشد که بعد از انتظاری .... بامید رسد امید اوری

"وینشر رحمته" او وېشي پر خلکو خپل رحمت چې باران دی یا مراد له رحمت څخه رزق دی په سهل ځمکه کې او په غرو او ښاره ځمکو کې من النباتات للانس والحیوانات "وهو الولي الحمید" خدای دی چې تولی او تصرف کوي د خپل مخلوق په احسان سره او په نشر د باران، او خدای مستحق د حمد دی في ذاته وعلی احسانه، یعني اولاً خدای مستحق د حمد دی في ذاته ولو لم یجده احد او بیا په احسان سره، روی عن عمر ﷺ چې چا ورته وویل: اشتد القحط

وقنط الناس (سخته سوه کاختي د باران او خلګ هم نا اميده سوه له باران څخه) فقال مطروا اذن (باران به وسي چي قحط سخت سو، او خګ نا اميده سوه واشار الى هذه الآية.. مثنوي معنوي:

تا فرود آيد بلايي دافعي .... چون نباشد از تضرع شافعي

تا سقاهم وبهم آيد خطاب .... تشنه باش والله اعلم بالصواب

وفي الحديث القدسي: لو ان عبادي اطاعوني سقيتهم المطر ليلاً (زه پر اوروم باران د شپې، يعني دوی به غمه خپل خوب وکړي او کالي يې په اوبو لانده نه سي) واطلعتم الشمس (او پر دوی راخېژوم لمر د ورځي تاچي خپل کار او کسب وکړي، تجارت، مزدوري، دکانداري وغيره) وما اسمعتم (او زه په دوی د تالندي اواز نه اورم، ولي چي دوی به د تالندي د رږغ په وخت کي په خواږه خوب بيده وي) وجاء في الحديث الصحيح المرفوع: ما من سنة بامطر من الاخرى (نسته يو کال چي ډېر باران دي پکښي اوري تر بل کال) لكن اذا عمل قوم بالمعاصي حول الله ذالک الى غيرهم (لکن چي عمل وکړي يو قوم د ګنهو خدایٔ د غه حصه باران د دوی وبل چاته واړوي) فاذا عصوا جميعًا صرف الله ذالک الى الضيافي والبحار (او چي ټوله په عصيان اخته وي خدایٔ هغه د دوی برخه باران واړوي و بيابانو او دريابو ته)

**درويش وايي:** چي صاحب د روح البيان الشيخ اسماعيل حقي البرسوي چي وفات يې په (۱۱۷۲ هـ) کي سوی دی په خپل تفسير کي وايي چي انسان بايد لايضحک دائمًا يعني چي په حالت کي د بسط وي، ولايبكي دائمًا چي حال د قبض وي، يعني بسط او قبض يتعاقبان على الانسان، ده د خپل ځان يوه قصه رانقل کړې ده، دی وايي چي ډاکوګانو د عرب غارت وکړی په لاره کي د شام نو زه هم په دغو حاجيانو کي وم، نو ما په خپل اختيار سره ټوله ما معي من الاموال والنقود ځان مي مجرد کړی يو قميص او يو پرتوګ مي اغوستی ؤ په دې سبب چي غله د بنمنان د مال دي، فمشيت على وجهي ماته په زړه کي وويل سول چي پر راسته طرف ولاړ سه، ما هم هغسي وکړه حتى لم يبقى لي طاقة على المشي من الجوع والعطش، نو زه د لوږي او د تندي له کبله غښار سوم پر ريګ باندي او له

ژوندەنا امیدە سوم، ولیس معي احد الا الله تعالی فقیل لي في سمعي یعني ماتە
پە غوږ کي وویل سول یعني ما واورېدل .. قول الشاعر:

عسی الکرب الذی امسیت فیه .... یکون لمرثه فرج قریب
فخرج الله بعد ساعات مما یطول بیانه بل یجب اخفائه.

وَمِنْ اٰيٰتِهٖ خَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

او بعض د دلائل د قدرت تامه او د توحید د خدای و صفات جلاله وجماله.
پیدا کول د اسمانو او د مځکي دي، ولي چي اسمانونه او مځکه په خپل ذات او
صفاتو او حالاتو دلالت کوي پر وجود د صانع حکیم قادر مطلق بلا مشارکة احد
في خلقه. کریمه: لو کان فیهما آلهة الا الله لفسدتا. فقیر ترجمه په بعض سره وکړه
یعني من یې د تبعیض لپاره وبالله لان دلائل قدرته الکاملة وتوحید و وجوب
وجوده لیست منحصرة في خلق السمٰوات آه. قال السعدي الشیرازي قدس سره:

برگ درختان سبز درنظر هوشیار ..... هر ورقی دفتریست معرفت کردگار

وَمَا بَثَّ فِيْهِمَا مِنْ دَآبَّةٍ ط

او هغه چي خدای متفرق کړي دي په مځکه کي.

**فائده:** وما من عطف دی پر سمٰوات یا پر خلق، او دابة په اصل کي ما یدب
علی الارض ته وایي (چي حرکت کوي پر مځکه، نو چونکه حرکت پر مځکه سبب
یې حیوة دی نو لفظ د دابة په معنی د حيْ دی یعني اطلاق د اسم د مسبب دی پر
سبب، نو پر دې تقدیر یشمل لفظ الدابة للملائکة والجن والانس والشیاطین
وسائر الیحوانات.

**درویش وایي:** چي ابن المنیر″ پر دې باندي سخت اعتراض او انکار کړی دی،
ده ویلي دي چي اطلاق د دابة علی الاناسي بعید في عرف اللغة فضلاً علی
الملائکة. ده ویلي دي اصح داده دأب في الأرض علی عرف اللغة لاغیر.

**سوال:** دواب په معنی لغوي سره خو یوازي په مځکه کي دی په آیت کي خو ما
بث فیهما راغلی دی یعني په اسمانو او مځکه کي، نو په اسمانو کي خو دابة په
معنی لغوي نسته؟

**ځواب:** ابن المنير ؒ د دې په ځواب کې ويلي دي چې ما في احد الشيئين لکه دواب په مځکه کې دا پر صادق کېږي چې په دواړو کې چې دي يعني په اسمانو او مځکه کې في الجملة کما في قوله تعالى: يخرج اللؤلؤ والمرجان يخرجان من الملح، والدليل على قول ابن المنير ؒ قوله تعالى في سورة البقرة: وبث فيها (اى في الارض) من كل دابة.

القول الفصيل: درويش وايي چې که نظر وکړل سي و معنٰى لغوي ته د دابة، نو قول د ابن المنير ؒ پر ذروة د تحقيق دی، او که نظر و بيان ته د قدرت شامله د بيان د الله عزوجل، نو هغه د مخه معنٰى چې ذکر مسبب دی مراد ځندي سبب دی اولى بالارادی، والله اعلم بالصواب واليه المرجع والمآب.

وَهُوَ عَلٰى جَمْعِهِمْ اِذَا يَشَآءُ قَدِيْرٌ ﴿٢٩﴾

او هغه پر ټولولـه هغـه ټـه بانـدي چـي اراده يې سي قدرت لرونکى دى. يعني فيجمعهم يوم القيامة.

وَمَآ اَصَابَكُمْ مِّنْ مُّصِيْبَةٍ فَبِمَا كَسَبَتْ اَيْدِيْكُمْ

**پوه سه:** چي کلمه د شرطيه يا موصوله ده متضمن معنٰى لره د شرط ده، هم دا سبب دی چي په خبر کي يې فاء راوړه.

ترجمه: هغه شى چي تاسي ته ورسېږي د يو مصيبت څخه، تنوين د مصيبت لپاره د تحقير دى، يعني که څه هم لږ مصيبت وي په سبب د هغو معاصيو چي تاسي کړي وي.

وَيَعْفُوْا عَنْ كَثِيْرٍ ﴿٣٠﴾

او خداى عفو کوي د ډېرو ګنهو، يعني په عوض کي مصيبت نه د رنازلوي، الحسن ؒ وايي چي دا آيت نازل سو قال رسول الله ﷺ والذي نفسي بيده، زما دي قسم وي په هغه خداى ؒ چي زما روح د ده په قدرت کي دى، ما من خدش (يو ځوز چي په سرې جگ سي) ولا عنترة قدم (يا نوک ووهي يا يې پښه و ښويږي) ولا اختلاج غرق (يا يو رګ يې حرکت وکړي) الا بذنب (مګر د يوې ګناه په سبب دى)

وما عنه اكثر، الديفاوي" وايي چي دا آيت مخصوص دی په مجرمينو سره يعني په ګناه کارانو سره و اما غيرهم لکه کامل مسلمانان او اولياء الله هغه ته چي مصيبت رسيږي هغه د نورو اسبابو له کبله يعني يا اجر عظيم ورکوي په سبب د صبر پر هغه مصيبت، الا ترٰی ايوب عليه السلام مبتلا سو په ډېري ناجوړی حتی چي بدن يې چينجيان وکړه چي قصه يې مشهوره ده او مخته تاسي ته په تفسير کي تېره سوه، نو دا خو سبب د ګناه نه ؤ بلکې لپاره د رفع د درجاتو دده، لان الانبياء عليهم السلام معصومون من المعاصي (درويش په دې باره کي يوه رساله ليکلې ده چي نوم يې کشف الغطاء عن عصمة الانبياء چي يو وار دمخه چاپ سوې وه او اوس به بيا عنقريب ان شاء الله تعالی له چاپه راووځي، په ذريعه د مکتبة القرائت والتجويد للقاري فضل الحق سامحه الباري چي اوله طبعه يې تقريبًا و درجې ته د غايت ندرة رسېدلې وه او غوښتونکي يې ښځي ډېر وه)

البغوي" وايي قال عکرمه" ما من نکبة اصاب عبدًا فما فوقها الا بذنب لم يکن الله ليغفره الا بها او درجة لم يکن الله ليبلغه الا به، وروی البغوي" بسنده عن علي رضي الله عنه چي ده و خلګو ته وويل چي زه تاسي خبر نه کړم په افضل آيت سره د کتاب الله عزوجل چي ما ته بيان کړی دی رسول الله صلی الله عليه وسلم هغه آيت "وما اصابکم من مصيبة فبما کسبت ايديکم ويعفوا عن کثير" کما مر مع الترجمة، او رسول الله صلی الله عليه وسلم وويل سافسرها لک يا علي (ژر دی چي زه به د هغه تفسير درته وکړم ای علي (هغه دادی) يا علي ما اصابکم.

**درويش وايي:** چي که څه هم مخاطب علي رضي الله عنه ؤ لکن د دې سببه چي احکام د شريعت عام دي، نو که عليه الصلوة والسلام ضمير د کم جمع راوړی دی من مرض او عقوبة (مرض تر عقوبت عام دی) او بلاء في الدنيا فبما کسبت ايديکم والله اکرم من ان يثني عليهم العقوبة في الآخرة (او خدای" ډېر مهربان دی چي پر فاعل د ګناه دي پر کونکو د ګنهو دي عذاب مکرر وګرځوي په اخرت کي) وما عفا الله في الدنيا فالله احکم ان يعود (ای جزاء ته د هغې ګناه چي ده عفو په دنيا کي و بنده ته کړې وه، رواه احمد وغيره.

**پوهه**: چي حكيم الترمذي" په نوادر الاصول كي وايي چي بلا پر درې قسمه ده (۱) تعجيل العقوبة للعبد، لكه يوسف ﷺ ته چي پيښه سوه من لبثه في السجن بقوله واذكرني عند ربك فانساه الشيطان ذكر ربه ولبث في السجن بضع سنين (۲) دده امتحان تاچي ښكاره سي دده ما في الضمير او خلكو ته دده په نېز د خداى" كما نازل بايوب ﷺ قال الله تعالى انا وجدناه صابرًا نعم العبد انه اواب (۳) چي دده كرامت ښكاره سي او قرب الى الله تعالى كما نزل بيحيى بن زكريا عليهما السلام مع ان يحيى" لم يعمل خطيئة ولم يهم بها فذبح ذبيحًا او دده سريې و يو رنډۍ ته د بني اسرائيلو په لاس وركړى.

**فائده**: رسول الله ﷺ د ټولو ورته عقوباتو څخه پناه غوښتې حيث قال واسئل الله العافية من كل بلية.

وَمَآ أَنتُم بِمُعْجِزِينَ فِى ٱلْأَرْضِ ۖ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ مِن وَلِىٍّ وَلَا نَصِيرٍ ﴿٣١﴾

تاسي نه ياست عاجزه كونكي د د خداى په مځكه كي چي پر تاسي باندي دي ما اراد من المصائب نه كړي نازل، او نسته تاسي لره ماسوى له خداى" څخه يو دوست چي تاسي دي عقوبت څخه د خداى وساتي او نه كومكي چي عذاب د خداى ستاسي څخه دفع كړي بالغلبة والقهر.

**فائده**: دا جمله حال ده له مفعول څخه د ما اصابكم او پر دې جمله عطف دى قوله تعالى "ومن آياته"

**پوهه**: چي په مابين كي د ولي او نصير عموم و خصوص من وجه دي ولايخفى على الذكي مادتى الافتراق ومادة الاجتماع، فتدبر فيها.

وَمِنْ ءَايَٰتِهِ ٱلْجَوَارِ فِى ٱلْبَحْرِ كَٱلْأَعْلَٰمِ ﴿٣٢﴾

د خداى د دلائلو څخه د قدرت كامله دده دي دريابونه (كلمه د من لپاره د تبعيض ده ولي چي آيات د قدرت د خداى" لاتعد ولا تحصى دي چي جوار مذكوره يې بعض دي.

**پوهه**: چي جوار جمع د جارية ده چي مراد څني كښتياني دي په درياب كي "كالاعلام" لكه غرونه، دا صفت د جوار دى، وجه التشبيه يې د غرو سره داده چي په كښتيو كي ډېر خلك او هغه خوراكي مواد او تجارتي مالونه پكښې وي.

إِنْ يَشَأْ يُسْكِنِ الرِّيحَ فَيَظْلَلْنَ رَوَاكِدَ عَلَىٰ ظَهْرِهِ

که د خدای اراده سي باد به ودروي چي هغه سبب د جريان د کښتئ دی، نو به وګرځي ولاړي ته پر شا د درياب، يعني حرکت به کوي پر يو خوا ولي چي د کښتئ حرکت په باد سره مربوط ؤ او باد خو ودرېدی.

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِكُلِّ صَبَّارٍ شَكُورٍ ﴿٣٣﴾

په دغه مذکوره بيان د کښتيو دلائل دي د قدرت رباني هر هغه چا لره چي پر مصائبو صبر کوي او د نعمتو د الله عزوجل شکر وايي، دواړه لفظه لپاره د مبالغې دي ای کثير الصبر و کثير الشکر مراد ځني مؤمنان دي، قال رسول الله ﷺ الايمان نصفان نصفه في الصبر ونصفه في الشکر.

**فائده**: دا جمله معترضه ده په مابين کي د احوال د کښتئ.

أَوْ يُوبِقْهُنَّ بِمَا كَسَبُوا وَيَعْفُ عَنْ كَثِيرٍ ﴿٣٤﴾

عطف دی على يظللن يعني که خدای دوام ورکړي و سکون ته د ريح، نو دا کښتئ به هلاکي کړي، يعني اهل د کښتيو، او کلمه د بما سببيه ده او يا مصدريه ده ای کسببهم منْ الشرک والمعاصي. او يا ما موصوله دی عائد يې محذوف دی ای بما کسبوه، او نجات ورکوي بعض کسانو ته، چي سواريان د کښتيو دي. عفو کوي نو کښتئ يې غرقه نه سي بلکې سالمه د سواريانو سره تر درياب راووځي.

وَيَعْلَمَ الَّذِينَ يُجَادِلُونَ فِي آيَاتِنَا مَا لَهُمْ مِنْ مَحِيصٍ ﴿٣٥﴾

او چي پوه سي هغه کسان چي ناحقه بحثونه کوي زموږ په آياتو کي په تکذيب او په ابطال سره يعني چي زموږ آيات قرآنيه له منځه ځخه يوسي، نشته دوی لره ځای د خلاصون له عذابه ځخه د خدای؛ والمعنى ای يعلمون چي ودوی ته معلومه سي يعني هغه کسانو ته چي تکذيب د قرآن د آياتو يې کاوه او اعتبار يې ن ورکاوه و آياتو ته د رحمان چي دوی خدای لره ورسي بعد البعث چي ځای د تېښتي له عذاب ځخه د خدای نشته دوی لره.

**پوه سه**: چي ليعلم الذين عطف دی پر علت مقدره مثل لينتقم الله منهم وليعلم.

فَمَآ اُوْتِيْتُمْ مِّنْ شَيْءٍ فَمَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا

هغه شی چي تاسي ته در کړه کېږي (يعني په دنيا کي من المال والنعم والعيش وغيرها) د نفع شيان دي د دنيا چي تاسي به نفع پر اخلئ په دې نژدې ژوند کي.

**پوهسه:** چي دنيا صفت دی د حيوة، نو که دنيا مشتق وي د دنو چي معنی يې نژدېوالی ده، نو د دنيا معنی قريبي يعني تر اخروي ژوند نژدې ده او که دنيا مشتق د دنائت څخه سي چي معنی يې حقارت دی، نو حاصل دا دی چي يو څو ورځي به نفع پر واخلي مدة حياتکم يا به تاسي څني ځئ، او ما اوتيتم به پاتېږي يعني د آخرت تو بنه يې نه وي، نو مسلمان د دې په طلب کي بايد ډېر حريص نه وي بلکې په قدر د ضرورت يې طالب وي.

**درويش وايي:** چي په اوسنی زمانه کي پر ما يکفی صبر کول ډېر شاذ او نادر دی الا من شاء الله تعالی.

وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ وَّاَبْقٰى

او هغه شيان چي د خدای سره دي، چي جنت و نعيمها دي هغه ډېر بنه دي تر نعمتو د دنيا.

**پوهسه:** چي نعمتونه د آخرت کمًا و کيفًا تر نعمتو د دنيا ډېر دي يعني په عدد کي هم پراخه دي لان جميع تلک النعم مقدارها في علم الله او تر ټولو نعمتو د دنيا په خوند کي او په لذت کي هم تر بالا دي.

لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ ﴿٣٦﴾

د هغه خلکو لپاره چي ايمان يې راوړی وي او توکل او اعتماد يې پر کړی وي پر خدای، والحاصل في هذه الآية بيان ان المؤمن والكافر سره برابر دي في ان الدنيا متاع لهما يتمتعان بها فاذا صاروا الى الآخرة كان ما عند الله خير للمؤمنين وعذاب للكافرين.

وَالَّذِيْنَ يَجْتَنِبُوْنَ كَبٰٓئِرَ الْاِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ

او هغه کسان چي پرهېز کوي د لويو څخه د گنهو، دا جمله عطف ده پر هغه جمله للذين آمنوا، بعض مفسرين وايي چي فواحش تفسير د کبائرو دی، او السدي وايي هي الزنی.

**سوال:** فواحش څو جمع ده او زنٰی څو يو فعل دی؟

**جواب:** جمعيت يې په اعتبار د فاعلانو د زنٰی دی، او مقاتلؒ وايي چې فواحش هغو ګنهو ته وايي چې حد شرعي پکښې لازم وي لکه زنٰی، سرقه، قطع الطريق وغيرها، په کشف الاسرار کې وايي چې اضافت د کبائر يې واثم ته وکړی فان الاثم هي الصغيرة وهي مغفورة اذا اجتنب الکبائر، د مثال په توګه مسه کول د ښځې يا مچه څنې اخستل صغيره دي او زنی يې کبيره ده کما في قوله ان تجتنبوا کبائر ما تنهون عنه نکفر عنکم سيئاتکم، او ترجمان القرآن عبد الله بن عباس رضی الله عنه وايي چې کبائر الاثم تولـه معاصي المؤبقة ته وايي وهي الشرک بالله اي الکفر مطلقًا که څه هم عبادت د بت نه وي (١) وقتل النفس بغير حق سواء کان نفسه او غيره (٢) وقذف المحصنة (يعني نسبت د زنٰی کوي دی و هغې ښځې ته چې مکلفه يعني صغيره نه وي او مسلمانه وي او زنٰی او نور قبائح افعال هم نه وي پکښې (٣) والزنٰی (چې معنی يې ده وطي کول په قبل کې د ښځې چې خالي وي د ملک النکاح او ملک اليمين څخه، نو وطي د خرې وغيره من البهائم واللواطة زنٰی نه ده) (۴) والسحر ويقتل الساحر ذکرًا او انثی اذا کان سعيه بالافساد يعني په مځکه کې فساد کوي او خلک په سحر هلاکوي (٥) واکل مال اليتيم (يعني الا باجازة الشرع لکه، د يتيم د باغ باغواني چې خپل مزدوري څنې خوري، قال الله تعالی ولاتقربوا مال اليتيم الا بالتي هي احسن (۶) وعقوق الوالدين المسلمين او احدهما الا اذا کان مؤديًا الی اضاعة حق الله لکه مثلاً پلار زوی ته ووايي ورسه فلانی سړی مړ کړه (يعني بغير حق) والا فلا طاعة لمخلوق في معصية الخالق، او که والدين کافران وه نو په کفر کې دې په خوله نه کوي او نور احسان دې ورسره کوي (٧) والالحاد في الحرم او ګناه کول په حرم شريف کې ولو صغيرة فالکبيرة فيه کبيرتان (٨) واکل الربوا.

**پوه سه:** چې مراد د اکل څخه اخستل دي د سود که يې خوري که يې په بل مصرف کې صرفوي.

**نکته:** اکل يې ذکر کړی لانه معظم منافعه (٩) والسرقة.

**پوه سه:** چې نصاب د سرقة يعني غلا په نېز د امام المسلمين ابو حنيفة غفرله

الباري قدر عشرة دراهم عينًا كان او قيمة وهذا نصاب السرقة في حق قطع اليد او په باره کي کي د ګناه کم تر عشرة دراهم ګناه ده (١٠) وشرب الخمر وبيعه وشرائه.

**درویش وايي:** چي د خمر په باره کي مسائل او ماهيت د شرابو د فقه شريفي په كتابو كي مطالعه كړئ (١١) وقطع الطريق: لار قطع كول پر مسافرو خصوصًا اذا كان مع اخذ اموالهم فانه فوق السرقة (١٢) وشهادة الزور: او شاهدي په دروا غو اداء كول چي په صحيح حديث كي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام چي په لړ كي د كبيره ګنهو شهادة الزور ته راورسېدى داسي يې وويل: الا وشهادة الزور درې واره يې دا كلمه مكرره وويل (١٣) واليمين الغموس.

**پوه سه:** چي يمين غموس هغه قسم ته وايي چي پر ما مضى كار باندي ناحقه قسم واخلي يعني دى په خبر وي چي داسي نه ده پيښه، پر دې قسم په نېز د امام اعظمؒ كفاره نسته بېله توبې، او بل قسم يمين لغو دى چي پر ما مضى شي باندي قسم واخلي چي دده په خيال ځان صادق بولي او په واقع كي هغه شى نه وي په دې قسم كي نه ګناه سته او نه كفاره سته، دريم قسم يمين منعقدة دى چي پر مستقبل شي باندي قسم واخلي مثلاً بالله چي زه د راتلونكي جمعې په ورځ روژه نسم، نو حكم يې دادى چي كه يې روژه ونيول خو خبره خلاصه سول او كه يې روژه نه ونيول قضاء يې هم پر سته او ګناه هم ده لهتك حرمة اسم الله تعالى.

(١٤) وسوء الظن بالله: بد ګماني پر الله عزوجل (١٥) حب الدنيا: د دنيا محبت يعني امور شرعيه لكه د جماعت لمونځ پر قضاء كول يا درواغ ويل يا ناحقه قسمونه اخستل، نفس محبت يې ګناه كبيره نه ده، عبد الرحمن باباؒ وايي:

ښه ده ښه ده دا دنيا چي توښه ده د عقبٰى
كه فقير ته يې وركړې فقير درومي په خندا

مطلب دادى چي په نيت د ښو كارو د دنيا سره محبت كول يعني چي مثلاً يو مسجد په جوړ كړم يا د يو قريب سره صلة الرحم په وكړم يا به حج يا عمره په وكړم يا نور ورته كارونه به وكړم، نو داسي محبت د دنيا ګناه كبيره نه ده بلكي صغيره هم نه ده (١٦) وسب الرجل والديه: كه بې واسطې وي لكه په اوسني زمانه كي بعض جهال مور او پلار ته او يا يوه ته د دوى ښكنځل وكړي، يا په واسطه سره مثلاً يو سړى د چا

مور او پلار ته ښکنځل وکړي هغه سړی دده مور او پلار ته ښکنځل وکړي، نو ګویا ده ښکنځل خپل مور او پلار ته وکړه (۱۷) ازار رسول دي و علیه الصلوة والسلام ته، که څه هم وروسته تر مرګ وي. فان هذه الاذیة فوق عقوق الوالدین (۱۸) سب و دوو زومانو ته د علیه الصلوة والسلام یعني عثمان او علي ﷺ، په خلاصه کي وایي کفر نه دی، لکن دا خبره مشکل ده لان سب اهل العلم عمومًا اذا کان کفرًا فکیف لایکون سب الختنین کفرًا (۱۹) سب العالم بالعلوم الدینیة علی وجه المزاح کبیرة، تعزیر دي قاضي ورکړي (۲۰) الاصرار علی الصغیرة: ولي چي په حدیث شریف کي راغلي دي چي لاصغیرة مع الاصرار ولا کبیرة مع الاستغفار، انتهی.

**درویش وايي:** چي ددې سبب دادی چي استغفار چي دی وایي نو په معنی کي دی پر هغه ګناه پښېمانه دی، والندم هو التوبة (۲۱) ومنها الغنا: یعني سرود، علاؤ الدین الترکستاني الحنفيؒ په منظومه کي وایي چي غناء له کبائرو ګنهو څخه ده وهو رفع الصوت بالاشعار والابیات علی وجه مخصوص.

**درویش وايي:** چي لکه ددې زمانې په ودو کي چي بعض جاهلان یې کوي چي د نرو مېلمنو لپاره په اصطلاح شوقیان راولي چي ربابونه، تبلې او باجې ورسره وي، او د ښځو لپاره مسلیانې چي ښځې دي غزلي وایي، امام همام ابو حامد محمد الغزاليؒ په احیاء العلوم کي وایي: واحتجوا علی حرمة الغناء بما رواه ابو امامة ﷺ عن النبي ﷺ انه قال ما رفع احد صوته بالغناء (یعني علی الوجه المذکور) الا بعث الله له شیطانین علی منکبیه یضربان باعقابها علی صدره حتی یمسک.

**درویش وايي:** چي مراد له شیطانانو څخه هغه شی دی چي حرکت ورکوي زړه ته بما هو مراد الشیطان من الشهوة ومحبة النساء الی غیر ذالک لا ما یتحرک الشوق الی الله تعالی کاشعار اهل الله من العاشقین (۲۲) ومنها الظلم (۲۳) ومنها الغیبة والبهتان (۲۴) والتجسس: د چا د بدو افعالو پلټنه کول (۲۵) والتخفیف: کمښت کول په ترازو کي یا په پیمانه کي شی کم ورکول (۲۶) والکبر: کبر کول والعجب خود بیني کول او تر چا ځان غټ ګڼل (۲۷) والحسد: د چا سره حسد کول یعني حب زوال النعمة منه (۲۸) ترک الوفاء بالعهد چي د چا سره وعده نه پر ځای کوي (۲۹) ترک الصوم بلا عذر (۳۰) ترک

الزكوة: يعني د نقود وغيرها زكوة نه وركول (۳۱) والحج: حج پر فرض وي د هغه نه كول چي مانع نه وي (۳۲) هېرول د قرآن كريم. فقهاءٌ وايي چي په قرآن كريم كي نسي ويلاى لا مجرد عدم الحفظ (۳۳) پټول د شاهدى ولو كان على قريبه من الاب والاخ وغيرهما (۳۴) قطع د صله رحمي عند الاحتياج (۳۵) والسعي بين الاثنين بالفساد چي د دوو كسانو په منځ كي شيطانت كوي (۳۶) والحب لغير الله (۳۷) والسجدة للمخلوق كالصنم يا رئيس ته د قوم (۳۸) والحلف بغير الله. قسم په ماسوا د خداىؒ اخستل. لكه پښتانه چي وايي زما دي په كعبه شريفه قسم وي و الى غير ذالک، حتى پښتانه وايي چي زما دي په شاه آغا قسم وي.

**سوال:** په محاكمو كي د افغانستان به قرآن كريم ايښوول كېدى، نو قرآن كريم خو هم غير الله دى، نو قاضيانو ولي په قرآن كريم سره قسم وركاوه؟

**ځواب:** قاضيانو به داسي ويل چي ستا دي قسم په الله عزوجل وي او پر دې قرآن كريم لاس كښېږده.

**حكايت:** په افغانستان كي د دوو كسانو سره دعوه وه، يو منكر ؤ يعني مدعي عليه، نو دوى فقير ته راغله، نو فقير منكر ته وويل چي ته به وايي چي زما دي قسم په خداى وي او پر دې قرآن لاس كښېږده، منكر راته وويل والله بالله كه د مدعى دعوى پر ما حق ده لكن قرآن والله كه واخلم چي دا ويا له راكوي.

**حكايت:** يوه بله ورځ هم دوه كسان په مخاصمت كي فقير ته راغلل چي مدعي شاهدان نه درلوده ما مدعى عليه ته وويل چي پر تا قسم كېږي په نامه د خداىؒ جانب مخالف يعني مدعي راته وويل چي ته څرنګه قسم وركوې؟ ما ورته وويل چي په خداىؒ به قسم اخلي او پر قرآن كريم به لاس ايږدي، نو مدعي راته وويل چي پر ما دې سړي ډېر ظلم كړى دى ته داسي قسم ورته كښېږده چي د دې سړي كور ورخراب كړي. فقير ورته وويل چي هغه نو كوم قسم دى؟ مدعي راته وويل چي دى دي د شاه آغا و خوا ته داووه ګامه ولاړ سي پر اووم ګام دي ووايي چي زما دي په شاه آغا قسم وي كه د ده دعوه پر ما صحيح ده چي شاه آغا يې كور ورخراب كړي. فقير ورته وويل چي د داسي قسم په شرع كي حق نه پر لري. سړى راهي سو چي بل قسم زه نه وركوم (وذالک لغاية جهله)

**پوښتنه**: دا جهالت په پښتنو کي له څه پیدا دی؟

**ځواب**: د کوچنیو الي څخه دوی پر هر شي وايي والله بالله که دا کار داسي دی، نو د خدای د نامه عزت او عظمت د دوی له زړو څخه وتلی دی ولي چي عادت سوي يې دي، له ابو هریره یا غیره څخه روایت دی چي صحابه کرامو به خپل کوچنیان پر دې کلمه وهل یعني والله بالله تاچي عادت يې نسي، والله اعلم.

(۳۹) وترک الجمعة والجماعة: چي عذر نه لري قصداً يې نه کوي (۴۰) ان یقول لمسلم یا کافراً یا یهودي وغیر ذالک (۴۱) او د امیر جائر (یعني ظالم) سره مصادقت یعني همکاري ورسره کول (۴۲) ونکاح الکف: یعني په لاس کي ځان انزالول، په یو حدیث کي راغلي دي ''ناکح الید ملعون'' کذا في شرح المنار لابن الملک، لکن امام رهاوي وايي: لم اجد في کتب الحدیث وانما ذکره المشائخ في حواشي البخاري، الاستمناء بالید حرام (ای تحریماً) نو له ګناه کبائرو څخه ده لقوله تعالی: والذین هم لفروجهم حافظون الا علی ازواجهم او ما ملکت ایمانهم الی قوله تعالی: فاؤلئک هم العادون ای المتجاوزون من الحلال الی الحرام، نو ناکح الید خو په ماوراء کي داخل دی.

**مسئله**: په نیز د امام اعظم او د امام احمد استمناء بالید روا ده چي سړی پر ځان له فتني څخه بیرېږي ای الزنی، او یا مراد تسکین د شهوت یعني لا لمجرد اللذة، وکذا یباح الاستمناء بید امرئته او امته عند الضرورة مثلاً ماینه يې ناجوړې وي د جماع طاقت نه لري وهکذا الامة (۴۳) والقصاص بغیر عدل: مثلاً یو چا د بل سړي زوی یا ورور وژلی ؤ او حکومت اسلامي نه وي په ملک کي، نو د مقتول وارث په خپله قصاص اخستلو ته مجبور ؤ نو چي قدرت يې پر قاتل پیدا کړی اول يې پزه او غوږونه مثلاً ځني پرېکړه بیا يې قتل کړی او سره دديې چي قاتل داغسي نه وه کړي (۴۴) والخلوة بالاجنبیة: د بیګانه ښځي سره خلوت کول (یعني چي مانع د جماع نه وي او ډېر سالخورده سپین ږیری نه وي) (۴۵) د خپلي ماینې سره د حیض په وخت کي جماع کول، یعني په فرج کي نه تر فرج لاندي په ورنو کي (۴۶) وترک العدل في القسم یعني د سړي متعدد دي ماینې وي، نوبت یعني شپه تېرول د هري یوې سره نه کوي.

**مسئله**: په محبت قلبي د يوې سره ګناه نه ده، ولي چې دا محبت په اختيار دده نه دی، او داغه رنګه د يوې مايني سره په نوبت کې د هغې جماع ورسره کوي او د بل مايني سره جماع نه کوي مثلاً يا سپين سرې وي يا ډېره بدرنګه وي، ولي چې آله د جماعو دده په اختيار کې نه ده (۴۷) د حيوان مثلاً د خرې يا د يو بل حيوان سره جماع کول.

**حکايت**: يو جاهل باحکام الشرع چې ډېر زاهد او عابد ؤ او مايني يې نه درلوده، نو يوه خره يې درلودل چې دده مريدانو به يې ډېر خدمت کاوه، يو وخت يو عالم دده د زهد په سبب دده ملاقات ته ورغلی ؤ هغه عالم چې فکر وکړی چې دا د زاهد مريدان ددې خرې ولې دومره خدمت کوي او دا زاهد ماينه ولې نه کوي؟ حتی چې عالم په يو فرصت او خلوت کې له دې زاهد څخه پوښتنه وکړه چې تا ماينه ولې نه ده کړې؟ زاهد په جواب کې ورته وويل چې د خدای له ذکر څخه پر وځم، ماينه خو نفقه غواړي او که يې عيالونه پيدا سي هغه هم نفقه او کالي او فراش مثلاً کمبله، تلتک وغيره غواړي، بيا عالم ورته وويل چې دا خره نو څه کوي؟ جاهد زاهد ورته وويل چې ګاهې چې شهوت زور راباندې وکړي نو د دغې خرې سره جماع وکړم، نو عالم ده ته وويل چې ماينه کول سنت د انبياء عليهم السلام دی او د مايني او د عيال نفقه وغيره خو عبادت موجب د ثواب دی، او د خرې سره جماع کول خو حرام قطعي دی، نو هغه زاهد دستي طلب د نکاح وکړی ماينه يې پيدا کړه او خره يې خرڅه کړه (۴۸) واللواطة ولو کان مع زوجته (۴۹) او له کبائرو ګنهو څخه دی تصديق د کاهن يعني غيب ګوی چې د امور آتيه ؤ بيان کوي، نو که يې څوک تصديق وکړي هغه ګناه کبيره ده (۵۰) ومنها القمار: پر هر شي که پر کتار وي چې څوارلس ګيټې پر ايږدي او که پر شترنج وي او که د کرکانو يا د زرکو پر جنګو وي او يا پر بل شي، قال صاحب الهدايهؒ يكره اللعب بالترد والشطرنج والاربعة عشر لانه ان كان قامر بها فالميسر (يعني قمار حرام دی بالنص او ميسر د هر قمار نوم دی) وان لم يقامر بها فهو عبث وان لم يكن كبيرة، او امام شافعيؒ يې لپاره د تېزوالي د اذهانو مباح بولي خلافاً لابی حنيفةؒ (۵۱) او بل له ګناهو څخه نياحة دی يعني پر مړي په زوره چغې وهل يا کالي پر ځان څېرل يا د سر وېښتان شکول لکه د

بعض ښځو چي عادت دی او مباح يې ګڼل (يو دادی چي په وخت کي د مصيبت د
سړي اوښکي تر سترګو راځي هغه غير اختياري دي ګناه نه ده، په بخاري وغيره
کي راغلي دي په روايت د ابن مسعودﷺ چي ابراهيمﷺ چي د رسول اللهﷺ
اخيري زوی ؤ د ماريهﷺ څخه چي د دايي په کور کي رضيع ؤ د شېدو مياشتو په
شاوخوا کي ناجوړی سو او عليه الصلوة والسلام يې پوښتني ته ورغلی او د
ابراهيم؆ زکندن ؤ عليه الصلوة والسلام په غېږ کي کښېښوی او تر سترګو مبارکو
يې اوښکي جاري سوې، يو صحابي؆ ورته وويل وانت يا رسول اللهﷺ؟ يعني ته
هم ژاړې، د هغه صحابي دا خيال ؤ چي مطلق ژړا به ممنوع وي. عليه الصلوة
والسلام ورته وويل هذه رحمة دا ژړا يعني نفس اوښکي تويول رحمت دی. وانما
يرحم الله من عباده الرحماء ثم اتبعه باخرى وقال انا بفراقک يا ابراهيم لمحزون
ولا نقول الا انا لله وانا اليه راجعون او کما قال رسول اللهﷺ (۵۲) بلکه ګناه کبيره
اظهار د صلاح دی او اخفاء د فسق ده لکه بعض ټګان پيران چي يې کوي.

**تاريخ وايي:** وايي چي يو ټګ پير ؤ چي ډېر مريدان يې هم درلوده او يو ډېر
مالدار سړی په سبب د ده د ظاهري کار ليدلو څخه د هغه شيخ مريد سوی ؤ. نو
رفته رفته رفت ؤ آمد شروع سو، يوه ورځ مالدار مريد ورته وويل چي ننه شپه زما
مېلمه يې سره د صاحب زاده يعني زوی، شيخ دعوت قبول کړی او سرمايه داره
مريد ډېر فوق العادة خواړه په کور کي پر خپل کور والا باندي زېرمه کړي وه چي
ننه شپه پير صاحب زموږ مېلمه دی بايد ښه خواړه تيار کړئ، خير ماښام چي پير
صاحب او زوی راغله او سترخوان هوار سو رقم رقم خواړه پر کښېښول سوه، پير
صاحب يو څو ګولې د يو قسم خوړو څخه وخوړلې او داغه رنګه د بل قسم خوړو
څخه يعني په محدود ډول يې وخوړلې، نو پير صاحب تر شا سو ډوډی يې بس
کړه، سرمايه دار مريد ورته وويل چي صاحب ډوډۍ دي ولي بس کړه؟ پير صاحب
ورته وويل چي ډېره ډوډۍ خوړل سړي ته ډېر خوب وروليي او د شپې زموږ د
وظائفو مانع ګرځي، هر څه ټينګار چي سرمايه داره مريد وکړی پير صاحب انکار
کاوه، او د پير صاحب زوی په ماړه نس ډوډۍ وخوړل، سترخوان چي ټول سو مريد
ورته وويل چي تبرګا به د ماخستن لمونځ موږ ته په دې مهمان خانه کي په جماعت

راکوي، پیر صاحب د مخه سو جماعت پسي محدود نفر ودرېدل، سرمایه دار او د هغه مزدوران او د پیر صاحب زوی پسې ودرېدل، پیر صاحب په ډېره خشوع او په نهایت تعدیل الارکان لمونځ وکړی او یوازې دوه رکعته سنت یې وکړه وتر یې و تهجد ته پرېښول، خیر پیر صاحب د خپل سرمایه دار مرید څخه رخصت واخستی دی او زوی یې کور ته راهي سوه، پیر صاحب چي کور ته ورغلی ماینې ته یې وویل چي سترخوان را واخله ډېر وږی یم، ماینې یې ورته وویل چي د مهمانی څخه څرنګه وږی راغلې هورې به دې ځان ښه موړ کړی وای، پیر صاحب پر ماینې منت وکړی چي څرنګه ناپوه یې، که ما هورې ځان موړ کړی وای د سرمایه داره مرید زما څخه عقیده اوښته چي دا څرنګه خېټور پیر دی، خیر ماینې یې ورته ډوډۍ راواخستل، پیر صاحب د اوبو په کومک ځان تر پزې په موړ کړی، زوی ورته ګوري، پیر صاحب چي له ډوډۍ څخه فارغه سو، زوی یې ورته وویل چي بابا لمونځ دې هم راوګرځوه، ولي تا خو کور داسي لمونځ نه کاوه لکه د سرمایه داره په کور کي چي دې په خشوع و خضوع او تعدیل الارکان سره وکړی (۵۳) او بله ګناه عیب ویل دي پر یو چا مثلاً د پلاني پزه پیته ده د فلاني پنډ شونډان دي لکه د خره الی غیر ذالک، روایت دی لقمان حکیم په رنګ ډېر بد رنګه ؤ یو چا ورته وویل چي حکیم صاحب ته څومره بدرنګه یې؟ لقمان ورته وویل که اعتراض د بدرنګی پر ما کوې زما خو دا بد رنګ په اختیار کي نه ؤ یعني خدای دغه بدرنګ راکړی دی او که پر خالق د دې بد رنګ ویل کوې نو کافر یې (۵۴) او بله ګناه کبیره استماع الملاهي: اورېدل د سروز لکه رباب او تبله الی غیر ذالک، وفي الحديث استماع صوت الملاهي (په اختیار سره، د فقیر په دې قید کي غرض دادی چي په اوسنی زمانه کي د بعض جاهلانو د زوی یا ورور واده وي، نو سروزو ته ګویا وي کښېږدي چي تر نژدې کورو پوري ټولو ته اواز د سروز رسېږي او بې اختیاره یې هر څوک اوري، نو هغه بې اختیاره اورېدل یې کبیره نه ده) اورېده د اواز د ملاهي معصیت دی، والجلوس علیها فسق والتلذذ بها کفر.

**درویش وایي:** چي دا تهدیداً او زجراً دی کما في قوله علیه الصلوة والسلام لا صلوة لجار المسجد الا في المسجد الی غیر ذالک من التهدیدات والزواجر.

**مسئله:** که تنبور، رباب، ډولک وغیره چا په کور کي ایښی ؤ لکن استعمال یې نه کاوه ګناه کار دی، لان امساکها عادة للهو (۵۵) او بله کبیره ده پر رباب وغیره رقص کول (۵۶) و نامحرمه کور ته ورتلل بیله اجازې (۵۷) د بل و کور ته د دروازې تر چولو کتل (۵۸) و ښائسته هلک ته په شهوت کتل.

**پوښته:** چي حد د شهوت دا دی چي آله یې پورته سي والا فصغیرة.

**مسئله:** د صبیح الوجه حکم د ښځي دی باید ستر په وکړي او پلار دې کوښو ته نه پرېږدي ولي فتنه ورته پیښېنه نه سي، ولذا قیل مع کل امرئة شیطان ومع صبیح الوجه شیطانان، په تاریخ کي د امام الائمة ابو حنیفة علیه من الله الرحمة التامة راغلي دي چي امام محمد الشیباني رحمه الله صبیح الوجه ؤ چي پلار یې د امام اعظم و درس ته راوستی، نو امام اعظم به دی یعني امام محمد په درس کي تر شا کښېناوه یا تر شا د تنبې د مسجد حتی لا یقع علیه بصره مخافة خیانة الاعین من کمال تقواه.

**فائده:** په بستان کي د فقیه ابو اللیث السمرقندي وایي چي سړی دي د نو سنو ځوانانو یا کوچنیانو که څه هم صبیح الوجه نه وي یا د بې عقلانو سره دي ناسته ولاړه نه کوي ولي د سړي آبرو او مهابة ته نقصان دی (۵۹) او بله کبیره ګناه ترک د امر بالمعروف او نهي عن المنکر دی حتی الوسع (۶۰) بله کبیره ګناه د عوامو مسخرې دي (۶۱) بله کبیره ګناه اخستل دي د اعطاء او صلة الرحم من اهل الجور، او بعض علماء وایي چي صلات د بادشاهانو روا دی و غني او فقیر ته چي ته ده یقیناً نه وي معلوم چي دا صلات حرام دي، نو که حرامي وي په واقع کي نو ګناه یې پر معطي ده پر آخذ نه ده، امام غزالي په احیاء العلوم کي وایي چي که ظاهر د سړي یعني معطي صلاح وه او حال یې مستور ؤ فلا حرج علیک في قبول صلاته وصدقته (او خیرات د هغه) او پر تا نه ده لازم چي تجسس د حال او د مال د هغه کوې فان تلک سوء الظن علی الرجل المسلم وهو حرام انتهی.

**پوښتنه:** د عقائدو په کتابو کي کبائر ګڼهو نه یو اوویا (۷۱) هم ذکر سوي دي تا ایوبي نه وربېول؟

**ځواب:** فرق یې د کلیاتو او جزئیاتو دی یعني کلیات یې (۴۱) دي او جزئیات یې (۷۱) دي فافهم هداک الله تعالی.

وَاِذَا مَا غَضِبُوْا هُمْ يَغْفِرُوْنَ

دا جمله عطف ده پر يجتنبون باندې او ظرف يعني اذا متعلق دى په يغفرون پورې، والحاصل چې سړي ته درد ورسي پر يو بل چا په يو سبب دوى بخښنه ورته كوي، ولې چې بخښنه اولى او افضل ده، قال عليه الصلوة والسلام اتقوا الغضب (له غضب ځنځه ځان ساتئ) ولې چې غضب لكه سكروټه د اور ده في قلب بني آدم الم تروا في انتفاخ اوداجه وحمرة عينيه (تاسې نه وينئ چې د غاړې رګونه يې وپړسېږي او سترګې يې سرې سي) وهم مبتداء ده ويغفرون خبره، والمغفرة ههنا بمعنى العفو والتجاوز والحلم والكظم، په يو حديث كې راغلي دي چې بعض انبيا عليهم السلام ته خداى ﷻ وحي وكړې چې ته چې صبا له كوره ووځې اول چې هر شى په مخه درغلى هغه وخوره، او دوهم وار چې په مخه درغلى هغه پټ كړه او دريم چې په مخه درغلى مخ ځني واړوه، نو نبي ؑ چې صبا له كوره ووتى اول لوى غر په مخه ورغلى، نبي ؑ امتثالاً لامر الله د غره و خوړلو ته اراده وكړه كه څه هم خورك د غره له امكانه لېرې كارو نو څرنګه چې ده د خوړلو اراده ورته وكړه هغه سيب سو يعني منه په مزه يې وخوړى فوجدها الذ شيئا، دوهم واريې يو د سرو زرو لګن پيدا كړى نو ده چې هر څو كوشش د پټېدو وكړى يو ځاى به يې ښكاره سو، دريم وار د مردار يو اچولو ځاى باندې پېښ سو په اصطلاح تپ يې بولي، نو ده مخ ځني واړاوه، فقيل اما الجبل فشدة الغضب فعند ظهورها يرى كالجبل، نو چې ده صبر پر نو شولو د غضب وكړى يعني عفو يې مختاره كړه نو ډېر مزه داره شي جوړ سو يعني كه ده پر مقتضى د غضب رفتار كړى واى جنګ و جدل به جوړ سوى واى... بيت:

**تحمل نمايد چو زهرت نخست ❁❁ ولى شهد ګردد كه در طبع رست**

يعني صبر كول پر شدت لكه زهر و تاته معلومېږي اول وار، مګر شهد ګرځي چې سړى و رسره اموخته سي.

او هغه د سرو زرو لګن چې ده به پټاوه هغه به ښكاره كېدى عبادت د خداى ؑ دى چې هر څو يې دى پټوالى كوي الله ﷻ يې ښكاره كوي ... بيت:

**اګر مسك خالص ندارى مګوى ❁❁ وګر هست خود فاش ګردد به بوى**

یعني د مشکو بوی خپله ښکاره کېږي او ستا په وینا سره چي اصلي مشک نه وي مشک نه ګرځي.

## وَالَّذِيْنَ اسْتَجَابُوْا لِرَبِّهِمْ وَأَقَامُوا الصَّلٰوةَ

**پوه سه**: چي استجابوا په معنی د اجابوا دی والمعنی چي دوی قبلو نه کړې ده د هغه شي چي خدای دوی ته دعوت ورکړی یعني طاعت او عدم العصیان.

"واقاموا الصلٰوة" او دوی کوي پنځه وخته لمونځونه.

**فائده**: د اقامة الصلوة معنی داده چي په مراعات د واجباتو او سنن او تعدیل الارکان سره وي.

**فائده**: په قرآن کریم کي هر ځای چي اقامة الصلوة راسي یا به لفظ د مصدر وي او که په لفظ د مشتق وي لکه مقیمي الصلوة معنی داغه ده بخلاف القیام الی الصلوة کما جاء في وصف صلوة المنافقین واذا قاموا الی الصلوة قاموا کسالی الخ.

**سوال**: تخصیص د لمانځه یې ولي وکړی او نور عبادات یې ذکر نه کړل کالزکوة والصوم مثلاً؟

**ځواب**: ولي چي نسته په منځ کي د عبد او د ایمان الا اقامة الصلوة ګویا نسته په منځ کي د عبد او کفر الا ترک الصلوة، ولذا ورد في الحدیث الصحیح الصلوة عماد الدین فمن اقامها فد اقام الدین ومن هدمها (ای الصلوة) فقد هدم الدین او کما قال رسول الله ﷺ، وایضًا قد ورد في الحدیث اول ما یحاسب العبد یوم القیامة عن الصلوة فان صلحت افلح وانجح (نو له عذاب څخه یې خلاصون پیدا کړی او کامیاب سو) وان فسدت فقد خاب وخسر (ناکام او نا امیده سو) ... بیت:

روز محشر که جان گداز بود ❋❋❋ اولین فرسش نماز بود (یعني في حقوق الله)

**مسئله**: د مثال په توګه که یو چا دواړه لاسونه د مرفقینو سره پرېوه او یا یې دواړي پښې د کعبینو سره پرېوې فمحل وضوئه پاته اند امونه دي.

## وَأَمْرُهُمْ شُوْرٰى بَيْنَهُمْ

او کار د دوی (یعني په امر مهم کي) یو د بل سره مشوره کول، یعني تلوار نه کوي څو مشوره ونه کړي لان التعجیل اولاً صدر من الشیطان چي خدای پاک ده

ته وویل چي آدم ته سجده وکړه، ده عجولانه وویل انا خیر منه.

**پوهـه:** چي یو مسلمان چي د بل مسلمان سره مشوره وکړي پر ده واجب ده چي په خیر سره به یې امر کوي یعني چي ده ده خیر په دنیا او آخرت کي وي ده ده په عقل، قال رسول اللهﷺ المستشار مؤتمن، رواه مسلم، وعن عليؓ المستشار مؤتمن (هغه څوک چي ده ده څخه بل سړی مشوره وغواړي هغه امین د هغه بل سړي دی، نو لازمه ده ده چي داسي مشوره دي ورکړي یعني د خیر لکه د ځان لپاره)

وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ﴿۳۸﴾

او بعض د هغه مال څخه چي موږ ورکړی دی په موارد او ځایو کي د خیر انفاق وکړي لکه صلة الرحم او یا و غزاتو ته د مؤمنانو مالي کومک ورکړي الی غیر ذالک.

**فائده:** د روښ لفظ د بعض وو ایه له دې سببه چي اعطاء د جمیع المال حال دی د اخص الخواص کابی بکر الصدیقؓ حیث تصدق بجمیع ماله في سبیل الله في غزوة تبوک، علیه الصلوة والسلام چي پوښتنه څني وکړه چي عیال ته دي څه پرېښول؟ ده ورته وویل الله ورسوله، لکن میانه خوی مؤمنانو لره صرف د بعض مال محمود دی.

وَالَّذِيْنَ اِذَآ اَصَابَهُمُ الْبَغْيُ هُمْ يَنْتَصِرُوْنَ ﴿۳۹﴾

او هغه کسان دي چي دوی ته ورسېږي ظلم او عدوان د یو چا له خوا څخه (هم ینتصرون) یعني دوی خپل کسات او انتقام اخلي له ظالم څخه بېله تجاوز تر خپل حق.

**پوهـه:** چي ابن زید‌ؒ وایي چي خدایؒ مؤمنان دوه صنف ګرځولي دي، یو صنف هغه کسان دي چي عفوه کوي و خپل ظالم ته او بل قسم هغه دی چي انتقام او کسات اخلي له ظالم څخه پر دوی، وهم الذین ذکروا في هذه الآیة، قال عطاء المراد في هذه الآیة هغه مؤمنان چي دوی کافران د مکې مجبور کړه دوی چي مکه مکرمه پرېږدي بغیر حق الا بان قالوا ربنا الله وحده، بیا هغو مظلمانو ته خدایؒ قدرت ورکړی په مځکه کي، نو دوی خپل انتقام د هغو څخه واخستی، او بیضاويؒ وایي چي خدایؒ موصوف کړه مؤمنان په امهات الفضائل سره چي یو په کراهة التذلل دی وظالم ته او دا منافي نه دی د غفران او عفو و خپل ظالم ته ولي چي د غفران لار دوی هلته غوره کول چي ظالم به د تذلل لار خپله کړه توبه به وکښل دوی بخښه

ورته کول، والحلم والعفو عن العوام محمود والحلم عن المتغلب والخصم المقاوم مذموم، ولي وداسي سړي ته حلم کول اجراء علی البغي باعث کول دي د هغه پر نور ظلم باندي، بعض مفسران وايي که دغه ظالم متعدي پر حق الله وُ وعامة المؤمنين وُ فالاولی بل الواجب انتقام دی چي ددې فتنې دروازه بنده سي او هغه ظالم متعدي پر يوه سړي وُ نو د هغه انتقام اخستل من غير تجاوز که څه هم روا دی لکن عفو او اصلاح بهتر ده لان دفع السيئة بالحسنة افضل.

## وَجَزٰٓؤُا سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ مِّثْلُهَا ۚ

جزاء د بد عمل (تانيث په اعتبار د خصلة دی) چي څو يې وکړي د بل سره.

**پوه سه:** چي دا جمله بيان دی د حق د منتصر يعني چي کسات کاږي.

**سوال:** جزاء د سيئه خو بد کار نه دی بلکې خپل حق غوښتل دي؟

**ځواب:** لپاره د مشاکلة ده او بل جواب دا دی چي مثلها چي يې وويل لپاره د اشاره و دې ته ده چي انتصار که څه محبوب دی لکن په شرط د مماثلت چي منتصر دي د جاني تر فعل بالا بود نه کوي په انتصار کي، وهذا امر عسير جداً وفيه حث علی العفو احتياطًا تا چي په انتصار کي بالابود څني ونسي فافهم.

## فَمَنْ عَفَا وَأَصْلَحَ فَأَجْرُهُ عَلَى اللَّهِ ۚ

که چا عفوه وکړه وجاني ته او اصلاح يې وکړه يعني د جاني له جنايت څخه يې ستر کي پټي کړې، نو ثواب يې پر خدای دی يعني رب جل وعلا اعظم الجزاء ورکوي، له الحسن څخه روايت دی اذا کان يوم القيامة نادی مناد من کان اجره علی الله فليقم فلا يقوم الا من کان عفی عن الجاني.

## إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الظَّالِمِينَ ۝

په تحقيق د خدای نه دی خوښ يعني يبغضهم، له ظالم څخه دلته مراد يا ابتداءً ظلم کونکی دی او متجاوز تر حد په کسات اخستلو کي. او ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي مراد له ظالمين څخه هغه کسان دي چي ابتداءً يې ظلم کړی وي، د ابن عباس رضي الله عنهما د قول دليل هغه حديث گرځېدای سي، المستبان اثمهما علی الباري منهما لافعلی منهما حتی يتعدی المظلوم (دوه کسان چي يو و بل ته ښکنځل سره

کوي ګناه یې پر شروع کونکي د ښکنځلو ده تر هغو چې له مظلوم څخه تجاوز ونسي تر خپل حد) رواه احمد، مسلم و ابو داؤد عن ابی هریرة رضی الله عنه.

**فائده**: له دې حدیث څخه دا معلومېږي چې شروع کونکی د ظلم اظلم دی او مجیب ته نوع د رخصت سته، له ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چې یو منافق ښکنځل وکړه و ابوبکر رضی الله عنه ته والنبي ﷺ جالس فیتعجب (یعني وحلم ته د ابوبکر او تبسم یې کاوه او هغه منافق مکرر وارونه ښکنځل ورته کول، اخیرًا ابوبکر رض ته درد ورغلی نو ابوبکر رض جواب ورکړی فغضب النبي ﷺ وقام، نو ابوبکر رض پسي ولاړ سو فقال یا رسول الله هغه سړي چې ما ته ښکنځل کول او ته ناست وې چې ما د بعض ښکنځلو ده جواب ورکړی تا ته درد درغلی او ولاړ سوې علیه الصلوة والسلام ورته وویل چې تا چې جواب نه ورکاوه ستا سره ملکه وه هغې به ستا جواب ورکاوه ولما رددت بعض قوله وقع الشیطان، نو زه ولاړ سوم د شیطان سره ناسته ما مناسب نه بلل. وروسته وویل علیه الصلوة والسلام یا ابابکر ثلاث لهن حق ما من عبد ظلم مظلمة (نسته یو بنده چې پر ده یو څوک ظلم وکړي) نو دی بخښه د هغه ظلم ورته وکړي لپاره د خدای ﷻ (یعني نه د بېرې څخه) الا اعزه الله بها نصرة (مګر خدای ﷻ و ده ته نصرت ورکوي) الی آخیر الحدیث، وفي الحدیث الذي رواه مسلم عن عیاض بن حماد رض لایکون اللعانون (چې یو بل ته لعنت وایي) شهداء ولا شفعاء یوم القیامة.

## وَلَمَنِ انْتَصَرَ بَعْدَ ظُلْمِهٖ

**پوه سه**: چې ظلمه مصدر مضاف دی ومفعول ته ای ظلم الظالم ایاه، یعني پر ده باندي ظالم ظلم وکړی او ده خپل کسات څني واخستی.

## فَاُولٰٓئِكَ مَا عَلَيْهِمْ مِّنْ سَبِيْلٍ ﴿۴۱﴾

نو دغه کسان نسته پر دوی باندي مواخذه او ګناه.

**فائده**: اولئک اشاره ده ومن ته او علیهم ضمیر هم ومن ته راجع دی.

**سوال**: من خو مفرد دی اشم اشاره او ضمیر خو دواړه جمع دي؟

**ځواب**: جمعیت یې په اعتبار د معنٰی د من دی، وجه د نفي د السبیل پر دوی لانهم فعلوا ما ابیح لهم من الانتصار.

إِنَّمَا ٱلسَّبِيلُ عَلَى ٱلَّذِينَ يَظْلِمُونَ ٱلنَّاسَ

لاره د عذاب د آخرت او عتاب و مواخذه په دنیا کي پر هغو کسانو ده چي شروع او ابتداء د ضرر رسولو و خلګو ته کوي په ځانو کي د هغو يعني يا ضرب و کوب ورکوي يا شتم و ښکنځل ورته کوي يا په اموالو کي د هغو چي نقود په زوره ځني غواړي يا بې آبروی کړي يعني داسي خبري او تهمت پر وايي چي د هغه بې آبرويي پکښې وي.

وَيَبْغُونَ فِى ٱلْأَرْضِ بِغَيْرِ ٱلْحَقِّ ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ

او ظلم او تجاوز کوي په مځکه کي ناحقه او ځان پر خلګو لوړ بولي تکبرًا، داسي کسانو لره عذاب دردناکه سته په دنیا او آخرت کي.

وَلَمَن صَبَرَ وَغَفَرَ إِنَّ ذَٰلِكَ لَمِنْ عَزْمِ ٱلْأُمُورِ

هر آئينه څوک چي صبر وکړي پر ظلم د ظالم او دده تر ازار ور تېر سي يعني انتقام نه ځني واخلي، نو په تحقیق د غه غفر او صبر د معزوماتو کارو څخه دی (يعني عزم مصدر دی په معنی د مفعول دی) يعني مطلوب شرعًا دی. او الزجاج" وايي: يؤتي الله صبره ثواب جزيل فالرغبة في الثواب اتم عزم، روايت دی چي په مجلس کي د الحسن البصري" يوه سړي بل سړي ته سخت ښکنځل وکړه هغه مسبوب صبر وکړی يعني جواب يې نه ورکاوه لکن پر تندي به يې خوله راتلله لدرد څخه. نو ده به خوله پاکول وروسته دی ولاړ سو او دا آيت يې ووايه ولمن صبر الآية. الحسن" وويل دا سړي په دې ايت پوهېدلی دی عقلها وفهمها اذ ضيعها الجاهلون.

وَمَن يُضْلِلِ ٱللَّهُ فَمَا لَهُۥ مِن وَلِىٍّ مِّنۢ بَعْدِهِۦ

او څوک چي خدای ګمراه کړي نو نسته هغه لره کومک کونکی يعني چي هدایت دي ورته وکړي او له عذاب څخه د خدای د دې خلاص کړي. يعني وروسته تر خزلان د خدای.

**پوښتنه:** بعض جاهلان دا سوال کوي چي د غه سړی چي خدای" ګمراه کړی وُ نو دا خو مجبور دی نو بيا عذاب په ورځ د آخرت ولي ورکوي؟

**ځواب:** دا ګمراه کول تکويني نه دی لکه د چا مرګ عند انقضاء الاجل بلکې دا

اختیاري کار دی د بنده نسبت و خدای ته چې و کړی له دې سببه چې خدای پاک امر تکویني سره و ده ته هدایت و نه کړي لان مدار الثواب والعقاب هو الفعل الاختیاري.

**درویش وايي**: چې دا مذهب د اهل السنة والجماعة دی چې متوسط په مابین کې د مذهب د جبریه ؤ دی چې بندګان په ایمان او کفر، طاعت او عصیان کې مجبور محض بولي، فقیر وايي چې پر دې مذهب منحوس ارسال ته د رسولانو او انزال د کتب الهیة ؤ څه ضرورت سته او په ورځ کې د قیامت چا ته جنت ورکول او چا ته دوزخ ورکول ظلم علی اهل النار تعالی الله عن ذالک علوًا کبیرًا، وایضًا یلزم الترجیح بلا مرجح وهو خلاف العقل، او په مابین کې د مذهب د قدریه ؤ چې بنده خالق د خپلو افعالو من الایمان والکفر والطاعة والعصیان بولي فقیر وايي وهذا المذهب خلاف قوله تعالی: والله خلقکم وما تعملون، التفصیل في کتب علم الکلام کشرح العقائد وشرح المقاصد کلیهما للعلامة الثاني سعد الملة والدین التفتازاني رحمه الله والمواقف وشرحه للسید الجرجاني وغیرها.

وَتَرَى الظّٰلِمِيْنَ لَمَّا رَاَوُا الْعَذَابَ

ته به ووینې یعني په ورځ د اخرت (دا خطاب دی و مخاطب غیر معین ته، والغرض منه ان هذه الرویة غیر مخصوص بالرائي دون الرائي) هغه وخت چې دوی ووینې عذاب.

**سوال**: رأوا خو ماضي ده او دا رؤیت په مستقبل کې یعني په ورځ د قیامت راځي؟

**ځواب**: هغه شی چې حتمًا راتلونکی وي مستقبل یې لکه ماضي دی.

يَقُوْلُوْنَ هَلْ اِلٰى مَرَدٍّ مِّنْ سَبِيْلٍ

آیا سته و رد ته د دنیا یوه لار.

**یوه سه**: چې دا قول استفهام دی لفظًا معنی یې سوال دی د رجعت و دنیا ته، غرض د دوی په دې سوال کې دا دی چې که موږ و دنیا ته رد سوو موږ به ایمان راوړو پر وحدانیت د خدای جل جلاله او د هغه ذات والاصفات به طاعت کوو، لکن هیهات الرد الی الدنیا بعد اذ رأو العذاب -- بیت

توبیش از عقوبت درعفو کوب ❁❁❁ که سودی ندارد فغان زیر چوب

وَتَرٰىهُمْ يُعْرَضُوْنَ عَلَيْهَا

ستا به علم راسي پر دوی چي دوی پيشېږي اورته.

**پوښتنه:** ضمير مؤنث د عليها خو نار ته راجع دی (چي مؤنث سماعي دی) او د نار لفظ خو د مخه نه دی ذکر سوی، نو اضمار قبل ذکر المرجع به نه وي؟

**ځواب:** ذکر د مرجع لفظًا شرط نه دی په ارجاع کي د ضمير بلکي ذکر حکمي هم کافي دي او دلته لفظ د عذاب دال دی پر نار، ولي چي عذاب د يوم القيامة محضور دی پر نار فافهم.

خٰشِعِيْنَ مِنَ الذُّلِّ يَنْظُرُوْنَ مِنْ طَرْفٍ خَفِيٍّ

"خاشعين" اى خاشعين متذللين په سبب د ذلت اى مما يلحقهم من الذلة، دا جمله "ينظرون آه" حال بعد الحال ده له فاعل څخه د يعرضون، کلمه د من لپاره د ابتداء ده اى يبتدء نظرهم من تحريک لاجفانهم (باڼو گان) له جهته څخه د خوف او ذلت، په پښتو کي د سترگو تر کونجيانو لکه يو څوک چي محکوم بالقتل سي د سياف و توري ته د سترگو تر کونجيانو گوري يعني په پوره نظر نه سي ورته کتلای.

وَقَالَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِنَّ الْخٰسِرِيْنَ الَّذِيْنَ خَسِرُوْۤا اَنْفُسَهُمْ وَاَهْلِيْهِمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ

او وايي هغه کسان چي ايمان يې راوړی وي يعني په دنيا کي چي په تحقيق لوی تاوانيان هغه څوک دي چي په خسران کي يې اچولي وي خپل ځانونه او اتباع د دوی په کفر کي.

**يوه سه:** چي "ان الخاسرين" ترپايه پوري مقوله د "قال الذين آه" ده.

اَلَآ اِنَّ الظّٰلِمِيْنَ فِيْ عَذَابٍ مُّقِيْمٍ

په ورځ د قيامت (يوم ظرف دی د خسران) آگاه اوسه چي په تحقيق ظالمان يعني کافران په عذاب دائم کي دي. دا جمله يا تمامه ده د قول د مؤمنانو يا تصديق دی د خدای ؓ له خوا د دوی د قول.

وَمَا كَانَ لَهُمْ مِّنْ اَوْلِيَآءَ يَنْصُرُوْنَهُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ

نسته دوی لره یعنی کافرانو لره دوستان چي له دوی څخه دي عذاب دفع کړي ماسوی له خدای څخه (حال دی من اولیاء)

وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ سَبِيْلٍ

او هغه څوک چي په علم ازلي کي د خدای گمراه وي نو نسته هغه لره لار و حق ته في الدنیا والی الجنة في العقبٰی یعنی بندي دي تولي لاي د خیر پر دوی.

اِسْتَجِيْبُوْا لِرَبِّكُمْ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ يَوْمٌ لَّا مَرَدَّ لَهٗ مِنَ اللّٰهِ

تاسي قبلونه وکړئ د داعي الی الله محمد رسول الله ﷺ (فالعبارة بحذف المضاف ای لداعي ربکم) دمخه تر دې چي راځي هغه ورځ یعني یوم القیامة چي ردېدل یې نسته د خدای له خوا چي راغله.

مَا لَكُمْ مِّنْ مَّلْجَاٍ يَّوْمَىِٕذٍ وَّمَا لَكُمْ مِّنْ نَّكِيْرٍ

نسته تاسي لره ځای د پناه یعني له عذاب څخه د خدای په هغه ورځ او نه هم انکار کول له خپلو اعمالو څخه (نکیر مصدر دی پر وزن د فعیل) انکار په دې نسي کولای چي ستاسي د اعمالو په صحائفو کي نوشته دي او که تاسي هغه نه منئ یعني دا چي په موږ پسي ناحقه کرام کاتبین نوشته کړي دي بیا به ستاسي ژبي او نور اعضاء د جسد ستاسي به پر تاسي شاهدي اداء کوي کما جاء في الحدیث الذي رواه البخاري وغیره.

فَاِنْ اَعْرَضُوْا فَمَآ اَرْسَلْنٰكَ عَلَيْهِمْ حَفِيْظًا

که دوی روی گرداني وکړه ستا له اجابت څخه یا محمد (ﷺ) نو ته نه یې استولی موږ پر دوی رقیب محافظ د اعمالو ددوی.

**پوهنه:** چي اصل جزاء د شرط محذوفه ده دلیل د جزاء یې په ځای کي د جزاء ور درولی دی، والتقدیر فان اعرضوا فلا تحزن (ته غم مه کوه) لانا ما ارسلناک علیهم رقیبًا چي ددوی پر اعراض پر تا اعتراض وي د خدای.

إِنْ عَلَيْكَ إِلَّا الْبَلٰغُ

نسته پر تا باندي مګر رسول د اوامرو د خدای وقد بلغت حق التبليغ مرات وكرات ليلاً ونهارًا وقد اوذيت في ذالک نهاية الاذى.

وَإِنَّا إِذَا أَذَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنَّا رَحْمَةً فَرِحَ بِهَا

او چي موږ ورسوو (وليس من ذوق الفم، او پوه سه: چي مراد جنس انسان دی) زموږ له خوا څخه نعمت په دنيا کي، ابن عباس رض وايي اى الغناء والصحة، نو دی خوشحاله سي په هغه نعمت سره كما هو تبع الانسان.

**درويش وايي:** چي ذکر ددې دوو نعمتو على سبيل التمثيل دی په قول د ابن عباس رض من دوران هذين المذكورين والا فلا تنحصر انعم الله في ذالک:

وَإِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ فَإِنَّ الْإِنْسَانَ كَفُورٌ ﴿۴۸﴾

که دوی ته ورسېږي يو تکليف (لکه کاختي يا فقر يا مرض وغير ذالک) يعني په سبب د ګنهو ددوی، هغه انسان چي په نعمتو کي خوشحاله ؤ (كفور) صيغه د مبالغې ده اى بليغ الكفران يعني د هغو سابقو نعمتو يعني هغه يې هېر سي يا منکر سي (يعني باقل شيئ من الشدة) دی هېر کړي ټول له نعم الهيه سابقه او دا موجوده سيئه د شکايت په توګه يې ذکر کوي.

**پوه سه:** چي تعبير په "ايدي" سره په سبب ددې دی چي اکثره افعال په لاسو کول کېږي.

**سوال:** دا احکام خو د مجرمانو دي، او تا دمخه وويل چي لام د جنس دی؟

**ځواب:** هو ځکه په هر عصر کي مجرمان ډېر دي، نو ددې اسناد د افعالو ددوی و جنس ته يې وکړی، البته که فقير لام د استغراق بللی وای، نو دا سوال به وارد بدلای.

**فائده:** د رحمت په بيان کي يې اذا راوړی چي دال پر تحقق دی لان الرحمة واصابت النعمة عادته تعالى في جميع الازمنة، او د سيئه په بيان کي يې ان راوړی چي لپاره د محتمل الوقوع شيانو استعمالېږي ولي اصابة السيئة محتمل الوقوع ده، فتدبر بالعقل السليم.

راغب اصفهاني رح وايي: كفر النعمة وكفرانها سترها (پټول د نعمت دي)

بترک اداء شکرها، واعظم الکفر جحودهم (انکار ددوی دی یعني انکار) للوحدانیة او النبوة او الشریعة والکفران في جحود النعمة اکثر استعمالاً. والکفر في الدین اکثر استعمالاً والکفور په راورو کي جمیعًا یعني کفر النعمة والکفر في الدین، امام ماتریدي رحمه الله فرموده که کفران مؤمن آنست که ترک شکر کند آه ----ع:. درشکر همچو چشمه ودرصبر همچو خاره ایم

وقال علي رضي الله اقل ما یلزمکم من الشکر ان لاتستعینوا بنعمة الله في معاصیه.

لِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ

خدای لره ده بادشاهي د اسمانو او مځکي، نو ده لره دی تصرف په دواړو کي کیف یشاء که چا ته انعام ورکوي او که انتقام ځني اخلي، پیدا کوي هغه شی چي ده ورته اراده سي، دا جمله علت ده د ماقبل جملې او دا وروسته جمله بیان دی للخلق علی حسب المشیة.

يَهَبُ لِمَنْ يَّشَآءُ اِنَاثًا وَّيَهَبُ لِمَنْ يَّشَآءُ الذُّكُوْرَ ﴿۴۹﴾

ورکوي خدای بعض انسانانو ته فقط لوڼې، ولا یکون له ولدًا ذکرًا، او بعض خلکو ته ورکوي خالص زامن چي لور هیڅ نه لري.

**فائده:** بعض اکابر وایي چي له برکت ښځه د ښځي دادی چي اول یې لور پیدا سي وروسته زوی لان الله بدء بالانثی.

**تنبیه:** لوڼي یې دمخه کړې علی رغم انف المشرکین چي دوی به لوڼې ژوندي ښخولې.

اَوْ يُزَوِّجُهُمْ ذُكْرَانًا وَّاِنَاثًا ۚ وَيَجْعَلُ مَنْ يَّشَآءُ عَقِيْمًا ۚ اِنَّهٗ عَلِيْمٌ قَدِيْرٌ ﴿۵۰﴾

او ورکوي بعض کسانو ته زامن او لوڼې ګډ وډ، او ګرځوي بعض کسان بې عیاله چي په پښتو یې وچ بولي چي نه زوی لري او نه لور، نو هغه خدای عالم دی په ما یخلق او قادر دی پر ما یشاء فیفعل بحکمته واختیاره لیس له شریک في الملک والخلق.

**درویش وایي:** چي اولاد که نروي او که ښځي له مواهب څخه د رحمن دي وعطایاه، له دې سببه چي چا ته زېری وسي د ولد، نو سنت دی چي اظهار د

خوشحالي دي وکړي او له نعمت څخه د خدای دې بولي.

**فوائد شتي:** (۱) عيسىٰ ﷺ عقيم ؤ يعني اولاد يې نه درلودی، ولي چي ده ازدواج نه دی کړی، نعم وروسته تر نزول دده له اسمان څخه په اخير الزمان به نکاح وکړي او يو ازي يې لونې پيدا کېږي، او يحيىٰ ﷺ که څه هم تزوج کړی ؤ لکن لم يقرب يعني وطي يې نه دي ورسره کړي لکی عزيمت فلي شريعته يعني نکاح دي وکړي لکن نژدېکت دي نه سره کوي يعني صرف په نکاح کولو سره به موافقت د نور انبياؤ حاصل کړي.

(۲) قد ورد في الحديث النبوي ﷺ الولد في الدنيا نور وفي الآخرة مسرور، وفي حديث آخر ريح من ريح الجنة، وفي الحديث آخر سواد (توره ښځه) ولود (چي عيال يې کېږي) خير من حسناء (تر ښائستې ښځي) چي عقيم وي يعني وچه وي.

(۳) عقيم د ښځو هغه ده چي مني د زوج يې رحم نه ساتي، ولي چي د رحم ۃ خولې کشان يې سست وي د نر مني بيرته ځني راتوی سي په سبب د يو آفت، او نر هم عقيم کېدای سي سبب يې دادی چي په نطفه کي يې تخم نه وي، والله اعلم بحقيقة الحال.

## وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ اَنْ يُّكَلِّمَهُ اللّٰهُ اِلَّا وَحْيًا

نه ده ممکنه او نه ده صحيح هيڅ بشر لره چي خبري دي ورسره وکړي خدای،
بغوي وايي چي يهودان راغله و نبي ﷺ ته او وه يې ويل چي که ته نبي يې د خدای سره خبري وکړه، او ورته وګوره لکه موسىٰ چي خبري ورسره وکړې او خدای يې هم وليدی، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي د موسىٰ خبري د خدای ﷻ سره صحيح دي لکن خدای يې نه دی ليدلی، فانزل الله تعالى هذه الآية نو معنى د آيت داده چي نظر و خدای ته عند الوحي په دنيا کي شرط نه دی نو مراد د وحي څخه القاء د کلام بسيط في القلب ده.

"او من وراء حجاب" څخه مراد هغه کلام مسموع دی بلا توسط ملک کما اتفق لموسىٰ ﷺ في طوى والطور چي موسىٰ ﷺ خبري د خدای ﷻ اوريدې بېله توسطه د ملکي لکن خدای يې نه ليدی، کذا قال البغوي.

اَوْ مِنْ وَّرَآئِ حِجَابٍ اَوْ يُرْسِلَ رَسُوْلًا فَيُوْحِيَ بِاِذْنِهٖ مَا يَشَآءُ

او يا ورته واستوي رسول، يا جبرئيل يا بله ملكه، نو وحي وكړي دغه ملكه د مرسل اليه سره په اجازه د خداى چي د خداى ورته اراده وي لكه جبرئيل اكثرًا د قرآن كريم د آياتو يا د سورتو القاء و عليه الصلوة والسلام ته كوله، حاصل دا چي تكلم د خداى حصر دى په دوه قسمه كي بلا واسطة الملك ويقابله ارسال الملك بكلامه تعالى الى الانبياء، له عائشي ﷺ څخه روايت دى چي حارث بن هشام پوښتنه وكړه د رسول الله ﷺ څخه: يا رسول الله كيف يأتيك الوحي؟ تاته څرنګه وحي راځي؟ فقال رسول الله ﷺ احيانًا يأتيني مثل صلصلة الجرس يعني لكه مسلسل رنګ چي څوک وهي، وهو اشد علي (دا صورت د وحي پر ما ډېر سخت پرېوځي، ولي فهم د خبرو د مسلسل رنګه څخه ډېر ګران دى) بيا هغه رنګ قطع سي او ما هغه خبري په ياد كړي وي يعني د قلب اطهر مقدس پر ورقو نوشته سوي وي، واحيانًا تمثل لي الملك رجلاً (ګاهي ماته ملک په صورت كي د رجل راسي، چي په صورت د دحية بن خليفة الكلبي وي) زما سره خبري وكړي زه يې په ياد كړم.

**تفريع**: نو اول قسم تكلم د خداى بېله واسطې دى، او دوهم قسم په واسطه د ملكي دى، سيدتنا وامنا عائشة ﷺ وايي چي ما ليدلي دي چي پر ده مبارک به وحي نازلېدې (تعني مثل صلصلة الجرس) في اليوم الشديد البرد چي ډېره يخه ورځ به هم وه، وحي چي به قطع سوې د عليه الصلوة والسلام پر تندي به خولې رواني وې، بخاري مسلم، او د عباس ﷺ څخه روايت دى اقام رسول الله ﷺ بمكة خمس عشر سنة (۲۵) كاله رڼا به يې ليدل او اواز به يې اورېدى ولايرى شيئًا (هيڅ شى به يې نه ليدى، او اته كاله وحي ورته كېدې (يعني دواړه قسمه) واقام المدينة (۱۰) كاله وحي جاري وې، وتوفى بالمدينة ۶۵ متفق عليه.

اِنَّهٗ عَلِيٌّ حَكِيْمٌ ۝

الله عزوجل لوړ دى له صفاتو څخه د مخلوق، هر كار يې له حكمت سره دى يعني عبث كار نه كوي (يعني ګاهي د چا سره خبري بلا واسطه كوي كما في مثل صلصلة الجرس، او ګاهي په واسطه سره د ملكي)

وَكَذٰلِكَ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ رُوْحًا مِّنْ اَمْرِنَا ؕ

او داغه رنګه لکه مونږ بیان تاته وکړی مونږ وحي وتاته کړي د روح چي مراد ځني قرآن دی (ولي په قرآن سره حیوة د زړو دی لکه چي په روح متعارف سره حیوة د ابدانو دی) كذا قال الكلبي ومالک بن دینار ؒ، او الربيع ؒ وايي چي له روح ځخه مراد جبرئیل ؑ دی، نو پر دې تقدیر مراد له اوحينا ځخه ارسلنا دی او ابن عباس ؓ وایي چي مراد له روح ځخه نبوت دی، وقال الحسن ؒ چي مراد له روح ځخه رحمت دی، نو مراد ځني هم قرآن دی فان القرآن اثر الرحمة والنبوة دی "من امرنا" ظرف مستقر دی ای روحًا كائنًا من امرنا.

مَا كُنْتَ تَدْرِيْ مَا الْكِتٰبُ وَلَا الْاِيْمَانُ

ته نه وې خبر یا محمد یعني د مخه تر وحي (چي تاته به ځه شی راسي یعني من النبوة والوحي والقرآن) "ما الكتاب" ساد مسد د معفولي د تدري دی "ولاالایمان" مراد له ایمان ځخه نفس تصدیق په وحدانیت د خدای ؓ نه دی لان الانبياء عليهم السلام معصومون من ذالک، بلکې مراد هغه شرائع او احکام دي چي بیله سمع لار ورته نه وي كالصلوة والزكات والصوم وغيرها.

**درویش وایي**: چي که تفصیل د انبیاء عليهم السلام قبل النبوة و بعدها ځوک غواړي، نو رساله په نامه د كشف الغطاء عن عصمة الانبياء، چي د فقیر تصنیف دی په غور سره دې مطالعه کړي، حاصل دا دی چي انبیاء عليهم السلام ته الهام کېدی د علم پر صانع المتوحد بصفات الكمال المنزه عن النقص والزوال، مظهري تبعًا للبيضاوي ؒ وايي و ماقيل ان النبي ﷺ كان قبل الوحي يعبد الله على دين ابراهيم ؑ فشيئ لايصاعده العقل والنقل ولي چي رسول الله ﷺ خو نبي امي ؤ یعني لم یقرء الكتاب ولم يكن دين ابراهيم ؑ شائعًا في قريش لانهم كانوا يعبدون الحجارة، لكن روح البيان په نقل د ابن قتيبة ځخه وايي لم تزل العرب (همېشه عرب) پر بقایا د دين اسماعيل بن ابراهيم عليهما السلام وه په ډېرو کارو کي من الحج والختان (سنتي) والنكاح وايقاع الطلاق، والغسل من الجنابة وتحريم نكاح ذوات المحارم لکه مور خور لور وغيرها، يا په مصاهرة سره ناروا لکه خوابنې یا جمع د دوو خوندو

په نکاح وکان رسول اللهﷺ على ما نوا عليه في مثل هذه الاحكام ويبغض اللات والعزى وغيرهما من الاصنام وكانﷺ يحج ويعتمر ويتبع شريعة ابراهيم علیه السلام انتهی قول روح البيان والنقل عن القتيبي، والله اعلم بالصواب.

وَلٰكِنْ جَعَلْنٰهُ نُوْرًا نَّهْدِیْ بِهٖ مَنْ نَّشَآءُ مِنْ عِبَادِنَا ؕ

او مونږ ګرځولی ده هغه (ابن عباسؓ وايي يعني الايمان وما قال السدي يعني القرآن فهو تفصيل لقول ابن عباسؓ) نهدی ای نوصل به العقيدة الحقة في الدنيا والى الجنة ومراتب القرب الى الله.

وَاِنَّكَ لَتَهْدِیْۤ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِیْمٍ ۙ

په تحقيق ته يا محمد (ﷺ) هر آئينه هدايت کوې ټولو انسانانو ته (نو مفعول د تهدی محذوف دی ای کافة الناس) وهغې لارې ته چې اسلام دی چې موصل الى الجنان ورضي الرحمن ده.

**پوهنه:** چې د هدايت دوې معناوي دي، يوه معنی ارائة الطريق ده يعني لاربنوونه که څوک عمل په وکړي او که يې نه په وکړي، په دې معنی عليه الصلوة والسلام هادي د کافة الناس دی په دې سره نفي د عليه الصلوة والسلام روا نه دي، او بله معنی يې دلالت موصله دی چې په هغه آيت کي مراد دی انک لاتهدي من احببت الآية. په دې معنی سره هدايت خاص په خدای ﷻ سره دی ځکه په مذکور آيت کي نفي د عليه الصلوة والسلام څخه وکړې.

صِرَاطِ اللّٰهِ الَّذِیْ لَهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ ؕ

لاره د الله "صراط الله" بدل دی د اول صراط څخه، ده لره دي يعني ملګا وخلقًا هغه شيان چې په اسمانو کي دي لکه ملائکه، لمر او سپوږمۍ، ستوري وغيرهن، او چې په ځمکه کي دي يعني يا پر ظاهره د ځمکي دي لکه حيوانات او نباتات او درختي وغيرها يا په مابين کي د ځمکي دي لکه معدنيات.

اَلَاۤ اِلَى اللّٰهِ تَصِیْرُ الْاُمُوْرُ ۠

ای امور الخلائق كلها في الآخرة.

**پوه سه:** چي په دې آيت کي وعد حسن دی د مطيعينو سره د خدای په دنيا کي او وعيد عظيم دی للمجرمين ای الکافرين.

**درويش وايي:** چي د سهل بن ابی الجعد څخه روايت دی چي يو وخت قرآن مبارک اور واخستی تولي اوراقي يې وسوځلي الا قوله تعالی الا علی الله تصير الامور، والمعنی اګاه اوسه چي تول امور د خلګو خدای ته راجع کېږي، والسر في ذالک ان هذه الاية کالحاصل لجميع آيات القرآن چي وعد دی للمؤمنين او وعيد دی للکافرين او امثال او قصص قرآنيه دد دوو څخه خالي نه دي کما لايخفی علی المتدبر في الآيات القرآنية والله اعلم بالصواب.

**درويش وايي:** چي تفسير د سورة الشوری په اخير کي د ربيع الثاني په وخت کي د ظهر وپای ته ورسېدی، وروسته به تفسير د سورة الزخرف شروع سي ان شاء الله تعالی سنه (۱۴۳۲هـ) وصلی الله تعالی علی سيدنا خير خلقه ونور عرشه محمد و آله وصحبه اجمعين --- مصرع:

دا باران چي پر همه وو مځکو اوري ❋❋❋ مشرف يې کړی ذات د کېميا ولي

صبا مدينے ميں مصطفیٰ سے ہم غريبوں کا سلام کہنا ❋❋❋ نہيں کوئی بجز تمھاری بس ميرا اتنا پيام کہنا

جميع العلم في القرآن لکن ❋❋❋ تقاصرت عنه افهام الرجال

متل:. درياب که لوی دی چمچي دي خپل ده.

**مناجات بدرگاه قاضی الحاجات:**

الهی عبدک العاصي اتاکا ❋❋❋ مقرا بالذنوب وقد دعاکا

فان ترحم فانت لذاک اهل ❋❋❋ وان تطرد فمن ترحم سواکا

روز محشر ہر کہ آيد تصوير جانان در بغل ❋❋❋ من نيز حاضر ميشوم تفسير قرآن در بغل

تفسير ايوبي حنفي د نصيراحمد احمدي لخوا سکين او pdf سو. د دعا محتاج احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

سورة الزخرف مكية وهي تسع وثمانون آية وسبع ركوعات بسم الله الرحمن الرحيم

حمٓ ﴿١﴾ وَالْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ﴿٢﴾

**پوه سه:** چي حم د متشابهات قرآنيه څخه دی، او کلمه د واو لپاره د قسم ده يعني قسم دی په هغه قرآن کريم سره چي بيانونکی د هدايت او د ضلالت دی چي څوک په غور سره په خالي زړه د حسد او عناد څخه دده آياتو ته وګوري سبب د ايمان او تصديق په شرائع سره چي ثمره يې فلاح د دنيا او آخرت دده وګرځي.

اِنَّا جَعَلْنٰهُ قُرْءٰنًا عَرَبِيًّا لَّعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿٣﴾

موږ ګرځولی هغه کتاب (دا جمله جواب د قسم ده) په عربي ژبه.

**فائده:** خدای پاک قسم واخستی په قرآن سره پر دې چي قرآن يې په عربي ژبه ګرځولی دی لتناسب المقسم به والمقسم عليه، وهذا من البدائع.

**پوه سه:** چي لعل په معنی د لام کی دی، يعني موږ وګرځاوه قرآن په لغت ستاسي ددې لپاره تاچي تاسي يې معاني وفهموئ او د قرآن بلاغت او فصاحت به تاسي ته معلوم سي چي د طوق څخه د بشر خارج دی بل هو كلام خالق القوي والقدر دی فتؤمنوا به ومن جاء به يعني محمد ﷺ.

وَاِنَّهٗ فِيْٓ اُمِّ الْكِتٰبِ لَدَيْنَا لَعَلِيٌّ حَكِيْمٌ ﴿٤﴾

هذه الجملة عطف على انا جعلناه، والضمير راجع الى القرآن، د ام الكتاب څخه مراد لوح محفوظ دی، وجه تسميه اللوح المحفوظ بام الكتاب لانه اصل لكل كتاب منزل على الانبياء عليهم السلام (لدينا) ای محفوظة لدينا يعني محفوظ من التغيير (لعلي) ای رفيع شانه في الكتب السماوية لكونه معجز من بين الكتب الالهية يعني چي څوک اتيان په مثل سره نه سي کولای فالقرآن معجزة لرسول الله ﷺ كر الازمان مر الدهور بخلاف غير القرآن من الكتب السماوية فانها ليست بهذه المثابة.

اَفَنَضْرِبُ عَنْكُمُ الذِّكْرَ صَفْحًا

همزه لپاره د انکار دی او فاء عطف ده پر مقدر، والتقدير انهملكم (آيا تاسي مهلت درکړم) الذكر ای القرآن يعني قرآن له تاسي څخه بند کړم او پر تاسي يې نه کړم نازل له تاسي څخه يې لېري کړم.

**درویش وایي:** چي وروسته تر دې چي خدای ﷻ لوړ شان د قرآن بیان کړی وحقق جل وعلا چي انزال یې په لغت د عربو ددې لپاره دی چي اهل مکه په پوه سي او د تکبر او عناد څخه خالي له عقل څخه کار واخلي او ایمان پر راوړي او موافق د قرآن عظیم الشان د ښوونکو احکامو سره عمل وکړي، وروسته خدای ﷻ په استفهام انکاري سره چي خلاف ددې نسي کېدای افنضرب عنکم الذکر چي د آیت ترجمه مو عنقریب واورېدل.

**فائده:** په دې عبارت کي مجاز دی له هغه محاورې څخه منقول دی "ضَرَبَ الْغَرَائِبَ عَنِ الْحَوْضِ" وه یې شړل نا ولده او ښان له خپل حوض څخه یعني مشابه یې کړی ځان د قرآن عظیم الشان او تنحیه عن اهل مکة بحال غرائب الابل د خپل حوض څخه بیا یې مستعمل کړی ما کان في تلک القصة، دلته په حال کي د قرآن په دې عبارت کي خدای ﷻ تنبیه وکړه پر دې چي حکمت الهي تقاضا لري چي حتمًا به دا ذکر او قرآن دوی ته متوجه کېږي.

**درویش وایي:** چي ورته عبارت ته په علم بیان کي استعاره تمثیلیه وایي چي تفصیل به یې پر متعلمینو ګران پرېوزي الا العلماء بفن اقسام الاستعارات المذکورة فیه، ژوندی مثال یې قول د حجاج بن یوسف دی چي ده په خپله خطبه کي د اهل عراق د تهدید (د بېرولو) لپاره وو ایه "لاضربنکم وضرب غرائب الابل عن الحوض آه)

اَنْ كُنْتُمْ قَوْمًا مُّسْرِفِيْنَ۝

په سبب ددې چي تاسي په کفر کي ډېر تر حد تجاوز کړی دی، وحاصل معنی الآیة افترک عنکم الوحي ونمسک عنکم القرآن فلا نأمرکم ولا نهاکم من اجل اسرافکم في الکفر، فافهم والله اعلم بمراده في کتابه.

وَكَمْ اَرْسَلْنَا مِنْ نَّبِيٍّ فِى الْاَوَّلِيْنَ۝

او ډېر را استولي دي موږ نبي په اولینو امتو کي.

**فائده:** کم خبر دی مفید د کثرت دی په محل کي د نصب دی چي مفعول مقدم د ارسلنا دی او من نبي یې تمیز دی د کم او في الاولین متعلق دی په ارسلنا پوري.

وَمَا يَأْتِيهِم مِّن نَّبِيٍّ إِلَّا كَانُوا بِهِۦ يَسْتَهْزِءُونَ ۝

نه راتلی دوی ته (نو ضمیر د یأتیهم راجع دی و اولین ته)

**پوهه:** چي دا حکایت د حال ماضیه دی لان ما انما تدخل علی مضارع في معنی الحال یعني ان عادة الامم الماضیة الذین یدعونهم الی الدین الحق (چي انبیاء به دوی بلل و دین حق ته چي ایمان او توحید دی) او دوی به پسخند په واهه او تکذیب به یې کاوه، غرض په دې آیت کي تسلي ده و علیه الصلوة والسلام ته چي باید د خپل قوم د تکذیب او استهزاء څخه ډېر مغموم نه سي لما قیل ان المصیبة اذا عمت خفت، او پښتانه وایي: بلا چي عامه سي اسانه سي.

فَأَهْلَكْنَا أَشَدَّ مِنْهُم بَطْشًا وَمَضَىٰ مَثَلُ الْأَوَّلِينَ ۝

او موږ هلاک کړي سخت تر مجرمینو یعني تر قوم اهل مکه، یعني د مخه تېري سوي په قرآن عظیم الشان کي قصص عجیبه د هغو چي حق یې دا ؤ چي متلونه گرځېدلي وای.

**فائده:** اشد حال دی له مفعول محذوف څخه د اهلکنا وتقدیر الکلام فاهلکنا الاولین (هذا هو المفعول المحذوف) حالکونهم اشد من مشرکی مکة (بطشًا) ازروی قوة، دا تمییز د نسبت څخه د اشد یا مفعول مطلق دی د اهلکنا من غیر لفظه، په دې کي وعده ده د علیه الصلوة والسلام سره چي تا ته به هم نصر درکړم پر مشرکینو د مکې و وعید للمشرکین المستهزئین به علیه الصلوة والسلام، وبالفارسیة اقربائی ایشان را هلاک کردیم وشدت وشوکت ایشان مارا عاجز نداشت.

وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ لَيَقُولُنَّ خَلَقَهُنَّ الْعَزِيزُ الْعَلِيمُ ۝

او که ته یا محمد (ﷺ) د اهل مکه د مشرکانو څخه پوښتنه وکړې (کلمه د لام لپاره د قسم ده) چي چا پیدا کړي دي اسمانونه او مځکه، نو دوی به وایي چي خدای پیدا کړي دي دغه اسمانونه او مځکه عزیز غالب، او ښه خبر دی په حال د هر چا خدای.

**پوښتنه:** دا سوال له کفارو څخه په ډېرو ځایو کي د قرآن کریم کړه سوی دی، په جواب کي د دوی فقط لفظ الله ویلی دی، او دلته یې عزیز حلیم ورسره زیات کړی، وجه یې څه ده؟

**ځواب**: دا لازم ددوی د قول سره دی چي اسم جليل د الله دی لان الله اسم للذات العزيز العليم وغيرهما من الصفات الجليلة، نو دلته هغه لازم ددوی د قول سره چي الله ؤ په ځای د ملزوم وړاوه لالزام الحجة عليهم.

**سوال**: دا وروسته صفات يعني الذي جعل آه د څه حکمت لپاره راوړي دي؟

**ځواب**: هغه يعني الذي جعل لكم او معطوف پر هغه يعني والذي نزل من السماء الى اخيره جمل مستانفه دي لپاره د بيان د العزيز العليم فافهم.

الَّذِیْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ مَهْدًا وَّجَعَلَ لَكُمْ فِیْهَا سُبُلًا لَّعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ ﴿۱۰﴾

هغه خدای دی چي ګرځولې يې ده مځکه فراش چي تاسي پر ګرځي من موضع الى موضع وتنامون عليها، د مثال په توګه لکه زانګو د طفل چي د هغه خوابګاه ده او د استراحت ځای دی، او پيدا کړي دي خدای پاک په مځکه کي ستاسي د نفع لپاره لاري چي د هغو لارو په ذريعه د تجارت او نورو مقاصدو لپاره رفت او آمد وکړئ.

**پوهه**: چي لعل په معنٰى د لام کی دی ای کی تهتدون الى مقاصد کم او تهتدون الى حكمة الصانع بالتفكر فيها.

وَالَّذِیْ نَزَّلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءًۢ بِقَدَرٍ ۚ

او هغه خدای دی چي را اوروي له اسمان يا د وريځي څخه (لان كل ما علاك سماء) اوبه يعني بارانونه په اندازه سره چي په فائده سره ستاسي د کښتو او باغو تمامېږي، او ضرر نه رسوي يعني داسي نه دی لکه طوفان نوح عليه السلام.

**سوال**: عادي بارانونه ګاهي د بعض خلګو ضعيفه ودانۍ ونړوي؟

**ځواب**: ترک د خير کثير لپاره د دفع د شر قليل خارج له قانون څخه د حکمت الهي دی وايضًا قال الشاعر:

فيض سعادتش بهمه کس برابر است	نقصان ز قابلست وګرنه علی الدوام

يعني باران د سعادت و ټولو انسانانو برابر دی لکن نقصان په زړه خونه کي ؤ چي د باران له سببه ونړېده.

فَاَنْشَرْنَا بِهٖ بَلْدَةً مَّیْتًا ۚ كَذٰلِكَ تُخْرَجُوْنَ ﴿۱۱﴾

نو موږ ژوندۍ کړی په هغو ابو سره (فانشرنا) په دې عبارت کي التفات دی له

غيبت ته چي په ماقبل عبارتو کي ؤ و تکلم ته، وهذه الانتقالات من التکلم الى الغيبة او الخطاب او من الغيبة الى التکلم والخطاب او من الخطاب الى التکلم و غيبت ته چي مجموع شپږ دي د محسناتو څخه د عربيت کما تقرر في علم البيان، معنى د انشرنا احيينا ده، بلدة ته په معنى معروف نه دى يعني ښار، بلکه يو ځاى او ځمکه چي د مخه تر او ربښت مړه وه (مرګ د ځمکي عدم النباتات عليها) (کذالک) اى اخراجًا وانشاءً مثل انشاء الارض بالمطر، تاسي به راوځي له قبرو څخه او حيث ما کنتم امواتًا يعني ژوندي به سي عند نفخة الصور الثانية لاسرافيل ؑ.

**درويش وايي**: چي بخاري او مسلم چي په اصطلاح د اهل الحديث يې شيخان بولي او د دوى دوو کتابو ته صحيحين بولي، روايت کړى دى ابو هريرهؓ قال قال رسول اللهﷺ مابين النفختين اربعون، خلګو ورته وويل يا ابا هريرة اربعون يومًا؟ (څلوېښت ورځي دي) ده ورته وويل "ابيت" (زه له دې څخه ابا کوم يعني نه وايم چي څلوېښت ورځي دي) قالوا اربعون شهرًا؟ قال ابيت، قالوا اربعون عامًا؟ قال ابيت، راوي وايي چي سبب د ابيت ويلو د ابى هريرهؓ دادى چي دده لفظ مسموع د عليه الصلوة والسلام څخه نه ؤ، ثم قال ابو هريرةؓ ثم ينزل الله من السماء ماءً، بيا خداى باران شروع کړي (وفي رواية ختهه او به لکه نطفه) نو دا انسانان له ځمکي څخه راووځي لکه وابنه د ځمکي له تخمو څخه: ابو هريره په روايت د عليه الصلوة والسلام وويل: ليس من الانسان شيئ الا ابتلى (هيڅ شى له انسانانو څخه نسته يعني صحيح اندام نسته مګر خاوري کېږي او زړېږي) الا عظمًا واحدًا وهو عجب الذنب (مګر نه يو هډوکى چي ګردى هډوکى دى هغه نه خاوري کېږي او نه ورستېږي) پر هغه د انسان ترکيب کېږي لکه پر تخم چي ترکيب د نبات کېږي، او ابن ابى حاتم له ابن عباسؓ څخه روايت کړى دى چي وروسته روحان راخوشي کړل سي او د خداى ﷻ له خوا امر ورته وسي چي هر روح دي خپل بدن ته داخل سي چي په دنيا کي ؤ.

**پوښتنه**: هر روح خپل بدن څنګه پېژني؟

**ځواب**: په حديث شريف کي راغلي دي لکه هر انسان چي په دنيا کي خپل کور ته ورتلى د بل چا په کور نه ور ننوتى، همدارنګه د روح مثال دى.

**درويش وايي:** ولا يدرک قدرة الله الا هو، نو دا د حيرانتوب خبره نه ده نظر و قدرت تامه کامله ته د خداى ﷻ بلکې يجب الايمان به.

وَالَّذِیْ خَلَقَ الْاَزْوَاجَ

**پوه سه:** چي ازواج دلته په معنى معروف سره نه دى بلکې په معنى د اصناف الخلائق، او له ابن عباس ؓ څخه روايت دى چي ازواج دلته په معنى د انواع او اقسام دى کالحلو (شيرين) والحامض (تريخ) والابيض (سپين) والاسود (تور) والذکر (نر) والانثى (ښځه)

وَجَعَلَ لَكُمْ مِّنَ الْفُلْكِ وَالْاَنْعَامِ مَا تَرْكَبُوْنَ ﴿۱۲﴾

او ګرځولي يې دي يعني پيدا کړي يې دي ستاسي د نفع لپاره له کښتيانو څخه او د چارپايانو څخه يعني چي صالح د سپرتيا وي لکه اوښان او غوايي نه پسه يا بزه، هغه شيان چي تاسي پر سپريږئ.

**پوه سه:** چي کلمه د ما موصوله ده عائد يې محذوف دى اى ترکبونه.

**پوه سه:** چي رکوب نظر و کښتى ته متعدي په حرف جر ده وهو في کما في قوله تعالى: واذا رکبوا في الفلک، بخلاف الرکوب بالنظر لا اليه فانه يتعدى بنفسه کما في قوله تعالى لترکبوها، نو په دې آيت کې يې تغليب ورکړى و متعدي بنفسه ته يعني کلمه د في يې نه راوړه لقوته على المتعدي بحرف الجر، او يا يې تغليب ورکړى و هغه شي ته چي مخلوق د خالق د رکوب لپاره وي لکه انعام پر مصنوع باندي لکه کښتى لکونه مصنوع الخالق القدير، يا يې تغليب وزکړى و غالب ته پر نادر باندي، فافهم کذا في روح المعاني مفصلا وفي المظهري اجمالاً وفي روح البيان بين الاجمال والتفصيل وکذا في البيضاوي والتفسير الکبير للامام الرازي ؒ.

لِتَسْتَوٗا عَلٰى ظُهُوْرِهٖ

چي تاسي برابر سئ يعني سپاره سئ پر شاؤ د ما ترکبون.

**سوال:** دمخه خو کلمه د ما مفرده راغلې وه، نو د ظهوره وما مفرد ته څرنګه صحيح کيږي؟

**ځواب:** کلمه د ما که څه هم مفرد ده لفظًا لکن جمع ده معنًى.

ثُمَّ تَذْكُرُوا نِعْمَةَ رَبِّكُمْ إِذَا اسْتَوَيْتُمْ عَلَيْهِ

دربه یاد کړئ په زړو کي خپل د رب نعمت چي تاسي سپاره سئ پر مرکوب بحري چي کښتی ده، او پر مرکوب بري چي غالبًا اوښ دی چي موږ مسخر کړي دي، افراد د ضمير یې په سبب د تأويل په مرکوب سره یا په اعتبار د لفظ ما.

وَتَقُولُوا سُبْحٰنَ الَّذِي سَخَّرَ لَنَا هٰذَا وَمَا كُنَّا لَهُ مُقْرِنِينَ ﴿١٣﴾

او تاسي ووایاست په ژبه حمد ددې نعمت.

**پوښتنه:** تقسیم د مرکوب یې په بري او بحري کي وکړی فقط او هوایي مرکوب چي طیاره ده نه یې وکړی؟

**ځواب:** په زمانه کي د نزول القرآن هوایي مرکوب نه ؤ.

(سبحان) اي اسبح سبحان، یعني پاکي ده هغه قادر على الاطلاق ذات لره چي مسخر یې کړځولي دي موږ ته دا مرکوب بري او بحري او موږ نه ؤ مطيقين ددوی د تسخير بحولنا وقوتنا لان الضعيف لاتطيق تخسير القوي.

**فائده:** جمله د ماكنا الخ حال ده یا د لفظ څخه د هذا یا د ضمیر د لنا.

**درویش وایي:** چي چونکه په اوسنی زمانه کي مرکوب هوایي چي طیاره ده هم موجوده ده ځکه طیاره چلونکي په ابتداء کي د طیاره پورته کولو دغه آیت وایي: سبحان الذي سخرلنا هذا الى اخيرها.

وَإِنَّا إِلَىٰ رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُونَ ﴿١٤﴾

او په تحقيق موږ و خدای ته راجع کېږو یعني په ورځ کي د قیامت.

**پوښتنه:** ددې آیت په ماقبل آیتو سره حکمت یې څه دی؟

**ځواب:** حکمت یې دادی رکوب مطلقًا لپاره د نقل وي د یوه ځای څخه بل ځای ته والنقلة العظمى هو الانقلاب الى الله المتعال، ولي لکه نقل د بحر او بر د خطره سره ملګری وي كذا الانقلاب الى الله المتعال ته د لوی خطر سره ملګری دی فينبغي للعاقل ان لايغفل عنه، او هغه انتقال لپاره لویه سرمایه ده عبادا تو له ځان سره یوسي، روى ابو داؤد والترمذي والنسائي والبغوي عن علي ابن ابى طالب ﷺ چي دده پښه په رکیب کي د آس یا د اوښ کښېښول قال بسم الله فلما

استوی چي برابره به کښېنستی نو اول به يې الحمد لله وروسته به يې ماقبل آيت تر پايه پوري ووايه، يعني سبحان الذي سخرلنا هذا تر پايه پوري وروسته به يې درې واره حمد د خدای ﷻ ووايه او الله اکبر به يې درې واره ووايه، وروسته به يې وويل لآ اله الا انت ظلمت نفسي فاغفرلي ذنوبي فانه لايغفر الا انت، وروسته بې وخندل. چا پوښتنه ځني وکړه چي د خندا سبب څه ؤ يا امير المؤمنين؟ ده ورته وويل چي رسول الله ﷺ فعل مثل ما فعلته يعني اقتداءً برسول الله ﷺ مي دا افعال او اقوال وکړه. وروسته مونږ عليه الصلوة والسلام ته وويل چي څه شي تاته خندا پيدا کړه يا نبي الله؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي ماته تعجب او خندا پر دغو تعجب آميزه کلماتو د بنده راغله (يعني چي په دربار کي د خدای ؒ څو مره ځای د قبول پيدا کړي) حتی چي خدای ﷻ هم ددې اقوالو د بنده اظهار د تعجب وکړي.

**سوال:** د تعجب معنی په خدای ﷻ کي څرنګه متصور کېږي لانه ادراک امر عجيب ولا عجيب في علمه تعالی؟

**ځواب:** معنی د تعجب په خدای ﷻ کي اظهار د کامل رضا ده د بنده څخه.

**درويش وايي:** چي مظهري ؒ خو د علي ﷺ حديث پوره راوړی دی لکن د خدای ؒ د تعجب ځای يې نه دی پکښې راوړی يا سهواً يا د کاتبانو څخه د کتابت پاته سوی دی، والله اعلم.

## وَجَعَلُوا لَهُ مِنْ عِبَادِهِ جُزْءًا

ګرځولی دی دوی خدای ؒ لره له بندګانو څخه جزء، ومعنی الجعل الاعتقاد به. دا څو قبيلې وې د عربو، يوه قبيله بنوا المليح وه او بله د خزاعه قبيله وه، دوی به ويله چي خدای پاک د سرواتو يعني د خانانو د جنياتو سره خوېښي يعني ددوی لوڼې يې په نکاح کړي دي او ملائکه يې لوڼې ځني پيدا سوي دي.

**يوه سه:** چي دا جمله معطوف ده علی قوله "ولئن سئلتهم من خلق السموات آه" وجه د تناسب بين المعطوفين تناقض، ولي چي دوی اقرار وکړی چي انه تعالی خالق السموات والارض کما في المعطوف عليه، بيا توصيف کوي چي ده لره جزء سته او سره ددې عقل اباء کوي مايتجزی محاله ده چي هغه دي واجب الوجود هم وي او خالق دي هم وي، لان ما يتجزی في معرض الفناء فکيف يکون واجبًا،

والمراد قولهم ان الملائكة بنات الله كمامر، و وجه تسمية الولد بالجزء لان الولد مايكون مخلوقًا من نطفة الوالد والنطفة جزء من الوالد ولهذا قال رسول الله ﷺ فاطمة بضعة مني فمن اغضبها اغضبني، رواه البخاري عن المسور بن مخرمة.

إِنَّ الْإِنسَانَ لَكَفُورٌ مُّبِينٌ ﴿١٥﴾

په تحقيق انسان جاهل دی ښکاره مفرط دی په جهل کي ولي هغه شيان چي د خدای سره لائق وي نه يې پېژني، او خدای ﷻ ته د مالايبغي لکه ولد او شريک نسبت کوي چي پر خدای محاله دی.

أَمِ اتَّخَذَ مِمَّا يَخْلُقُ بَنَاتٍ وَأَصْفَاكُم بِالْبَنِينَ ﴿١٦﴾

**يوه سه:** چي کلمه د ام په معنی د بل آه ده، بل لپاره د انتقال دی من قوله وجعلوا له آه، او همزه لپاره د انکار دی، آيا ګرځولي دي خدای له هغه مخلوق څخه چي ده پيدا کړي لوڼې (چي کافرانو به ويل ملائکه بنات الله دي) او تاسي يې مختاره کړي ياست په زامنو سره.

**يوه سه:** چي دا جمله مستأنفه ده مقدر په قل سره ده، تقديره قل لهم ام تخذوا مما يخلق بنات واصفاكم بالبنين، او سره ددې چي ابغض د اولادو و کفارو ته لوڼې وې کما قال الله واذا بشر احدهم بالانثى ظل وجهه مسودا وكظيم (هغه وخت چي زېرې وسي و يوه ته ددوی يعني المشركين په لور سره مخ يې تور سي د خواشنۍ او د غمه ډک وي، کما سيئاتي، او بل ځای په قرآن کي خدای پاک فرمايي: الكم الذكر وله الانثى تلك اذًا قسمة ضيزي.

وَإِذَا بُشِّرَ أَحَدُهُم بِمَا ضَرَبَ لِلرَّحْمَٰنِ مَثَلًا

او چي زېرې وسي و يوه ته ددوی په هغه ولد سره (يعني لور ده) په هغه شي سره چي دوی د الرحمن لپاره مثل ګرځولی دی ای بالجنس الذي جعلوا له تعالى مثال اذ الولد لابد ان يماثل الوالد او يا مراد د مثل څخه وصف او حال دی يعني چي تاسي د خدای اصل وصف ګرځولی دی، فالمعنى اذا بشر احد منهم بالوصف والحال الذي جعلوا للرحمن.

ظَلَّ وَجْهُهُ مُسْوَدًّا وَهُوَ كَظِيمٌ ﴿١٧﴾

وګرځي مخ دده شديد السواد له سببه د ډېر غم، او ډک وي زړه دده له کرب او اضطراب څخه.

**سوال**: د اصفاكم خطاب و چا ته دی؟

**ځواب**: دا جمله مستأنفه ده په تقدير د قول تقديره قل لهم ام اتخذ مما يخلق بنات واصفكم بالبنين فصاروا مخاطبين فافهم، که دا تقدير نه وای نو اصفاكم په منځ کي د دوو غائبو لفظو راغلی دی يعني (۱) وجعلوا له من عباده جزء (۲) واذا ابشر احدهم.

اَوَمَنْ يُّنَشَّؤُا فِي الْحِلْيَةِ وَهُوَ فِي الْخِصَامِ غَيْرُ مُبِيْنٍ ﴿١٨﴾

آيا هغه څوک چي تربيه يې کېږي يعني ښځي، ولي د ښځو حسن مخ دی په صورت کي نو دوی ځانو ته ښائسته کوي په زرو او زېورو سره او په سرخي او سفيده سره تا چي نور يې هم حسن زيات سي، بخلاف الرجال ولي چي د دوی ښائست په اوصافو سره دی لکه فصاحت او بلاغت او علم وغيرها سره و ذالک غير محتاج الی الحلية الظاهرة، نو نر لره نه ده په کار او نه ور سره ښايي چي لکه ښځه په زينت ظاهري لاس پوري کړي او دا عيب دی د نر لپاره، پښتانه وايي: پلانی ښځونک دی.

**پوهه**: چي همزه لپاره د انکار مکرر دی چي کفار ملائکه بنات الله بولي او ښځي يې بولي لکه د انسانانو ښځي. او د ښځو حال دا دی چي ينشؤ في الحلية نو دا نسبت و خدای ته کول سخت منکر نسبت دی.

او هغه (ضمير راجع دی و من ته چي مراد ځني ښځي دي) د خولې په خصومت کي يا د تېري (يعني بل څوک تېری پر وکړي) په خصومت کي خپل دليل نسي بيانولای لضعف عقولهن ولنقصان قلوبهن.

**درويش وايي**: چي دا حالات د ښځو په اعتبار د غالب دي والا فقد قال معاويةؓ ما رئيت ابلغ من عائشةؓ او په دلائلو کي تر ډېرو نرانو بالا وه.

وَجَعَلُوا الْمَلٰٓئِكَةَ الَّذِيْنَ هُمْ عِبٰدُ الرَّحْمٰنِ اِنَاثًا ط

او ګرځولي دي کفارو ملائکه چي هغوی بندګان د رحمٰن دي يعني علحده مخلوق دی چي نه لکه نر د انسانانو دي او نه لکه ښځي، دوی يعني کافرانو ښځي

وګرځولي يعني د متعارفو ښځو ګمان پر لري، دا جمله عطف ده په هغه قول د خدای
وجعلوا له من عباده جزء، حاصل دي دوو آيتو دادی چي کافران توصيف د خدای
بما لايليق به وهو ان له ولد من جنسه وذالک تحقير لشانه تعالی او توصيف د
ملائکي يې وکړی چي خيار عباد الله وي په ښځو سره وفي ذالک استحقار شانهم.

أَشَهِدُوا خَلْقَهُمْ

الاستفهام للانکار آيا دوی يعني کافران حاضر وه په پيدائش د ملکو کي چي
دوی ښځي دي، يعني دوی ورته حاضر نه وه فکيف يحکمون، وفي هذه الآية
تجهيل (اظهار د جهل د دوی دی)

**پوه سه:** چي شهود په معنی د حضور دی لا بمعنی الشهادة المعروفة لان حکم
الانوثة علی مخلوق الله فرع الحضور بلکي دا خبره دوی يعني الکافرون في زمن
رسول الله انما سمعوه من آبائهم وهم کذابون جاهلون وهلم جرًا، نو دوی د منجمانو
دي او اهل الحکمة الموهبة دی، ولي چي ددوی په قاصرو عقلو سره د غيب د
اخبارو خبرونه نشر کوي، عماد الکاتب وايي چي يو برجسته عالم دی چي په سنه
۵۸۲ هـ کي منجمانو د دنيا دا اعلان وکړی چي بلاد د شعبان په مياشت کي د باد د
طوفان له سببه خرابيږي، نو ملکو د پارس او روم په غرو کي غارونه کيندل شروع
کړه چي په فلانی شپه لکه منجم چي اخبار ورکړی ؤ په دغو غارو کي پټ سوه سره د
اهل او عيال، او مسکينان چي د غره د کيندلو طاقت يې نه درلودی د خدای پر
توکل ناست وه، منجمينو خو د داسي تېز باد خبر ورکړی لکه باد د عاد د قوم، ملا
عماد وايي چي په هغه شپه سلطان ناست ؤ او د ېر شمانې يې لګولي وه شپه تېره سوه
دومره باد نه سو پيدا چي دغه شمانې مړه کړي، نو دا وه قصه د ښکرورو درواغو د
منجمانو، آورده اند که يک غيب گوی در کدام وطن بود که خبرهای ملائکه
در آسمانها بمردم بيان ميگرد که به اصطلاح اورا کاهن می گويند، روزی آن کاهن
بخانه خود آمد با زن او شخص بيگانه ديد که بازی می کند ولب بوسی وخد بوسی
ميکرد دشنام داد ودر محل او فتنه وغضب برخاست مردم محله جمع شدند،
صاحب دلی يعنی شخص ولی الله اين خبر شنيد، وچنين گفت:

تو بر اوج فلک چه دانی که چيست　　چون ندانی که در خانهٔ تو کيست

سَتُكۡتَبُ شَهَادَتُهُمۡ وَيُسۡـَٔلُونَ ﴿١٩﴾

ژر دی چي نوشته به سي شاهدي ددوی (يعني كفارو پر ملكو دانوثت) په ديوان كي د اعمالو ددوی، او له دوی څخه به پوښتنه وسي په ورځ د قيامت لپاره د توبيخ، مقاتل او كلبي" وايي چي اهل مكه چي دا قول وكړی چي ملكي د خدای لوڼې دي عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي تاسي نو څه خبر ياست؟ دوی ورته وويل چي موږ ته زموږ نيكه ګانو ويلي دي او زموږ پلرونو او نيكه ګانو هيڅ كله دروغ نه دي ويلي، او ابن المنذر" له قتادة" څخه روايت كړی دی چي بعض منافقانو دا ويل چي خدای د جنياتو لوڼې او خوندي په نكاح كړي دي دا ملكي تولي د خدای لوڼې دي تعالى شانه وذاته من ذالك.

وَقَالُواْ لَوۡ شَآءَ ٱلرَّحۡمَٰنُ مَا عَبَدۡنَٰهُمۗ

وويل كفارو د مكې (دا جمله عطف ده پر وجعلوا الملائكة) كه د رحمٰن اراده وي (مفعول د شاء محذوف دی يعني ان لا تعبد الملائكة) موږ به عبادت د ملكو نه كولای.

**پوه سه:** چي دا قول د قتاده، مقاتل او الكبي" دی، او مجاهد" وايي يعنون الاوثان، وعلى كل حال مراد د دوی دا دی چي چونكه مشيت د خدای د ملكو د عبادت يا د بتانو د عبادت مستلزم دې لره دی چي دا دواړه عبادت ښه كار دی فلا معنى النهي عنهما لكه په دين كي د اسلام چي نهي څني راغلي دي او دا خبره ددوی كذب محض دی ولي مشيت د خدای" لپاره د ترجيح د بعض ممكناتو على بعض كه مأمور به وي او كه منهي عنه كه حسن او كه قبيح وي لكن د تكليف منات حسن او قبح ده چي خدای په راضي وي او فرق د مشيت او د رضاء تر مابين من قاف الى قاف، قال الله تعالى ولا يرضى لعباده الكفر (يعني ولا العصيان) قال الله رداً عليهم.

مَّا لَهُم بِذَٰلِكَ مِنۡ عِلۡمٍۖ إِنۡ هُمۡ إِلَّا يَخۡرُصُونَ ﴿٢٠﴾

چي دوی يې دعوه كوي چي ملائكه بنات الله او يا بتان شركاء الله او خدای ﷻ د هغو په عبادت سره راضي دي (من علم) چي يا حسي دليل وي يا عقلي صحيح دليل پر دوی (ان هم آه) دا جمله تاكيد ده ماقبل ده يعني نه دي مگر

درواغ وايي فان الخرص الكذب وكل قول بالظن والتخمين سواء طابق الواقع اولا چي په پښتو يې اټكل بولي، كذا قال الراغب الاصفهاني.

أَمْ آتَيْنَاهُمْ كِتَابًا مِّن قَبْلِهِ فَهُم بِهِ مُسْتَمْسِكُونَ ﴿٢١﴾

كلمه د ام متصله ده او معادلة د همزه في قوله تعالى اشهدوا خلقهم والمعنى اشهدوا وقت خلقهم اى الملائكة حتى چي په سترګو يې ليدلي واى چي ملائكه ښځي دي او يا په اسماني كتاب چي پر دوى نازل سوى دى (من قبله) اى من قبل القرآن المجيد يا د مخه تر دعوى د دوى چي هغه كتاب پر صحت د ماقالوا دلالت كوي (فهم به آه) نو دوى په هغه كتاب سره تمسک وايي يعني دليل پر صحت د خپلي دعوې وايي.

بَلْ قَالُوا إِنَّا وَجَدْنَا آبَاءَنَا عَلَىٰ أُمَّةٍ وَإِنَّا عَلَىٰ آثَارِهِم مُّهْتَدُونَ ﴿٢٢﴾

عطف على قوله ام اتيناهم، حاصل الآية چي كفار خو خلق ته د ملائكه وُ حاضر نه وه تا چي په حس ورته معلومه سوې واى چي ملكي ښځي دي نو بې تفريع كړې واى چي د خداى پاک نعوذ بالله لوڼي دي، او نه كوم دليل عقلي صحيح پر انوثيت د دوى لري او نه يو كتاب اسماني چي په هغه كتاب كي دي انوثة د ملكو بيان سوي وي، بلكې دا قول د دوى تقليداً كوي حيث قالوا (انا وجدنا آبائنا على امة) په تحقيق موږ پيدا كړي دي خپل پلرونه پر يو ملت يعني يو دين (يعني المذكور ان الملائكة اناث وبنات الله) او موږ موجودين في زمن النبي ﷺ پر آثارو د خپلو پلرو پر هدايت روان يو يعني نه دليل حسي لرو او نه عقلي او نه كتاب سماوي بلكې دغه تقليد د خپلو لرو د هدايت لاره ده، گفته اند: بيت

آن كس كه نداند وبداند كه بداند — در جهل مركب ابد الدهر بماند
وآن كس كه نداند وبداند كه نداند — او اسپ خود از گنبد فيروزه جهاند

فتدبر في البيتين تعلم حال المقلدين لابائهم الضالين.

**مسئله**: په دې آيت كي ذم تقليد دى چي معنى يې قبول د قول ده بېله دليله لكن تقليد روا دى په فروع كي د دين يعني العمليات ولايجوز في اصول الدين والاعتقاديات بل لابد من النظر والاستدلال على ذالک، سعدي وايي:

برگ درختان سبز در نظر هوشيار ..... هر ورقى دفتريست معرفت كردگار

**درويش وايي:** چې دا هم نظر او استدلال دی چې د يو صحرايي څخه چا پوښتنه وکړه چې د خدای پر وجود او صفاتو څه دليل لرې؟ ده ورته وويل البعرة تدل على البعيرة والاقدام على المسير فكيف لايدل هذا العالم الكبير على الصانع الخبير، وما احسن ماقاله.

**درويش وايي:** چې اول ايمان واجب دی پر خدای بالعقل... بيت:

گر انبياء هم نامدی نی شرع بودی در جهان واجب شدی مؤمنان ايمان بخالق مقتدر

وتفصيل هذا الكلام في علم الكلام، اوس خدای پاک د رسول الله ﷺ د تسلي لپاره وايي:

وَكَذٰلِكَ مَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ فِىْ قَرْيَةٍ مِّنْ نَّذِيْرٍ اِلَّا قَالَ مُتْرَفُوْهَآ ۙ

او دغه رنګه لکه ستا قوم چې جواب په تقليد د اباؤ درکړی، نه دی استولی موږ تر تا د مخه په يوه قريه کې يو بيرونکی يعني له عذاب څخه د يوم القيامة چې انبياء عليهم السلام على كثرتهم مګر نه په داسې حال کې چې مالداران.

**پوه سه:** چې قريه نفس وطن ته وايي که ښاروي او که کلی، که ډېر وي او که لږ.

اِنَّا وَجَدْنَآ اٰبَآءَنَا عَلٰٓى اُمَّةٍ وَّاِنَّا عَلٰٓى اٰثٰرِهِمْ مُّقْتَدُوْنَ ﴿۲۳﴾

وقد مر تفسير الآية والمهتدون والمقتدون بمعنى واحد، حاصل د تسلي و عليه الصلوة والسلام ته دادی چې ضلال د تقليد في الدين ضلال قديم او د دوی متقدمين يعني نيکه ګان دين مستند وهيڅ شي ته نه ؤ بلکې هلم جرا دوی داغه خبره کول چې انا وجدنا الى اخير الآية.

**فائده:** تخصيص د متنعمين چې وکړی له دې سببه چې په هغو کې غرور او تکبر دی نو متابعت د يو شخص چې نبي دی سر نه کښته کوي.

قٰلَ اَوَلَوْ جِئْتُكُمْ بِاَهْدٰى

ويل به هر نذير من اولئک المنذرين لاممهم چې بهانه به وکړه چې موږ په دې خبرو او افعالو کې تقليد د آباؤ کوو، الهمزة لاستفهام الانكار والواو للحال والتقدير اتتبعون اباءكم ولو جئتكم (باهدى) اى بدين وطريقة اهدى يعني دين د نبي الوقت دی.

مِمَّا وَجَدْتُّمْ عَلَيْهِ اٰبَآءَكُمْ ۚ قَالُوْٓا اِنَّا بِمَآ اُرْسِلْتُمْ بِهٖ كٰفِرُوْنَ ﴿۲۴﴾

تر هغه دين چي تاسي پيدا كړى دى پر هغه دين خپل پلرونه (قالوا) اى قال الكافرون في جواب المنذرين، يعني كافرانو د وخت د هر نبي، په تحقيق موږ په دين سره چي تاسي په راستول سوي ياست كافران او منكران يو كه څه هم ستاسي په خوله هغه دين اهدى وي په دې قول كفارو من كل الوجوه نا اميده كړي نذير د دې څخه چي موږ دې ستا په دين كي نظر وكړو يا دي فكر وو هو.

**سوال:** په دې آيتو كي خو بيان سوال و جواب د هر قوم د خپل نذير سره او نذير د هر قوم خو يو دى فما معنى الجمعية في قولهم بما ارسلتم به؟

**ځواب:** مراد په جمع سره نبي و من تبعوا دى.

فَانْتَقَمْنَا مِنْهُمْ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِيْنَ ﴿۲۵﴾

يعني انتقام ځني واخستى په استيصال سره، نو وګوره ايها الناظر الغير المعين چي څرنګه سو اخير كار د عذاب د المكذبين وهو الاستيصال عن وجه الارض.

**درويش وايي:** چي د دې تېرولي قصې څخه مطلب دادى چي ستا د زمانې مكذبين هم بايد عبرت واخلي چي پر دوى به هم عذاب راسي او په عين حال كي تسلي ده و عليه الصلوة والسلام ته چي ته د دوى په تكذيب مه غمجن كېږه ولي چي ستا د مكذبينو څخه به هم انتقام واخسته سي وقد انجز الله هذه الوعد ..... في البدر وفي فتح مكة... بيت:

پند گير از مصائب ديگران ..... تا نگيرند ديگران ز تو پند

زود مرغ سوئى دانه فراز ..... چو بيند مرغ ديگر اندر بند

**حكايت:** له شعبي څخه روايت دى چي يو وخت زمري، لېوه او ګيدړه په ښكار وتلي وه، نو يوه د غره پسه (چي حمار وحشي يې بولي) ښكار كړى، او بل د هوسۍ كبلى، او بل سوى، نو زمري و لېوه ته وويل چي دا سره تقسيم كړه، لېوه وويل چي د غره پسه چي اعلى د ښكار سوي حيوانا تو دى د حضرت الملك الوحوش دى، او كبلى يې زما او سوي يې د ګيدړي، زمري چمبه پورته كړه لېوه يې پر سر په وواهه چي روح يې وركړى يعني لېوه، بيا زمري ګيدړي ته وويل چي

ته نو اوس وبښ وکړه. ګیدړي وویل چي د غره پسه دي حضرت الملک د څاښت په وخت کي نوشجان کړي او کبلی دي د ماښام په وخت کي وخوري او سوی دي د ماپښین په وخت. نو زمري ورته وویل چي څه عجیب قضاوت دي وکړی دا قضاوت چا در ښوولی دی؟ ګیدړي ورته وویل چي دا قضاوت هغه چمبې را ښوولی دی چي حضرت الملک لږوه په وواهه.

**درویش وایي:** چي که رشتیا هم نه وي د عبرت لپاره ښه تمثیل دی.

وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ لِاَبِيْهِ وَقَوْمِهٖٓ اِنَّنِيْ بَرَآءٌ مِّمَّا تَعْبُدُوْنَ ۝۲۶

په یاد کړه ته یا محمد ﷺ و قوم ته خپل هغه وخت چي وویل ابراهیم[4] خپل پلار آذر ته چي مشرک ؤ او خپل قوم ته چي هغوی هم مشرکان وه، په تحقیق زه بېزاریم.

**فائده:** په یادول د قصې د ابراهیم علیه السلام و پلار او قوم ته چي علیه الصلوة السلام مامور په ذکر کولو سره و کفارته د مکې لان مشرکی مکة یقولون نحن علی ملة ابراهیم، نو خدای جل جلاله پر دوی په دې آیت کي رد وکړی، حاصل د رد یې دادی چي ابراهیم خو پر خپل پلار او قوم د شرک څخه بېزاري ښکاره کړه او تاسي اهل مکه خو مشرکین یاست، نو څرنګه دعوی د ملت ابراهیم ستاسي صحیح ده.

مصرع:... این خیال است و مال است و جنون

**پوه سه:** چي براء اصلاً مصدر دی، دلیل یې دادی چي براء نه تثنیه کېږي او نه جمع کېږي کما هو القانون في المصدر فیقال زید براء وزیدان براء وزیدون براء.

**سوال:** نو چي مصدر دی حمل یې څرنګه صحیح دی پر ضمیر د متکلم؟

**ځواب:** تاویله مشهور اما بالحمل علی المبالغة واما بحذف المضاف ای ذو براء، واما بجعله بمعنی المشتق ای بریئ کما ذکر النحات تلک التوجیهات في زید عدل فافهم.

**پوه سه:** چي کلمه د ما یا مصدریه ده ای من عبادتکم الاصنام یا موصوله ده ای معبودکم وهو الاصنام.

اِلَّا الَّذِيْ فَطَرَنِيْ فَاِنَّهٗ سَيَهْدِيْنِ ۝۲۷

مګر نه د هغه خدای څخه چي زه یې پیدا کړی یم.

**فائده:** که مراد د ماتعبدون څخه اصنام سي نو دا استثناء منقطع ده ولي چي

الذي فطرني خو يازي خداى دى بتانو خو مافطرني نه دي، نو مثال يې دا دى جائني القوم الاحمار، او که ما تعبدون چي ما موصوله سي او العلم ته هم شامل سي نو استثناء متصل ده فافهم كانوا يعبدو الله والاصنام

**سوال:** ابراهيم ﷺ خو پر هدايت وُ چي نبي وُ نو د سين د استقبال څه معنیٰ ده؟

**ځواب:** معنیٰ د استقبال داده سيثبتى على الهداية وهو مستقبل او يا معنى داده چي ماته به ارشاد وکړي بالا تر هغه چي ماته هدايت کړی دی لان درجات د هدايت الله غير متناهية.

وَجَعَلَهَا كَلِمَةً بَاقِيَةً فِي عَقِبِهِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ﴿۲۸﴾

او وکرځول ابراهيم ؑ دغه کلمه (اى كلمة التوحيد المفهومة من قوله انني براء الى قوله سيهدين) باقي کلمه په پس مانده ګانو کي، قتاده رح وايي چي همېشه په اولاد کي د ابراهيم ؑ داسي کسان موجود وه چي د خداى جل جلاله د توحيد معتقد وه، قرطبي رح وايي جعل الله وصية ابراهيم باقية في نسله وذريته كما قال الله تعالى ووصى بها ابراهيم بنيه ويعقوب الآية، دا هلته چي دى د اور د نمرود خلاص سو او خداى جل جلاله ده ته اولاد كبار وركړه فكانوا فيه نسلاً بعد نسل من يوحد الله ويدعوا الناس الى التوحيد وخاتمة تلك الدعوة الى التوحيد سيد الاولين والآخرين شفيع المذنبين حبيب العالمين محمد رسول الله ﷺ.

(لعلكم يرجعون) يعني دا قول د ابراهيم ؑ چي ته و اهل مكه ته ذكر كړې شايد اهل مکه له شرک څخه و توحيد ته رجوع وكړي.

بَلْ مَتَّعْتُ هٰؤُلَآءِ وَاٰبَآءَهُمْ

**پوه سه:** چي دا کلمه د بل اضراب دی من قوله لعلهم يرجعون يعني رجوع د اهل مکه خو امکان نه لري بلکې ماتمتع ورکړې وه يعني دنياوي فائده (هٰؤلآء) يعني کفار و ته د مكې چي معاصرين د نبي ﷺ وه، او هغه نيکه ګانو ته د دوی چي پر شرک مړه وه، د تمتع معنى داده چي دوی عذاب پر کفر د دوی نه وُ ورکړى.

حَتّٰى جَآءَهُمُ الْحَقُّ وَرَسُوْلٌ مُّبِيْنٌ ﴿۲۹﴾

تر دې پوري چي راغلی دوی ته حق يعني القرآن وقيل الاسلام، او رسول چي

ظاهر الرسالة ؤ بالمعجزات، او يا معنى داده چې مظهر د توحيد ؤ بالحجج والبينات والآيات او يا معنى داده چې مظهر د احكامو د خداى ؤ.

وَلَمَّا جَآءَهُمُ الْحَقُّ قَالُوْا هٰذَا سِحْرٌ وَّاِنَّا بِهٖ كٰفِرُوْنَ ﴿۳۰﴾

هغه وخت چې راغلى دوى ته حق چې قرآن عظيم الشان دى، وويل دوى چې دا سحر دى او موږ له دې څخه انكار كوو، د سحر نوم يې په دې پر كښېښنو چې دوى يې له اتيان بالمثل څخه عاجزه وه، كريمه: ان كنتم في ريب مما نزلنا على عبدنا فأتوا بسورة مثل منه، وغيره من آيات التحدي.

شان نزول: ابن جرير بالواسطة له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت كړى دى چې ځه وخت چې الله جل جلاله محمد ﷺ مبعوث كړى عربو دده له نبوت څخه انكار وكړى او دوى د حجت وايه چې د خداى شان لوړ دى تر دې چې رسول دده بشر وي، فانزل الله في ردهم اكان للناس عجبًا ان اوحينا الى رجل منهم، وايضًا انزل وما ارسلنا من قبلك الا رجالاً، نو كفارو د مكې وويل چې كه چېرې رسول د خداى بشر كېداى سي نو غير د محمد (ﷺ) كان احق بالرسالة، نو ددې سبب دوى داسي بيان كړى.

وَقَالُوْا لَوْلَا نُزِّلَ هٰذَا الْقُرْاٰنُ عَلٰى رَجُلٍ مِّنَ الْقَرْيَتَيْنِ عَظِيْمٍ ﴿۳۱﴾

دوى وويل چې ولې نه نازلېدى دا قرآن پر يو سړي د دوو قريو چې مكه او طائف دي (عظيم) بالجاه والمال، ولې چې دوى وايي چې رسالت يو لوى منصب دى لايليق الا لعظيم بالجاه والمال وغير ذالك او دوى په دې نه پوهېږي چې رسالت يوه روحاني رتبه ده استعداد او كمال روحاني او نفس قدسي مطهر او صبر كامل پر اذيت د كافرانو غوارې لا الرحازف الدنيوية، ابن المنذر رحمه الله له قتاده رحمه الله څخه روايت كړى دى چې وليد بن المغيرة به ويل چې لو كانت الرسالة من الله حقًا كما يقوله محمد لانزل هذا القرآن پر ما باندي چې يو مشرك كثير المال شخصيت يم په مكه كې، او يا پر مسعود بن عمرو الثقفي په طائف كې چې يو مشهور بالدار ذى جاه شخصيت ؤ په طائف كې فنزلت هذه الآية.

**درويش وايي:** وهذا هو القول المشهور، او بغوي رحمه الله وايي چې مجاهد وايي چې مقصود د دوى عتبه بن ربيعه ؤ په مكه كې او عبد يا ليل ؤ په طائف كې، او بعض روات

وايي چي په مکه کي وليد بن المغيرة، او په طائف کي حبيب بن عمر بن عمير الثقفي وُ، دا روايت له ابن عباس رضي الله عنه څخه مروي دى، فرد الله عليهم بقوله اهم يقسمون رحمت ربک، آيا دوى يعني اهل مکه تقسيم کوي د رحمت د خداى چي نبوت دى.

**پوه سه:** چي دا استفهام انکاري د توبيخ او د بيان د جهالت د دوى دى چي د خداى ﷻ په ماشاء کي يې هم مداخلت شروع کړى.

أَهُمْ يَقْسِمُونَ رَحْمَتَ رَبِّكَ نَحْنُ قَسَمْنَا بَيْنَهُم مَّعِيشَتَهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا

موږ وېشلى دى د دوى د ژوندانه رزق او معيشت په اشياء، د دوى د دنيا په ژوند کي مطابقًا لما يقتضي مشيته تعالى مشتملاً على الحكم والمصالح.

وَرَفَعْنَا بَعْضَهُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجَاتٍ

پورته کړي موږ بعض د انسانانو لوړ تر بعض يعني په رزق کي په ډېرو درجو سره يعني بعض انسانان مساکين وي على تفاوت درجات المسکنة، او بعض اغنياء وي على تفاوت درجات غناهم تفاوتًا عظيمًا بحيث لايدرک ذالک التفاوت الاعلام الغيوب.

لِّيَتَّخِذَ بَعْضُهُم بَعْضًا سُخْرِيًّا

تاچي وګرځوي (متعلق دى په رفعنا پوري) بعض د دوى چي مالداران دي بعض د دوى چي مساکين د دوى دي مسخرًا في العمل بعض مزدوران.

**پوه سه:** چي يا د نسبت ده. قتاده رح او الضحاک رح وايي اى يملک بعضهم بعضًا بالعبودية والملک، دا هغه وخت وُ چي مريان وه او س چونکه مريان نسته نو ځکه يې ما ترجمه په مزدورانو سره وکړه.

وَرَحْمَتُ رَبِّكَ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُونَ ﴿٣٢﴾

او رحمت د خداى چي نبوت دى او ولايت دى او قرب الهي دى وامثالها چي توله يې د توابع څخه د نبوت دي، غوره دي له هغه څه څخه چي کافران يې جمع کوي من حطام الدنيا، نو څوک چي قادر نه وي چي د ځان لپاره دي رفعت په دنيا کي حاصل کړي لا ذالک في مشيت الله کما يدل عليه قوله تعالى ورفعنا بعضهم

فوق بعض درجات، نو هغه د نبوت چي اعلى درجه د انسانيت ده څرنګه خواهش کوي كما يدل عليه قوله تعالى لولا نزل هذا القرآن على رجل من القريتين عظيم.

**فائده:** حاصل د دې آيت دادی چي عظيم عند الله من رزق النبوة لکه محمد ﷺ لا من رزق متاع الدنيا لکه وليد بن المغيرة يا مسعود بن عمر الثقفي په طائف کي.

**فائده:** چونکه د کافرانو په نېز عظمت د سړي په ډېر والي د اموالو او د جاه وجلال او د بنګلو په درلودلو سره دی، خدای ﷻ په دې آيت سره قدر د دنياوي ټولو درجو حال بيان کړی دی چي دنيا حقير او ذليل او مبغوض ده په نېز د خدای.

وَلَوْلَآ أَن يَكُونَ ٱلنَّاسُ أُمَّةً وَٰحِدَةً

که نه وای چي خلک به ټوله وګرځي ټوله يو ملت يعني کافران ولي چي خلک محبت د دنيا عاجلي د نعمتو لري او د اخروي نعمتو اجله څخه غافله دي.

**فائده:** کلمه د ان سره د مدخول خپل مبتداء ده او خبر يې محذوف دی ای حاصل و جواب لولا قوله تعالى دی.

لَّجَعَلْنَا لِمَن يَكْفُرُ بِٱلرَّحْمَٰنِ لِبُيُوتِهِمْ سُقُفًا

موږ به ګرځولې هغه چا لره چي په رحمن خدای سره کافران وي يعني مشرکان (لبيوتهم) بدل اشتمال دی د لمن يکفر لره يا علت دی کقولک وهبت له ثوبًا لقميصه.

**پوه سه:** چي (سقفًا) بعض قاريان لکه ابن کثير او ابو جعفر په فتح د سين او په سکون د قاف يعني پر صيغه د مفرد وايي.

**سوال:** بيوت خو جمع دی نو د ډېرو خونو خو يو بام نه وي؟

**ځواب:** مراد د سقف مفرد څخه معنى جنسي ده الصالح للواحد والاثنين والجماعة، او نور قاريان دا لفظ په ضمه د قاف او د سين وايي چي جمع د سقف ده مثل رَهن و رُهن. قال ابو عبيدة ولا ثالث لهما معنى د قول مذکور دا ده چي جمع لره د فُعُل پر فَعل ماسوی د سُقُف او سَقف او رهن او رهن بل په عرب ژبه کي مثال نشته.

**فائده:** جمع د ضمير د بيوتهم په اعتبار د معنى د من لکه افراد د مستتر ضمير په يکفر کي په اعتبار د لفظ د من دی.

مِّن فِضَّةٍ وَمَعَارِجَ عَلَيْهَا يَظْهَرُونَ

ای متخذة د سپینو زرو څخه (معارج) جمع د معرج ده عطف پر سقفا دی، پر هغو ځینو به پورته وخېژي بامو ته.

**پوه سه:** چي معرج چي سلم یې هم بولي په فارسي یې نردبان او په اردو یې سیړهی بولي او په پښتو یې ځینې بولي، والمراد چي ځینې به یې هم د سپینو زرو وي ولم یذکم مع المعارج ذالک بذکرها مع المسقوف علیه اعني سقفا.

وَلِبُيُوتِهِمْ أَبْوَابًا وَسُرُرًا عَلَيْهَا يَتَّكِئُونَ ۝ وَزُخْرُفًا

او د دوی خونو لره به دروازې وي او چارپایي یا پلنګ الی غیر ذالک من الاسماء یعني د سپینو زرو به وي، بیوت جمع د بیت ده او سرر جمع د سریر ده، پر هغو پلنګانو به یې تکیه کړې وي (وزخرفا) ای زینة عطف دی پر سقف باندي یعني نور د زینت شیان به ورکړي کالثیاب الفاخرة والبساتین المثرة والمطعومات الشهیة، او بعض مفسرین وایي چي مراد له زخرف څخه سره زر دي فهو معطوف علی محل من فضة.

**پوه سه:** چي تخصیص چي یې په کفارو سره وکړی کما سمعت لانها مبغوضة عند الله فیؤتي المبغوض للمبغوض.

وَإِن كُلُّ ذَٰلِكَ لَمَّا مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا

بتأویل المذکور لانها امور متعددة نو باید تلک یې ویلي وای من سقف الفضة ومعارجها وابوابها وسررها وزخرفها.

**پوه سه:** چي عاصم او حمزه کلمه د لما مشدد وایي نو پر دې قرائت کلمه د ان نافیه ده او کلمه د لما په معنی د الا ده، فالمعنی نه دي دغه مذکوره شیان مګر د تمتع شیان په دې ژوند ناقص کي لابقاء لها ولا اعتداد له بها عند الله او باقي قراء لما په تخفیف د میم وایي، کلمه د ان مخفف د مثقله څخه دی اسم یې ضمیر شان محذوف دی وکل ذالک مبتدا، ده لما متاع الدنیا خبر دی وما زائدة.

وَالْآخِرَةُ عِندَ رَبِّكَ لِلْمُتَّقِينَ

او ورځ د قیامت مع ما فیها من النعماء التي لاعین رئت ولا اذن سمعت ولا

خطرت على قلب بشر، په نېز د رب ستا اى متحققة في علمه وقضائه (للمتقين) من الشرک والمعاصي.

**فائده:** له دې آيت څخه معلومه سوه چي عظيم هغه څوک دی چي په اخرت کي عظيم وي لا عظيم الدنيا لکه د مشرکانو چي ګمان وُ، او تنبيه پر دې ده چي زخارف د دنيا يې ټولو مؤمنانو ته ورنه کړه بلکې بعض يې و اعداء ته ورکړه لانها مبغوضة عند الله حرية ان تجعل كلها للكافرين لكن لم يفعل كذالک مخافة اجتماع الناس على الكفر ولو كانت زخارف الدنيا حسنة عند الله، نو نه به يې وای ورکړې کافرانو ته هيڅ شی، له سهل بن سعد رضي الله عنه څخه روايت دی قال رسول الله ﷺ که چېري دنيا د وزر د غوماشي قدر پر خدای درلودای ما سقى كافرًا شربة ما.

**سوال:** په دې آيتو کي خدای ج داسي وويل که چېري ېېره ددې نه وای چي خلک به ټول پر کفر سره جمع سي که زخارف د دنيا به يې ټوله کافرانو ته يې ورکړې وای كما مر تفصيله في آية ولو لا انيكون الناس ملة واحدة (يعني كافران) لجعلنا الآية.

**سوال:** نو پوښتنه داده چي زخارف د دنيا به يې مسلمانانو ته ورکړې وای تا چي انسانان ټول پر اسلام جمع سوي وای؟

**ځواب:** پر دې تقدير خو اجتماع د خلکو پر اسلام لپاره د طلب د دنيا به وای وهذا الايمان ايمان المنافقين، نو حکمت الهي تقاضا وکړه ددې چي پر مسلمانانو بعض تنګي او اذيت مسلط کړي تاچي دخول ددوی په اسلام کي محضًا لپاره د رضاء د خدای ج سي او لپاره د طلب د نعيم الآخرة وګرځي ليس الا ذالک.. بيت:

بقدر الكد تكسب المعالى .... يغوص البحر من طلب اللالى

**سوال:** څه حکمت الهي دی چي خدای ج مختار کړی دی د خپل نبي لپاره فقر او هم عليه الصلوة السلام د خپل ځان لپاره فقر سره ددې چي په حديث شريف کي راغلي دي لو شئت لدعوت ربي عزوجل فاعطاني مثل ملک کسرى وقيصر؟

والجواب عنه: چي که چېري عليه الصلوة السلام غني د خلکو وای، نو بعض کسان به په دين کي دده داخلېدای طمعًا لدنياه وماله، فاختار العدله الفقر تاچي دا معلوم سي چي هر څوک چي دده په دين کي داخلېږي لپاره د طلب د نعيم الآخرة، او بل جواب دادی چي تسلي د زړه د فقير وسي په فقر سره د سيد البشر ﷺ کما يتسلى

الغنى بمالـه، او بل جواب دادی چي فقر د سيد البشرﷺ دليل دی هوان د دنيا پر خدای ج باندي كما مر في الحديث المروي عن سهل بن سعد رضي الله عنه قريبًا فتذكر.

**درويش وايي:** چي مظهري رح په ډېرو روايـاتو سره دا حديث رانقل کړی دی عن ابي هريرة رضي الله عنه قـال قـال رسـول اللهﷺ الـدنيا سجن المؤمن وجنة الكافر، قـال المظهري رح رواه احمد ومسلم في صحيحه والترمذي.

**پوه سه:** چي د دې حديث معنى داده چي مؤمن كه څه هم په دنيا كي ډېر نعمتونه او جاه و جلال لري لكن دنيا دده لپاره نسبت و هغه نعمتونه چي خدای ج دده لپاره آراسته کړي دي په جنتو كي بندي خانه ده، او كافر كه څه هم په دنيا كي په ډېرو غمو او مصيبتو او فقر او مسكنت كي وي لكن نسبت و هغه عذابونه د دوږخ ته دنيا جنت ورته معلومېږي.

**پوښتنه:** تمتع په دنيا سره چي حرام لحق الله نه وي او نه حرام لحق العبد وي خو رواه ده، و طلب د ژوندانه معـاش خو هم روا دی بلكې فريـضه ده، كمـا روی ان النبيﷺ قـال طلب الحلال (ای الرزق الحلال بالكسب والتجارة) فريضة (ای لنفقة العيـال وغيرهم من ذوی المحـارم المحتاجين الفقر) بعد الفريضة (يعني فريضة الله من الصلوات والصيام) رواه الطبراني والبيهقي، عن ابن مسعود رض نو څه ده حرمت د حب الدنيا؟

**ځواب:** مراد د حرمت د حب الدنيا داده چي دنيا يې پر آخرت مختـاره کړې وي او غرق وي په ګټلو كي د دنيـا او په لذاتو كي د دنيـا بحيث يغفل عن اكتساب الثواب واجتناب العذاب والحرص على جمع المال من ای وجه كان وطول الامل او يا عقيده يې دا وي چي اغنياء تر فقراء بهتر دي او تعظيم د اغنياؤ بالا كوي تر تعظيم د فقراؤ صرف په سبب د غنٰى نه له دې سببه چي له ضرر څخه يې بېرېږي يا مكافات د يو احسان چي غني ورسره کړی وي وركوي الى غير ذالک من غرض مشروع، او يا غرض د سړي په ګټلو كي د دنيا علوًا او فسادًا وي. واما طلب المعاش وكسب چي لـه ذكره څخه د خدای ج نه وي غافل او د لمونځو او زكوٰة وركولو څخه نه وي غافل بلكې غرض يې انفاق پر ځان وي لپاره د دې چي پر عبادت د خدای ج قـوت اويـا د نفقې د زوجې او د عيـال اداءً لحقوقهم فليس

بمکروه وايضًا للانفاق في سبيل الله چي د غزاتو سره کومک وکړي فهو جائز بل واجب لکه د نفقې د عيال لپاره يا د نفقې د ګوډ او شل د ذوی الارحام لپاره الی غير ذالک من الحقوق الواجبة.

وَمَنْ يَّعْشُ عَنْ ذِكْرِ الرَّحْمٰنِ

څوک چي اعراض له ذکر څخه د رحمن وکړي چي مراد څني قرآن عظيم الشان دی او ځان لکه ړوند وګرځوي په سبب د کثرت اشتغال په لذاتو کي د دنيا او ډوب وي په شهواتو کي، خليل بن احمد چي استاذ دی د سيبويه په نحو کي وايي اصل العشو في اللغة النظر الی الشيئ بالنظر الخفيف.

**فائده**: عشو ګاهي متعدي په الی سره وي نحو عشوت الی فلان عشوًا ای قصدته مهتديا به، ګاهي متعدي په عن سره وي کما يقال عشوت عن فلان اذا اعرضت عنه، نو په دې کي چونکه متعدي په عن سره ځکه يې تول مفسرين ترجمه په اعراض سره کوي.

نُقَيِّضْ لَهٗ شَيْطٰنًا فَهُوَ لَهٗ قَرِيْنٌ ۝

مقرر به کړو او مسلط به کړو پر ده شيطان (فهو له قرين) يعني نه به څني جلا کيږي او ګناه به ده ته ښائسته ښکاره کوي او ده ته به وايي چي ته پر عين هدايت يې.

**پوښتنه**: د هر انسان سره خو د مرګ تر وخته پوري شيطان سته ولو کان مؤمنًا حقًا و وليًا قويًا فما معنی نقيض له شيطانًا؟

**ځواب**: مراد له دې شيطان څخه هغه ملګری شيطان نه دی بلکي دا بل شيطان دی کما يدل عليه الحديث قال رسول الله ﷺ اذا اراد الله بعبد شرًا قيض له شيطانًا قبل موته بسنة (تر مرګ د مخه يو کال) فلا يری حسنًا الا قبحه نو دا شيطان هر ښه کار په نظر کي د سړي بد ايسوي حتی لايعمل به ولا يری قبيحًا الا حسنة فلا يعمل به كذا في روح البيان، يو عارف بالله لنفسه وايي:

درلغ ودرد که بانفس بد قرین شده ایم — وزین معامله بادیو همنشین شده ایم
بپارگاه فلک بوده ایم رشک ملک — زجور نفس جفا پیشه اینچنین شده ایم

وَإِنَّهُمْ لَيَصُدُّونَهُمْ عَنِ السَّبِيلِ وَيَحْسَبُونَ أَنَّهُم مُّهْتَدُونَ ﴿۳۷﴾

نو دغه شیطان (که څه هم شیطان د مخه په صیغه د مفرد راغلی دی لکن جمعیت یې د ضمیر دلته نظر و معنی ته د من موصوله دی وهم العاشون) نو دوی منع کوي له لارې څخه د هدایت، او ګمان کوي عاشون چې دوی پر عین هدایت دي.

**یوه سه:** چې دا جمله حال ده له ضمیر څخه د لیصدونهم.

حَتَّىٰ إِذَا جَاءَنَا

تر هغه وخته پورې هذه غایة لحسابهم اهل عراق غیر له ابی بکر رح څخه جائنا مفرد وایي فالمعنی حتی اذا جاء العاشي او نور قاریان یې پر صیغه د تثنیه وایي یعني اذا جاء انا فالمعنی اذا جاء العاشي وشیطانه چې په یوه ځنځیر سره تړلي وي.

قَالَ يَا لَيْتَ بَيْنِي وَبَيْنَكَ بُعْدَ الْمَشْرِقَيْنِ فَبِئْسَ الْقَرِينُ ﴿۳۸﴾

ووایي یعني العاشي لشیطانه، یا هذه الکلمة للتنبیه او یا یې منادی محذوفه ده تقدیره یا قرین، کاشکي زما او ستا تر منځ لرې والی وایي د مشرق او مغرب (نو په مشرقینو کې تغلیب د مشرق پر مغرب وکړی نو یې مشرقین ووایه) یا مراد له مشرق څخه مراد ژمی او دوبی دی (فبئس القرار) ته بد ملګری یې زما، ابو سعید الخدري رض وایي چې کافر چې په ورځ د قیامت راژوندی سي د خپل قرین شیطان سره وتړل سي نو نه سره جلا کېږي تر څو چې دوږخ ته لوېږي.

وَلَن يَنفَعَكُمُ الْيَوْمَ إِذ ظَّلَمْتُمْ أَنَّكُمْ فِي الْعَذَابِ مُشْتَرِكُونَ ﴿۳۹﴾

او نفعه نه وکړه تنه ورځ په اخرت کې یعني عذر ویل یا طلب د رد و دنیا ته، چې معلوم سو تاسي ته چې تاسي شرک په دنیا کې کړی ؤ او ظلم مو پر ځان کړی ؤ کلمه د اذ بدل ده من الیوم (انکم في العذاب مشترکون) دا دلیل دی د عدم النفع یعني حق ستاسي ایها المشرکون ان تشترکوا انتم وقرنانکم من الشیاطین في العذاب، ولې چې تاسي سره شریکان واست په سبب کې د دغه عذاب په دنیا کې وهو الکفر.

أَفَأَنتَ تُسْمِعُ الصُّمَّ أَوْ تَهْدِي الْعُمْيَ وَمَن كَانَ فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ﴿۴۰﴾

یا محمد آیا ته اورېدلای سې په کڼیانو یعني خپل دعوت د توحید یا ته لار ښودلای سې و ړندیانو ته.

**پوهه:** چي مراد د ګونګوالي څخه یا د ړوند والي څخه کوڼوالی یا ړوندوالی د زړه دی یعني قلوبهم ای المشرکین افت رسیده دي لار د هدایت نسته ورته (ومن کان آه) عطف دی پر اعمٰی باعتبار تغایر الوصفین والاستفهام للانکار والتعجب من حال محمد ﷺ حیث طمع هؤلاء الایمان، والفاء للعطف علی محذوف تقدیره وانت ترید ان تهدیهم هذا هو المحذوف المقدر افانت تسمع العمی یعني لست تقدر علی هدایة هؤلاء الکفار بعد تمرنهم علی الکفر واستغراقهم في الضلال بحیث صار ظلمة الکفر علیهم غشاوة علی اعینهم ووقراً في اذانهم کانهم لایسمعون کلامک ولایبصرون طریقًا لتهدیهم الیه.

فَإِمَّا نَذْهَبَنَّ بِكَ فَإِنَّا مِنْهُم مُّنتَقِمُونَ ﴿٤١﴾

اصله ان ما فان شرطیه اتصلت بما الزائدة المؤکدة بمنزلة لام القسم، یا یې نون د تاکید ورته راجلب کړی یعني که موږ وفات کړو د مخه تر لیدو د عذاب ددوی چي ستا زړه په خنک سي او د مؤمنانو زړونه په ساړه سي.
لاتحزن ولي موږ ددوی څخه انتقام اخستلای سو په دنیا او اخرت کي.

أَوْ نُرِيَنَّكَ الَّذِي وَعَدْنَاهُمْ فَإِنَّا عَلَيْهِم مُّقْتَدِرُونَ ﴿٤٢﴾

او که موږ وویښو په تا یا محمد (ﷺ) یعني په دنیا کي، هغه شي چي موږ یې وعده کړې ددوی سره ای العذاب نو موږ پر دوی قادریو یعني پر تعذیب ددوی یعني زموږ څخه نه پاتېږي تعذیب ددوی متی شئنا، مراد څني کفار د مکې دي چي خدای[۳] انتقام څني واخستی په ورځ د بدر چي او وویا کسه مخ کښه کسان په شمول د فرعون الامة ابوجهل ستاسي په لاسو ووژل سول او اوویا کسه یې په حصارت ستاسي په لاس در کړه، وهذا قول اکثر المفسرین.

**فائده:** وفي هذه الآیة تسلیة للنبي ﷺ بان الله ینتقم من اعدائه ومنکریه یا په حال کي د حیات دده په واسطه دده کما في یوم بدر کما مر او بغیر واسطته[۴] کما کان في زمن ابی بکر ﷺ چي وروسته تر وفات د علیه الصلوة السلام قبائل د عربو غیر الحرمین الشریفین له زکوة څخه یې انکار وکړی ابوبکر ﷺ فوج کشي پر وکړه تولو ته یې بیرته د زکوة د فرضیت قائل سول وقصته طویلة مذکورة في کتب الاحادیث الشریفة.

**درويش وايي:** چي مظهري د الحسن او قتاده څخه يو روايت راوړی دی چي د سباق او سياق له دواړو څخه مخالف دی والله اعلم.

فَاسْتَمْسِكْ بِالَّذِيٓ اُوْحِيَ اِلَيْكَ ۚ اِنَّكَ عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿٤٣﴾

ته يا محمد (ﷺ) محکمه ونسه هغه شی چي تاته يې وحي کړه سوي دي (که متلو وي لکه قرآن کريم او که وحي غير متلو وحي مما جاء في الاحاديث الشريفة لانه قال الله تعالى ماينطق من الهوى ان هو الا وحي يوحى او عمل په وکړه، فاء سببية ده دا آيت متصل دی په هغه آيت پوري "انا جعلناه قرآنا عربيًا" او په منځ کي جمل معترضې دي فافهم) ته پر داسي لاريې چي سمه ده هيڅ کږوالی نسته پکښي، دا جمله دليل د استمساک دی.

وَاِنَّهٗ لَذِكْرٌ لَّكَ وَلِقَوْمِكَ ۚ وَسَوْفَ تُسْئَلُوْنَ ﴿٤٤﴾

او دغه يعني القرآن الکريم (چي ستاسي په ژبه دی ای العربي) ذکر دی يعني شرف دی ستا لپاره او ستا د قوم لپاره يعني قريش لپاره هم فخر او شرف دی چي سيد د ټولو کتب الهية ستاسي په لغت دی، "وسوف تعلمون" او ژر دی چي له تاسي څخه به سوال وکړل سي، يعني يوم القيامة عن شکر نزول القرآن فيکم وعما يلزمکم من بحق القرآن بالعمل بموجبه.

**فائده:** دا جمله حال ده له فاعل څخه د استمسک، البغوي رحمه الله وايي چي الضحاک له ابن عباس رضي الله عنه څخه داسي روايت کړی دی چي د رسول الله ﷺ څخه چا پوښتنه وکړه لمن هذه الامر بعدک ای بعد موتک؟ (پوه سه: چي مراد له امر څخه سياست الناس دی) ده جواب نه ورکاوه حتى نزلت هذه الآية، نو وروسته ددې آيت چي به چا پوښتنه څني وکړه قال لقريش، وکذا روی عن علي رضي الله عنه او له عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل لايزال هذه الامر في قريش ما بقي اثنان، وعن معاوية رضي الله عنه قال سمعت رسول الله ﷺ يقول مادام هذا الامر في قريش ددوی سر به څوک په دې امر د خلافت نه کوي مگر خدای ج به هغه پر مخ باندي اورته وغورځوي ما اقاموا الدين چي دوی يعني قريش پر دين باندي ثابت قدم وي.

**درويش وايي:** چي په دې قيد سره دفع سوه کثير من السوالات بان الامر ای الخلافة قد نقل الى غير قريش کرات ومرات بعد رسول الله ﷺ.

وَسْئَلْ مَنْ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رُّسُلِنَآ اَجَعَلْنَا مِنْ دُوْنِ الرَّحْمٰنِ اٰلِهَةً يُّعْبَدُوْنَ ﴿۴۵﴾

تـه يا محمد (ﷺ) سوال وكړه لـه هغـه چا څخه چي موږ را استولي وه ترتا دمخه رسولان زموږ، آيا موږ ګرځولي وه (يعني دوی لره) بيله خدايه خدايان چي عبادت بـه يې كړل كېدی، البغـوي رح وايي چي د علماؤ اختلاف دی پـه دسو مسؤلينو كي عطاء رح له ابن عباس رض څخه روايت كړی دی چي رسول اللهﷺ چي په شپه د معراج اسمانو ته تلی نو خدای پاک و ده ته ژوندی آدم عليه السلام او اولاد د هغه چي رسولان وه نو جبرئيل عليه السلام آذان وكړی بيا يې اقامت وكړی وقال يا محمد تقدم وصل بهم (دا واقعه په مسجد كي د بيت المقدس اجراء سوه)

دران مسجد امام انبياء شد　　صف پيشينان راپيشوا شد

ورسته جبرئيل عليه السلام واسئل يا محمد من ارسلنا قبلك من رسلنا الآية فقال رسول اللهﷺ لاتسئل واكتفيت زماددوی ددې پوښتني څخه كفايت كړه سوی دی وهذا قول الزهري وسعيد بن جبير وابن زبير دوی وايي جمع له الرسل ليلة اسری به وامر ان يسئلهم فلم يسئل ولم يشرك، وقال اكثر المفسرين معنى الآية واسئل امم من ارسلنا من قبلك وعلماء دينهم يعني مؤمني اهل الكتاب وهذا قول ابن عباس رض پـه ټولـو روايتـو كي چي دده څخـه چا كړي دي وقـول مجاهـد وقتـادة والضحاك والسدي والحسن والمقاتل وبدل عليه قرائة د ابن مسعود رض وابی بن كعب رض وسئل الذين ارسلنا اليهم قبلك من رسلنا پر هر تقدير مقصد د امر بالسوال تبكيت دی د مشركی د مكې او د قريش او تعليم دی دوی تـه انه لم يأت رسول ولا كتاب بعبادة غير الله عزوجل نو ستاسي د عبادت د بتانو يا د ملكو يا د ستور دين مستحدث دی پـه ټولـه دور كي د بني آدم فقط وفقط پر تاسي باندي حصر دی د لوی جم غفير څخه مخالفت كول ولاريب انه خطاء فاحش.

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مُوْسٰى بِاٰيٰتِنَآ اِلٰى فِرْعَوْنَ وَمَلَا۟ئِهٖ فَقَالَ اِنِّيْ رَسُوْلُ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۴۶﴾

لام موطئه د قسم دی، والمعنى والله په تحقيق موږ استولی ؤ موسٰی عليه السلام سره د آيتو او معجزاتو چي پر سر كي يې عصا او يد بيضاء او په مجموع كي نهه (۹)

وې و فرعون ته او اشرافو ته دده د قوم، نو موسٰی ؑ وویل دوی ته چې رسول رب العالمین یم وتاسي ته.

**فائده:** ددې قصې په راوړلو کي تسلي ده و علیه الصلوة السلام ته او یقین دی د رد د قول ددوی بیانول دي چې لو لا انزل الکتاب علی رجل من القریتین عظیم والاستشهاد بدعوت موسٰی فرعون وملائه ته یعني سره ددې چې فرعون خو د قریشو او د طائف د قریبو تر مشرانو ډېر عظیم ؤ چې مدعي د الوهیت ؤ او ټولو یې الوهیت منلی ؤ او د قریشو د عظیم او د طائف عظیم د فرعون په صف الفعال کي نه وه.

فَلَمَّا جَآءَهُمْ بِاٰيٰتِنَآ اِذَا هُمْ مِّنْهَا يَضْحَكُوْنَ ﴿۴۷﴾

نو هر کله چې راتګ وکړی دوی ته موسٰی ؑ په معجزاتو سره چې دال قرصدق دده وې په دعوی کي د رسالت کالعصاء والید البیضاء، اذا هم منها یضحکون دوی او ددوی اهل پر ده خندل استهزاءً فکر او غور یې په معجزاتو کي نه کاوه.

وَمَا نُرِيْهِمْ مِّنْ اٰيَةٍ

موږ نه لیدل په دوی کي یو آیت یعني علامه د عذاب الهي لیؤمنوا (۱) لکه څو کاله کاختي (۲) طوفان یعني ډېر باران چې اوبه یې په کورو ورننوتې چې سړی به ناست ؤ اوبه به یې تر غاړې پورې وې.

**فائده:** هر ډېر باران چې ډېر مضر عام وي طوفان یې بولي (۳) والجراد: ملخ یې خدای ؑ پر کښتو او مېوه داره درختو داسي په کثرت سره مسلط کړه چې کښت او مېوې خو څه کوې د درختو پوستکي یې هم وخوړل (۴) والقمل: شپوږي (هغه شپوږي چې پر دانو د غنمو یا د جوارو یا اوربشو مسلط سي مابین د دغو دانو ټول وخوري خالي پوستکی پرېږدي (۵) والضفادع: چنګوښي چې سړی به بیده سو په خوله به یې چنګوښه ننوتل یا به یې صافي اوبه په لوښي کي واچولې او سر به یې هم پټ ؤ، نو څرنګه چې به یې اوبه د څښلو لپاره خولې ته پورته کړې اول به یې چنګوښه په خوله ورننوتل، داغه رنګه د ښوروا د کاسي څخه چې به یې ګوله راپورته کړه تر ګولې دمخه به یې چنګوښه په خوله ورننوتل (۶) والدم: او وینې چې د څښلو اوبه به یې پر سر پورته کړې سرې وینې به وې که څه هم اوبه یې د صاف څاه

 څخه راکښلي وای او د لوښي سر به يې په تو کرپټ کړی وُ لکن چي پر سر به يې پورته کړې سرې ويني به وې (۷) والطمس: او په مالو او کښتو او میوو کي به يې بې برکتي وه (۸) اولين آيت خو لکړه وه چي مار کېدل به (۹) دويم آيت يد بيضاءوُ.

إِلَّا هِيَ أَكْبَرُ مِنْ أُخْتِهَا وَأَخَذْنَاهُمْ بِالْعَذَابِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ۝

مګر دغه آيت به لوی وُ په ضرر کي تر د مخه آيت، او مونږ د دوی ونيول يعني فرعون او دده قوم په عذاب سره چي آنفًا يې ذکر تېر سو (لعل) په معنی د لام کی دی ای لکی يرجعوا عن الکفر والشرک.

**سوال:** په دې مذکوره آيتو کي خو هره يوه تر مخني آيت بالا نه ده؟

**ځواب:** مقصود له دې آيت څخه دادی چي هر يو په دغه مذکوره آيتو کي يالغ و نهايت اعجاز ته دی چي د ناظر به دا ګمان سو چي هره يو ددوی اکبر دی تر نورو آياتو، دا معنی د اختها نه ده چي تر مخني آيت لويه ده، والمراد وصف الکل بالکبر في نفسها کما قول القائل رئيت رجالاً کل واحد منهم افضل من غيره، ولي دا معنی تفصيلي ده پر هر يوه پر تولو خو امکان نه لري کما لايخفى، بلکې مراد له دې قول څخه دادی چي هر يو افضل في نفسه وُ، يا په دې قول کي د شاعر:

من تلق منهم فقد لاقيت سيدهم .... مثل النجوم يسری بها الساري

وَقَالُوا يَا أَيُّهَ السَّاحِرُ

وويل فرعون او قوم دده ای ساحره.

**فائده:** دوی خپل ايمان معلق کړی په کشف الضر سره ددوی څخه او موسیٰؑ ته يې طمع ورکړه په ايمان کي خپل او اهتداء په هدايت سره دده علی دعائه بکشف الضر عنهم ومع ذالک داسي يې نه ورته وويل يا ايها النبي بلکې د ساحر په نامه يې ياد کړی، له دې سببه چي دوی د مخه په دغه نامه يادا وه، دا له ډېر شدت څخه ددوی پر کفر باندي او له سببه څخه د ډېري خرکری او حماقت، وقال الزجاجؒ دعوه بذالک الاسم لما تقدم له (ای لموسیٰ) من انهم يسمونه بذالک الاسم فکانهم جروا على المعتاد عندهم من التسمية، او بعض علماء وايي چي دا تسميه په ساحر سره اهانة نه وه لمنافات الاهانة لمقام الضراعة له في دعاء کشف

الضر عنهم بدعائه كما لايخفىٰ بلكې ددوى په عقيده دا تسميه تعظيمًا لموسىٰ "عندهم ولې چې سحر ددوى علم عظيم ؤ او لوى صفت د مدح ؤ گويا دوى داسې ورته وويل يا ايها العالم الكامل الحاذق في علم السحر، لكن دا توجيه وجيه نه ده ولې دوى اول وار دده ته ساحر وويل تحقيرًا له حين انكروا نبوته حيث قالوا ان هذا (اى العصا واليد البيضاء) لسحر مبين، وقال موسىٰ "ردًا عليهم اتقولون للحق لما جائكم اسحر هذا الآية، وقيل يا ايها الساحر الذي غلبنا بسحره عند المقابلة بسحرة جمع فرعون لهم لپاره د مقابلې د موسىٰ "سره، نو موسىٰ "پر هغو غالب سو او هغو ايمان راوړى.

ادْعُ لَنَا رَبَّكَ بِمَا عَهِدَ عِنْدَكَ إِنَّنَا لَمُهْتَدُونَ ۝

خواست وکړه زموږ د كشف العذاب (بما عهد عندك) متعلق دى په ادع سره يعني تا وېلې دي موږ ته چې زما خداى "زما سره وعده کړې چې كشف الضر كوم چې ته يې خواست وكړې، نو موږ به پر هدايت سو يعني ايمان به راوړو كه دا كشف الضر له موږه خداى ستا په دعاء سره وكړى او ستا په نبوت سره به ايمان راوړو، نو موسىٰ ؑ د كشف الضر له دوى څخه خواست خداى ﷻ ته وكړى طمعًا في ايمانهم كما وعدوه، نو هغه خداى "له دوى څخه دفع كړى.

فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُمُ الْعَذَابَ إِذَا هُمْ يَنْكُثُونَ ۝

نو څه وخت چې موږ لېرې كړى عذاب له دوى څخه يعني بدعاء موسىٰ "، كلمه د فاء د مفاجات ده يعني ناببره به دوى وعده د ايمان راوړلو ماته كړه و خپل كفر ته به يې دوام وركړى وروسته تر كشف العذاب.

وَنَادَىٰ فِرْعَوْنُ فِي قَوْمِهِ

او نعره وكړه فرعون په خپل قوم كې، يعني د دوى په يو اجتماع كې بعد كشف العذاب بدعاء موسىٰ ؑ له يېرې ددې چې بعض كسان ايمان رانه وړي او د موسىٰ "رسالت ونه مني، مضمون د نداء دا ؤ.

قَالَ يَا قَوْمِ أَلَيْسَ لِي مُلْكُ مِصْرَ وَهَٰذِهِ الْأَنْهَارُ تَجْرِي مِنْ تَحْتِي ۖ أَفَلَا تُبْصِرُونَ ۝

وويل اى قومه زما (كسره د ميم عوض د مضاف ده) آيا نسته ما لره (الاستفهام للانكار ونفي النفي اثبات يعني سته) سلطنت د مصر او دغه ويالې

اى انهار النيل چي لوى ويالې څلور وې نهر الملک، نهر طولون، نهر دمياط او نهر طينس، قوله وهذه الانهار عطف على ملک مصر (تجري من تحتي) چي بهېږي تر ما لاندي يعني تحت قصوري او تحت امري (دده خبيث مراد دا ؤ چي دا تو له زما په امر بهېږي ولي ده خو ځان خداى معرفي کړى ؤ) او بين يدي في البساتين، دا جمله حال ده (افلا تبصرون) تاسي په سترګو نه وينئ.

اَمْ اَنَا خَيْرٌ مِّنْ هٰذَا الَّذِىْ هُوَ مَهِيْنٌ ۙ وَّلَا يَكَادُ يُبِيْنُ ۝

کلمه د ام په معنى د بل آه ده بل لپاره د اضراب او انتقال دى، ماقبل او همزه لپاره د تقرير دى يعني زه سره دديې فراخه مملکت د مصر ښه او بهتر نه يم (من هذا) يعني موسىٰؑ چي دى حقير او ذليل دى قابل د رياست د مصر نه دى (يعني مراد د خبيث دا ؤ چي د موسىٰ غرض په دعوى کي د رسالت رياست کول دي پر موږ باندي) "ولايکاد يبين" قريب نه ده چي دى دي خلاصي فصيح خبري وکړي يعني په ژبه کي بندېږي چي لکنت يې بولي، دا لکنت له دې سببه څخه ؤ چي تو ده ډېره ده په کو چنيوالي خولې ته اچولې وه، چي ټوله قصه د مخه په تفسير ايوبي کي تېره سوې ده.

**درويش وايي:** چي موسىٰ ﷺ چي نبي سو دا خواست يې خداى ته وکړى واحلل عقدة من لساني يفقهوا قولي، نو دده د دعاء په اثر خو يې لکنت د ژبي ډېر کم سو لکن څه اثر يې پاته ؤ، ولله في کل امر يفعله حکم لا نعلمها.

فَلَوْلَآ اُلْقِىَ عَلَيْهِ اَسْوِرَةٌ مِّنْ ذَهَبٍ

نو ولي نه واچول سوه پر موسىٰؑ، يعني له جانبه څخه د خداىؑ دده.

**بوه سه:** چي اسورة جمع د سوار ده چي په پښتو يې بنګړي بولي او عربي نوم يې سوار دى او فارسي نوم يې دست برنجن دى او اردو نوم يې کنګهن دى، مجاهدؒ وايي چي د پخوا خلګو دا رواج ؤ چي سړي ته بادشاه د وخت سرداري او رياست نافذ الحکم ورکاوه نو په لاس يې بنګړى د سرو زرو ور په لاس کړى او په غاړه کي به يې طوق د سرو زرو ور واچاوه چي دا به دده د سردارۍ دليل ؤ، نو غرض د فرعون دا ؤ چي موسىٰؑ که رسول نافذ الحکم واى پر موږ د خداى له خوا نو خو رب د موسىٰؑ به ده ته بنګړيان د سرو زرو ور کړي واى چي بعض به يې په لاس واى او بعض به يې په د غاړي طوق واى نو موږ به دده اطاعت کولاى، واذ

ليس على موسى اسورة الذهب فليس رسولاً وسيداً يجب علينا اطاعته.

**درويش وايي:** چي خبيث د قوم د غولولو لپاره سيادت او رسالت د خداى د خوا يې قياس كړى پر سيادت د ملوك الناس د خوا، لكن بينهما بون بعيد لان السيادة والرسالة د خداى له خوا مبني دى پر قلب صافي او استعداد عالي د رسول دى چي تحمل د ازار د خلكو كولاى سي او د هر مشكل سره چي مخامخ سي د تبليغ لار نه پريږدي الى غير ذالك من الصفات العالية بخلاف السيادة من ملوك الدنيا، چنانچه يزيد پليد چي د پلار معاويه رضي الله عنه خلافت قبضه كړى او په عين وخت كي عبدالله بن الزبير رضي الله عنه چي د عليه الصلوة والسلام د خوښني اسماء بنت ابو بكر رضي الله عنها چي د سيدتنا عائشه رضي الله عنها خور وه مكه والو د هغه سره بيعت د خلافت كړى ؤ، نو يزيد پليد چي په خبر سو په خلافت د عبدالله بن زبير رض نو په سيادة د الحجاج بن يوسف چي اظلم ؤ كما يشهد به التواريخ الاسلامية د شام څخه يې دروند فوج ورسره كړى او د مكې پر خوا يې راهي كړى چي عبدالله بن الزبير رضي الله عنه قتل كړي او د مكي والو څخه د يزيد پليد لپاره بيعت واخلي، مكې وال چي خبر سوه دد ې درانه فوج سره يې د جنګ توان او طاقت يې نه درلودى يوه خوا او بلي خوا ته وتښتېدل، عبدالله بن الزبير رض په حرم محترم كي پناه واخسته، حجاج بن يوسف پر جبل ابى قبيس باندي منجنيق ورته بسته كړى چي په پخوانى زمانه كي د توپ كار ور څخه اخسته كېدى، خونه د كعبې مباركي يې هدف وګرځول چي كعبه شريفه يې له مځكي سره مځكه وګرځول بالآخرة حرم ته داخل سو او عبدالله بن زبير رضي الله عنهما يې ونيوى او د زمزم پر غاړه يې قتل كړى دست بسته الى اخير القصة، مطلب د درويش په نقل كي د قصې دادى چي سيادة د ملوك الدنيا چي په دې ځاى كي يزيد پليد ؤ و داسي چا ته وركړى لكه حجاج بن يوسف چي اظلم الناس ؤ او د حرم محترم او د كعبې مباركي دومره هتك د حرمت يې وكړى، وروسته حجاج بن يوسف كعبه بيرته تعمير كړه دا چي ولاړه د كعبې بناء ده دا د حجاج بن يوسف بناء ده، دا ؤ فرق د سيادة د خداى ج د خوا چي رسالت دى او د ملوك الدنيا د خوا فافهم وكن على ذكر منك، اوس بيرته د فرعون لعين پر لور.

أَوْ جَاءَ مَعَهُ الْمَلَائِكَةُ مُقْتَرِنِينَ ۝

يا به راغلي واى د موسى ؑ سره ملكي پر له پسې چي شاهدي په صدق د موسى

يې ورکولای او د موسیٰ سره به يې کومک کولای.

فَاسْتَخَفَّ قَوْمَهُ فَأَطَاعُوهُ ۚ إِنَّهُمْ كَانُوا قَوْمًا فَاسِقِينَ ﴿٥٤﴾

فرعون سپک استعمال کړه، عطف دی على نادىٰ يعني فرعون خپل قوم قبط جهال وبلل چي دا دده درو داغ مني چنانچه (فاطاعوه) فيما امرهم بنقض العبد مع موسىٰ عليه السلام يعني دوی به هر وار د دفع الضر په پاره کي موسىٰ عليه السلام ته د ايمان راوړلو وعده ورکول کمامر (انهم کانوا فاسقين) نو دوی فاسقانو د فرعون چي فاسق اعظم وُ په خوله کول.

فَلَمَّا آسَفُونَا انْتَقَمْنَا مِنْهُمْ فَأَغْرَقْنَاهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٥٥﴾

چي موږ ته يې غضب راوستی په سبب د افراط في العناد والکفر والعصيان، موږ خپل انتقام يعني کسات څني واخستی په نزول سره د عذاب في الدنيا وهو معطوف على اطاعون، نو غرق مو کړه دوی په رود نيل کي من اولهم وآخرهم.

**پوه سه:** چي اسف شدت غضب ته وايي في محاورة العرب.

**فروش وايي:** چي دا قصه په ډېر طول سره د مخه تېره سوې ده په تفسير ايوبي کي.

**تنبيه:** فرعون او دده قوم قبط چي څو واره وعده د ايمان راوړلو د موسیٰ عليه السلام سره ماته کړه، نو د رب جل شانه چي د غضب پيمانه يې لبرېزه سوه نتيجه د غرق د ټوله قوم يې رود نيل ور په برخه کړه نعوذ بالله من غضب الحکيم الجبار.

**حکايت في نتائج الوفاء بالعهد:** راويان د تاريخ وايي چي نعمان بن المنذر من ملوک العرب دوې ورځي په کال کي د ځان لپاره ګرځولي وې اوله ورځ چي به راووتی دا يې د يوم النعمة په نامه نامزده کړې وه نو په اوله ورځ چي به هر څوک په مخه ورغلی سل (۱۰۰) اوښان يې ورکول او نور نعمت يې هم ورکاوه، او دويمه ورځ يې د يوم بوس په نامه مشهوره کړې وه په دې ورځ چي به دی راووتی هر سړی چي به اول په مخه ورغلی هغه يې قتل کاوه، نو په ورځ د بوس چي دی راوتلی وُ اول چي په مخه ورغلی يو سړی په نامه د ظائي، نو د هغه يقين سو چي وژني مي، نو دا خبره يې ملک المنذر ته وکړه حي الله الملک ژوندی دي لري خدای ملک، وروسته يې ورته وويل چي ضرورت او احتياج زه باعث کړم پر راوتلو په دې ورځ کي لکن لايتفاوت القتل الآمر في قتلی في اول النهار واخيره نو که د ملک خوښه وي چي ماته فرصت

او اجازه راکړي چي زه خپل اهل او عيال ته د نني ورځي نفقه ورسوم او رخصت او خداى پاماني. به ځني واخلم بيرته به راسم ملک به مي قتل کړي، د ملک المنذر زړه پر وسو ملک نعمان بن المنذر ورته وويل چي ضامن به راکوې که ته رانه غلې زه هغه ضامن قتل کوم، هغه سړي ورته وويل چي شريک ابن علي زما ضامن دى هغه هم، هغه هم ضمانت قبول کړى فذهب الطافي ثم رجع قريبًا من المساء (يعني تر ماښام دمخه راغلى) فلما راه النعمان سريې کښته واچاوه وروسته يې سر راپورته کړى او وه يې ويل ما رئيت مدة الدهر اعجب منكما اما انت ايها الطافي فما تركت في الوفاء لاحد مقامًا يفتخر به واما انت يا شريک بن علي فما تركت لكريم سماحة (جوان مردي) چي د طافي د خلاصون لپاره دي جوانمردي په خپل قتل سره وکړه فلا اكون اخس الثلاثة، آګاه او سئ چي ما يوم بؤس تر ابده له خلګو ځخه پورته کړه كرامة لكما، بيا يې لوى احسان د طافي سره وکړى او دا يې ورته وويل چي ته څه شي باعث کړې چي د مرګ ځاى ته دي وفاء بالعهد وکړه؟ طافي ورته وويل چي زه خپل دين باعث کړم اذ من لا وفاء له فلا دين له، انتهى الكلام.

فَجَعَلْنٰهُمْ سَلَفًا وَّمَثَلًا لِّلْاٰخِرِيْنَ ﴿٥٦﴾

نو وګرځول موږ دوى (يعني فرعون و قومه متقدمين في التعذيب تا چي پند واخلي له دوى څخه وروستني قومونه، نو سلف جمع د سالف ده لکه خدم جمع د خادم ده يا مصدر دى حمل يې مبالغة دى) ومثلًا للآخرين: اى قصة عجيبة لكه متلونه لکه يو قوم چي خداى پاک هلاک کړي خلک وايي فلانى قوم لکه فرعونيان خداى هلاک کړه، روايت کړى دى په صحيح سند سره بخاري او طبراني هم د ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت کړى دى چي رسول الله ﷺ وويل و قريشو ته ليس احد يعبد من دون الله فيه خير (نسته هيڅ څوک چي عبادت يې کېږي بيله خدايه چي په هغه معبود کي دي خير وي لکه معبودان د قريشو چي بتان وه جمادات ولا ينفع ولا يضر) قريشو سوال پر وکړى چي تا دا نه دي ويلي چي عيسى عبد صالح او نبي ؤ او سره دد ې چي د عيسى خو هم عبادت کړه کېدى، فانزل الله تعالى:.

وَلَمَّا ضُرِبَ ابْنُ مَرْيَمَ مَثَلًا

څه وخت چي وګرځول سو عيسىٰ بن مريم مثل يعني د قريشو له خوا څخه، او د غه

رنګه له ابن عباس رض نه روایت دی قال جاء عبد الله بن الزبعری الی رسول الله ﷺ فقال یا محمد انک تزعم (زعم په معنی د قول دی) ای تقول انکم وما تعبدون من دون الله حصب جهنم انتم لها واردون؟ قال ﷺ نعم، نو الزبعری ورته وویل قد عبدت الشمس والقمر والملائکة وعزیر وعیسیٰ؏ فکل هؤلاء في النار؟ (دا ټوله به په دوزخ کي وي سره زموږ د خدایانو) فنزلت ان الذین سبقت لهم منا الحسنیٰ اؤلٰئک عنها مبعدون وایضًا نزلت هذه الآیة ولما ضرب ابن مریم مثلاً الی قوله خصمون.

إِذَا قَوْمُكَ مِنْهُ يَصِدُّونَ ﴿٥٧﴾

ناګاه ستا قوم له هغه څخه اعراف کوي، وقال الضحاک رح تعجبون وقال القرطبي یفجرون زړونه يې تنګ سي، وقال قتاده دا آیت چي نازل سو قریشو به ویل ما یرید محمد منا الا ان نعبده و نتخذه الهًا کما عبدت النصاری عیسیٰ.

وَقَالُوٓا ءَأَٰلِهَتُنَا خَيْرٌ أَمْ هُوَ

آیا زموږ خدایان خیر دي یا محمد (ﷺ) ددوی غرض دا دی په دې استفهام کي چي موږ د محمد اطاعت وکړو او خپل معبودان پرېږدو، او ابن زید او سدي وايي چي ضمیر د هو راجع دی و عیسیٰ؏ ته نو غرض ددوی دا دی چي محمد خو وايي ان من عبد من دون الله في النار فنرضی انیکون الهتنا مع عیسی وعزیر والملائکة في النار.

مَا ضَرَبُوهُ لَكَ إِلَّا جَدَلًا

دوی تا ته نه دی ویلی دا مثل مګر نه د جدل او خصومت بالباطل لپاره لا للتمیز بین الحق والباطل، ولي چي دوی خو په دې نه پوهېدل چي محمد ﷺ لا یرید عبادة نفسه او دوی په دې پوهېدل چي کلمه د ما خو د غیر ذوی العقول لپاره ده، نو انکم وما تعبدون من دون الله حصب جهنم مراد څني ددوی بتان دي لا عیسی وعزیر والملائکة لانهم من ذوی العقول وکلمة ما کما مر آنفًا لغیر ذوی العقول.

بَلْ هُمْ قَوْمٌ خَصِمُونَ ﴿٥٨﴾

بلکې دوی یعني اهل مکه یو قوم دی شداد الخصومة حریص پر بې فائده جدال باندي خصومت بالباطل يې عادت ګرځېدلی دی، عن ابی امامة رض قال قال رسول الله ﷺ ماضل قوم بعد هدی کانوا علیه الا اوتوا الجدل ثم قرء ماضربوه لک الا جدلا بل هم قوم خصمون.

إِنْ هُوَ إِلَّا عَبْدٌ أَنْعَمْنَا عَلَيْهِ وَجَعَلْنَٰهُ مَثَلًا لِّبَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ﴿٥٩﴾

نه دی هغه یعني عیسی مګر عبد یعني لیس ابنه تعالی، موږ انعام کړی دی پر هغه، بالنبوة والقرب الی الله تعالی، او موږ دی ګرځولی دی یو امر عجیب کالمثل السائر او آیة او عبرة چي په ده کي عظیم قدرت د خدای عزوجل معلومېږي، یعني الله یخلق مایشاء حیث خلقه من غیر اب (لبني اسرائیل) لپاره د بني اسرائیلو چي باید د اشاعت د ذکر عیسی په باره کي دوی سرګرم کوشان وايي تا چي دوی ته هم انعام الهي رسېدلی وای لکه عیسی علیه السلام ته.

وَلَوْ نَشَآءُ لَجَعَلْنَا مِنكُم مَّلَٰٓئِكَةً فِى ٱلْأَرْضِ يَخْلُفُونَ ﴿٦٠﴾

که زموږ مشیت وای (جمله معترضه ده بیان د قدرت د خدای جل جلاله) یعني موږ به پیدا کړي وای ستاسي انسانانو څخه په طریقه د ولادت لکه عیسیٰ ؑ چي یې بې پلاره پیدا کړی دی او آدم ؑ یې له خاورو څخه پیدا کړی دی او له ده څخه یې بیا حواء پیدا کړې ده، ولي چي قدرت د خدای جل جلاله خلق د آدم ؑ او عیسیٰ ؑ بغیر اب (یخلفون) یعني دوی به خلافت ستاسي کولای په ځمکه کي یعني تعمیر د ځمکي بې کولای او زما عبادت بې کولای او اطاعت به یې هم کولای لکن لم یفعل الله ذالک لعدم مشیته ذالک.

وَإِنَّهُۥ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ

او د عیسیٰ علیه السلام نزول له اسمان څخه علامه د قرب د قیامت ده، او بعض قراء لعلم بفتح اللام وايي والمعنی واحد. د حذیفه بن اسید الغفاري رضی الله عنه څخه روایت دی چي یوه ورځ موږ یعني بعض صحابه سره ناست وُ د قیامت په باره کي مو بحث سره کاوه چي علیه السلام راغلی او وه یې فرمایل چي څه بحث مو سره کاوه؟ موږ ورته وویل چي موږ د قیامت په باره کي بحث سره کاوه، نو علیه الصلوة والسلام راته وویل چي قیامت نه قائمېږي چي تاسي تر هغه دمخه لس نښانیانې نه وویني، فذکر علیه السلام (۱) الدخان (۲) والدجال (۳) ودابة الارض (۴) وطلوع الشمس من مغربها (۵) ونزول عیسیٰ بن مریم ؑ من السماء (۶) ویاجوج وماجوج، او درې خسفه (۷) خسف بالمشرق (۸) وخسف بالمغرب (۹) وخسف بجزیرة العرب (۱۰) نار تخرج من الیمن تطرد الناس الی محشرهم.

**درویش وایي:** چي په ترتیب کي د دغو لسو علاماتو اختلاف دی او په تفصیل کي يې بحث طويل ستهِ چي په احاديث مباركهؤ کي مذکور دي.

فَلَا تَمْتَرُنَّ بِهَا وَاتَّبِعُونِ ۚ هَٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيمٌ ﴿٦١﴾

کلمه د فاء لپاره د سبب ده ای لما کان عیسیٰ سببًا للعلم بقیام الساعة فلاتشكن في قيام الساعة (واتبعون) زما متابعت وکړئ په هدایت کي او اتبعوا شرعي او اتبعوا رسولي، دغه لار چي زه تاسي ورته رابولم لار ده سمه واصل ده ورضا ته د رب عزوجل يا جنت ته.

وَلَا يَصُدَّنَّكُمُ الشَّيْطَانُ ۖ إِنَّهُ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِينٌ ﴿٦٢﴾

تاسي دي منع نه کړي شيطان له متابعت زما څخه يعني زما د امرت به ونهيت عنه څخه، په تحقيق شيطان تاسي لره دښمن دی ظاهر العداوة چي دی له لاري څخه د سلوک منع کوي چي ايمان او اسلام دی او د اورلار درته ښاشسته کوي چي کفر او ضلال دی.

وَلَمَّا جَاءَ عِيسَىٰ بِالْبَيِّنَاتِ قَالَ قَدْ جِئْتُكُم بِالْحِكْمَةِ وَلِأُبَيِّنَ لَكُم بَعْضَ الَّذِي تَخْتَلِفُونَ فِيهِ ۖ

او هغه وخت چي عيسیٰ ؑ راتګ وکړی په معجزاتو سره (لکه ابراء الاكمه والابرص وغیر ذالک) او يا په آياتو سره د انجيل او يا په شرائعو سره چي ټول واضحات الدلاله دي پر نبوت دده "قال قد جئتكم" وويل عيسیٰ ؑ ما تاسي ته په علوم حقهؤ سره راتګ کړی دی (ولابين لكم) متعلق دی په محذوف پوري تقديره وجئتكم لابين بعض هغه څه چي تاسي اختلاف پکښي کوي وذالک ان اليهود صاروبعد موسىٰ (٧١) فرقي چي متابعت د خپلو خواهشاتو يې کاوه، نو چي عيسیٰ ؑ راغلی منع يې کړه يهود د ټولو عقائد و باطلهؤ څخه او ښوونه يې ودوی ته وکړه د حق او صواب د لاري كما جاء في الحديث النبوي افترقت اليهود على (٧١) فرق وتفرقت النصارى على (٧٢) فرقة وتفترق امتي على (٧٣) فرقة، رواه ابو داؤد وابن ماجه والترمذي والنسائي، او عيسیٰ ؑ وويل:

فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيۡعُوۡنِ ﴿۶۳﴾ اِنَّ اللّٰهَ هُوَ رَبِّيۡ وَرَبُّكُمۡ فَاعۡبُدُوۡهُ ؕ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسۡتَقِيۡمٌ ﴿۶۴﴾

او له خدایه وبېرېږئ او زما اطاعت وکړئ فيما امرکم به، په تحقيق خدای ج زما رب دی او ستاسي رب دی نو بايد يوازې دده عبادت وکړئ، دا توحيد د معبود او اتباع د شرائعو سمه لار ده.

**فائده:** هو ضمير فصل لپاره د حصر دی، حاصل د آيت داده چي اعتقاد د توحيد دی والتعبد بالشرائع وهذا بيان لما امرهم بالاطاعة في قوله واطيعوني.

**بوه سه:** چي جمله (هذا صراط مستقيم) هم د کلا څخه د عيسیٰ ؑ ده يا جمله مستانفه ده له جانب څخه د خدای ج.

فَاخۡتَلَفَ الۡاَحۡزَابُ مِنۡۢ بَيۡنِهِمۡ ۚ

احزاب جمع د حزب ده معناه الجماعة، مظهري د من بينهم ضمير يوازې نصاری ؤ ته راجع کړی دی، او روح البيان ويهودانو او نصاری ؤ دواړو ته راجع کړی دی، او مظهري بيان د اختلاف ددوی نه دی بيان کړی فقط پر هغه حديث مبارک يې اعتماد کړی دی چي په باره کي د نصاری ؤ راغلی دی کما مر من اختلاف النصاری (۷۲) فرقة، او روح البيان د دواړو د يو عظيم اختلاف بيان کړی دی حيث قال چي عيسیٰ يهودان او نصاری دواړو ته مبعوث ؤ، نو يهودانو لعنهم الله وايي چي زنی کړې مور د عيسیٰ نو دی ولد الزنی دی (نعوذ بالله من ذالک) او نصاری درې فرقې دي (۱) اوله فرقه وايي چي عيسیٰ په خپله خدای دی (۲) فرقه وايي چي عيسی ابن الله دی (۳) فرقه وايي چي يو الله دی بل عيسی وامه تو له خدايان دي، عيسیٰ ؑ ثالث ثلاثه بولي.

فَوَيۡلٌ لِّلَّذِيۡنَ ظَلَمُوۡا مِنۡ عَذَابِ يَوۡمٍ اَلِيۡمٍ ﴿۶۵﴾

پس هلاکت دی (ويل هلاکت ته وايي مبتداء ده) د هغه چا لپاره چي ظلم يې کړی دی پر خپلو ځانو په متابعت د هوای نفساني او ترک د ما نطق به الکتاب والسنة (يعني د دغو احزابو څخه) له عذاب څخه د ورځي چي ورځ د قيامت ده چي هغه عذاب درد ورکونکی دی. الفاء في قوله فويل لپاره د سببيت دی ولي چي ددوی دغه اختلاف سبب د ويل او هلاک دی.

**سوال:** ويل خو نكره محضه ده مبتدا نسي واقع كېداى؟
**ځواب:** دا نكره محضه نه ده بلكې تنوين د تعظيم دى اى هلاك عظيم كما قال النحاة في قوله القائل شر اهر ذاناب (لوى شر دى چي پر غپا يې راوستلى ذاناب چي مراد ځني سپى دى)

هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّا السَّاعَةَ اَنْ تَاْتِيَهُمْ بَغْتَةً وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ۝

آيا دوى نه ګوري (مراد ځني قريش دي) چي ظلم يې پر ځان كړى دى په سبب د شرک، او لاينظرون په معنى د لاينتظرون دى يعني انتظار نه كوي د هيڅ شي (نو استثناء مفرغ ده) يعني مستثنى منه يې محذوف دى والتقدير لاينتظرون شيئ من الاشياء الا الساعة (الا الساعة) مګر نه د قيامت (ان تاتيهم) بدل دى د الساعة ځنځه اى اتيان الساعة (بغتة) په پښتو وايي نابېره په اردو وايي اچانک، او دوى به نه وي خبر په راتګ ولي چي دوى به مشغول وي د دنيا په كارو او د قيامت به منكره وي.
**پوه سه:** چي قيامت درې قسمه دى (۱) القيامة الكبرىٰ هغه هلته دى چي خلک راژوندي سي او دوى سوق سي و محشر ته لپاره د جزاء بالجنة او النار (۲) والقيامة الصغرىٰ وهي وقت موت كل احد كما قال رسول الله ﷺ من مات فقد قامت قيامته، ولهذا ورد القبر روضة من رياض الجنان او حفرة من حفرات النيران (۳) والقيامة الوسطى وهي موت جميع الخلائق بنفخة صور اسرافيل الاولى، ولايعلم وقوعه وقيام هذه الوسطى الا الله نعم هذه القيامة بالعلامات المنقولة من رسول الله ﷺ، منها يرفع العلم ويكثر الجهل او ډېره به سي زنیٰ وشرب الخمر، او لږ به سي رجال او ډېري به سي ښځي حتى يكون لخمسين (۵۰) امرئة قيم واحد ولي چي نران به په فتنو د جنګو قتل كېږي ښځي به پاتېږي، وعن علي رضي الله عنه چي را به سي پر خلكو داسي زمانه چي نه بسي پاته د اسلام ځنځه الا اسمه ولا من الدين الا رسمه ولا من القرآن الا درسه (يعني درس كېږي به عمل به نه وي) مساجد به يې په ظاهر الصوري ډېر زيبا وي محكم به وي لكن له ذكر ځنځه به خراب وي، شر اهل هذا الزمان علمائهم منهم تخرج الفتنة واليهم تعود.

اَلْاَخِلَّآءُ يَوْمَئِذٍۭ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ اِلَّا الْمُتَّقِيْنَ ۝

اى المتحابين في الله، روى البغوي عن علي رضي الله عنه في هذه الآية چي دوه

دوستان وه مؤمنان او دوه دوستان وه کافران دا یو مؤمن وفات سو، نو خدای ﷻ ته یې خواست وکړی چې فلاني چې هغه ژوندی دوست یې مراد ؤ ده به زه ستا او ستا د رسول په اطاعت امر کولم یأمرني بالخیر وینهاني عن الشر، او ماته به یې ویل چې مو ږ په اخرت کې د خدای ﷻ سره ملاقي کېدونکي یو یا رب فلا تضله بعدي واهده کما هديتني واكرمه كما اكرمتني، نو چې هغه ژوندی خلیل دوست یې مړ سو خدای پاک سره جمع کړه او خدای پاک ورته وویل چې هر یوه د تاسي دوو د هغه بل صفت وکړی فیقول كل واحد في حق الآخر نعم الاخ ونعم الخليل ونعم الصاحب، واذا مات احد الكافرين فيقول يا رب ان فلانًا يعني الكافر الحي ينهاني عن طاعتك وطاعة رسولك ويأمرني بالشر وينهاني عن الخير، او دا به یې راته ویل چې قیامت نسته فیقول بئس الاخ وبئس الخليل وبئس الصاحب.

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی قال قال رسول الله ﷺ لو ان عبدين تحابا في الله عزوجل (د دوو بندګانو چې د خدای ج په لاره کې سره محبت وي) واحد في المشرق واخر في المغرب لجمع الله بينهما يوم القيامة يقول (ای الله) هذا الذي تحبه في (زما په لار کي)، عبید بن عمر رح وايي چې د يو سړي درې اشنايان وه، يو اول نمبر چې دې سړي د هغه خدمت کړی ؤ او ډېر ګراوونه ددې دوست پر تېر سوي وه، بل اشنای یې تر هغه اول خو لږ کم ؤ خو بیاهم ددې اشنای هم پر دې سړي ډېر ګراوونه تېر سوي ؤ، د دریم اشنای لپاره پر ده ډېري خواري نه وې تېري سوي، دې سړي ته داسي مشکل وربېښ سو چې بل وطن ته تللی د لاري ملګري ته یې ضرورت درلودی او داسي ملګری چې دده د مشکل تر خلاصېدو پوري به دده سره ورسره وای، نو دا سړی اول هغه اول اشنای ته ورغلی او خپل حال یې ورته وواېه هغه اشنای یې ورته وویل چې زه ستا د کور اشنای یم ستا سره مسافري نسم کولای. بیا دوهم اشنای ته ورغلی هغه ورته وویل چې زه ستا سره صرف دومره کولای سم چې د مشکل تر ځایه مې ته ورسولې زه بېرته در څخه راځم، بیا دریم اشنای ته ورغلی ماجری یې ورته وویل، هغه ورته وویل چې زه پر کور هم اشنای وم په سفر هم درسره ځم او تر هغو چې ستا مشکل نه وي حل سوی درسره به یم.

**درویش وايي:** چې هر اهل عقل ته ددې درو اشنایانو حال بیان کړل سي نو بلا توقف

به ووايي چي دريم اشناى بهترين اشناى دى، اوس د دې درو اشنايانو د بيان حال پر لور، اول هر سړي د باغ او بنګلې په تعمير كي ډېر كړاوونه پر ځان وړي دي وخت د سفر دده و قبر ته رارسېږي باغونه بنګلې اسائش الدار، ځاى پر ځاى يې له سفره انكار وكړي، بل اشناى چي زامن او نور قريبان دي چي د هغو لپاره مسافر القبر ډېري خوارى، كښلي وې ورته ووايي چي د مشكل تر ځايه پوري موږ درسره ملګري يو يعني چي تر هغه ځاى مو ته ورسولې يعني موږ بېرته در ځخه راځو، دريم اشناى ورته ووايي چي زه دي پر كور هم ملګرى وم په سفر كي هم ملګرى يم او د مشكل تر ځاى هم ملګرى يم او چي ستا مشكل حل سوى نه وي زه نه در ځخه جلا كېږم دا ملګرى عمل صالح دى او عبادت د خداى ﷻ دى چي تر هغه وخته پوري درسره ملګرى دى چي دا سړى يې و جنت ته نه وي رسولى نو رشتيا دريم اشناى په اشنايي ارزي لكن عمل برعكس دى، اللهم الا بتوفيقك لمحبة الصديق الاخروي العمل الصالح.

يٰعِبَادِ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ وَلَآ اَنْتُمْ تَحْزَنُوْنَ ۝

اى زما بندګانو (الاضافة لتشريف المضاف كما في بيت الله يعني يقول الله للمتحابين چي يو د بل سره محبت كوي، المتقين) بېره نسته پر تاسي نن ورځ (يعني يوم القيامة) او نه به تاسي غمجن ياست.

**پوهه:** چي خوف په ائينده پوري تعلق لري او حزن په ماضي پوري مثلاً د يو چا زوى ناجوړى وي بېرېږي چي مړ نه سي دا خوف دى، او يا د چا زوى مړ سي پسي غمجن وي دا حزن بولي، د بخاري په روايت عن معتمر بن سليمان عن ابيه قال سمعت رسول الله ﷺ چي خلک چي بعث سي ليس منهم احد الا فزع فنادى مناديا يا عبادي لاخوف الآية فيرجوا الناس (يعني اميد د خلاصون د خوف او حزن ور پيدا سي)

الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاٰيٰتِنَا وَكَانُوْا مُسْلِمِيْنَ ۝

هغه كسان دي چي ايمان يې راوړى زموږ پر آياتو باندي يعني آيات د قرآن عزيز دا موصول صفت دى د منادى چي عبادي دى (وكانوا مسلمين) دا جمله حال ده له فاعل ځخه د آمنوا.

**فائده:** دا آيت تاكيد دى د آمنوا نو په دغه نداء سره نا اميد سي تولهٔ انسانان غير له مسلمانانو.

ادْخُلُوا الْجَنَّةَ أَنْتُمْ وَأَزْوَاجُكُمْ تُحْبَرُونَ ۞

داخل سئ و جنت ته تاسي او ستاسي مايني چي مؤمنات وي (تحبرون) اى تسرون خوشحاله اوسئ چي د خوشحالى اثارمو پر مخانو معلومېږي، يا معنى داده چي تاسي زېب او زينت كوئ، مشتق دى له حبر څخه چي حسن الهيئة ته وايي او يا معنى داده چي تكرمون اكرامًا بليغًا او دا جمله هم صفت د منادى دى يعني خطاب و عبادي ته دى.

**پوه سه:** چي انتم مبتداء ده او ازواجكم پر عطف دى او تحبرون يې خبر دى.

**فائده:** په علماء كي هغه ته وايي چي د اثارو څخه د علم دده په زړو كي د خلګو پاته وي او تصانيف دده په علوم دينيه ؤ كي خلګ لاس پر لاس د فائدو اخستلو لپاره كوي او آثار د حسنهٔ دده چي مقتدى بها وي موجود وي.

يُطَافُ عَلَيْهِمْ بِصِحَافٍ مِّنْ ذَهَبٍ وَّأَكْوَابٍ

طواف كره كېږي پر دوى چي په بل ځاى كي د قرآن مجيد په معلوم صيغه سره راغلى دى ويطوف عليهم ولدان مخلدون (بصحاف) جمع د صحفة دى فراخه كاسې ته وايي په دې كاسو كي دوى ته مطعومات شهيه راوړل كېږي (من ذهب) د سرو زرو (واكواب) جمع د كوب ده كوب هغه د ځيښلو ظرف او لوښي ته وايي چي نه لاستى لري او نه څښكه چي په پښتو يې آب خورى يا سروبى بولي ددې لوښي فائده داده چي پر هر ځاى يې سرى خوله كښېږدي او به ځني ځيښل كېږي، نو دا اكواب هم د ذهب وي وان لم يذكره قياسًا على المعطوف عليه يعني بصحاف.

وَفِيهَا مَا تَشْتَهِيهِ الْأَنْفُسُ وَتَلَذُّ الْأَعْيُنُ وَأَنْتُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ۞

او په دې كي يعني په جنت كي هغه شيان سته چي د زړو د جنتيانو هوا نه ورته كېږي من الماكولات والمشروبات والمنكوحات من الحور العين، او لذت پر اخلي ستر ګي، غالبًا ستر ګي پر بنائسته مخانو خوند اخلي من زوجات الدنيا چي د جنتي پر نكاح مړې وي و حورات الجنات المعدة للجماع.

**درويش وايي:** چي علماء د اسلام ټوله وايي چي جنتي داسي خواهش نه كوي د منهي عنه په دنيا كي لكه لواطت چي په ټولو اديانو كي ناروا دى ولو في دبر

امرئته لان الحكمة في الوطي الحرث يعني كښت چي عيال دی، والدبر موضع الغرث اى النجاسة.

**درويش وايي:** چي دغه دی د قرآن عظيم الشان د كلماتو جامعه ؤ ځکه لجميع نعيم الجنة يعني قوله تعالى كمامر ماتشتيهه الانفس وتلذ الاعين.

(وانتم فيها خالدون) او تاسي به په جنت كي همېشه یاست، يعني وتل له جنت څخه مو نسته لکه په دنيا کي چي راوتلاست.

**فائده:** په دې جمله کي التفات دی له غيبت څخه چي په دمخه جمله ؤ کي و خطاب ته په انتم راغلی وهذا من محسنات العربية.

تِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِيٓ أُورِثْتُمُوهَا بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٧٢﴾

او دغه جنت هغه ځای دی چي په ميراث درکړه سو تاسو ته په سبب د هغه شي چي تاسي يې عمل کاوه په دنيا کي (كلمة ما موصولة والعائد محذوف اى بالذي كنتم تعملونه فالضمير هو العائد المحذوف) له ابی هريرة ﷺ څخه روايت دی چي ده وويل قال رسول الله ﷺ چي په هر يوه د اهل النار ليدل کېږي ځای دده په جنت کي يعني که دی مسلمان وای لپاره د زيادت حسرت دده، نو دی له دې حسرت څخه وايي لو ان الله هداني يعني في الدنيا لكنت من المتقين زه به پرهېزګار وای يعني مؤمن صالح به وای يعني نو دغه جنت به زما ځای وای، او هر جنتي ته ځای دده په دوږخ کي وربښکاره کېږي نو دا جنتي داسي ووايي ما كنا لنهتدى لو لا ان هدانا الله دا خبره دی شكرًا کوي، فذالک قوله تعالى وتلك الجنة اورثتموها الآية.

**فائده جليله:** په دې آيت کي يعني په لفظ کي د اورثتموها اشاره ودې ته ده چي دخول د جنت لکه ميراث ددنيا بلا اختيار الوارث دی كذالک دخول الجنة فضل من الله عزوجل بلا اختيار من العبد او تقسيم د درجاتو په سبب د اعمال حسنه ؤ دی.

لَكُمْ فِيهَا فَاكِهَةٌ كَثِيرَةٌ مِّنْهَا تَأْكُلُونَ ﴿٧٣﴾

تاسي لره په جنت کي مېوې سته چي د هغو به تاسي خوړک کوئ، له ثوبان ﷺ څخه رايت دی قال سمعت رسول الله ﷺ يقول چي ده وويل چي نه شکوي يو سړی له اهل جنت څخه يوه مېوه له مېوو څخه د جنت مګر نه چي د هغې په ځای کي مثل د هغې مېوې پيدا کېږي.



Scanned by CamScanner

**درویش وايي:** چي فاكهة په دې دنيا كي هغه مېوې ته وايي چي سړی صرف خوا پرې پاكوي يعني د غذاء لپاره يې نه خوري لكه په دنيا چي يو څوک غوښي يا ورجي و خوري او نس په ډک کړي وروسته يا مالټې يا نارنج يا كېله يا يو بوتل د كاكولا پسي وچښي يا الو بالو پسي وخوري وغير ذالک من فواكه الدنيا.

**پوښتنه:** ټولي مېوې د جنت يې ولي فاكهة وبللې؟

**ځواب:** چونكه ابدان د جنتيانو د تغير او تبدل څخه محفوظ دي او غذايي موادو ته ضرورت نه لري نو ټوله مېوې دوی صرف د تفكه لپاره خوري لا للغذاء.

**پوه سه:** چي البزار ؒ له ابی موسیٰ الاشعري ؓ عن النبي ﷺ څخه روايت كړی دی چي الله عزوجل چي آدم ؑ له جنت څخه را ايستی د ټولو مېوو د جنت توښه يې ورسره وركړه او د ټولو فائدې او صفت يې ورته بيان كړی، عليه الصلوة والسلام زياته كړه ثماركم هذه (ای في الدنيا) من ثمار الجنة غير ان هذه (ای ما في الدنيا) تغيير پيدا كوي وتلک (ای ما في الجنة) لا تتغير يعني تكون على حالها ابدًا. له ابن عباس ؓ څخه روايت دی چي يوه مېوه له مېوو څخه د جنت طول يې دوولس گزه دی ليس لها عجم (منډكي نه لري)

إِنَّ الْمُجْرِمِينَ فِي عَذَابِ جَهَنَّمَ خَٰلِدُونَ ﴿٧٤﴾

يعني كامل په جرم او گناه چي كافران ځني مراد دي په هر نوع كافر چي وي يعني مشرک وي او كه يهودي او نصاری بعد بعثة رسول الله ﷺ (دليل د ارادې د كامل في الجرم دادی چي مقابل د مؤمنانو مطلق كافران دي) په اوركي د دوږخ به همېشه يعني ابد الآبدين وي لا يموتون چي په استراحت سي.

لَا يُفَتَّرُ عَنْهُمْ وَهُمْ فِيهِ مُبْلِسُونَ ﴿٧٥﴾ وَمَا ظَلَمْنَٰهُمْ وَلَٰكِن كَانُوا۟ هُمُ الظَّٰلِمِينَ ﴿٧٦﴾

تخفيف نه كېږي د عذاب د دوی (عرب وايي: فترت عنه الحمی) يعني سپكه سوه د فلاني تبه، (وهم فيه) ای في عذاب النار نا اميده وي له نجات څخه، او موږ ظلم نه دی كړی پر دوی لكن دوی وه ظالمان يعني پر خپلو ځانو باندي.

**پوه سه:** چي هم ضمير فصل دی لپاره د انحصار د ظلم پر دوی فافهم هداک الله.

وَنَادَوْا يٰمٰلِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ ۖ قَالَ اِنَّكُمْ مّٰكِثُوْنَ ﴿۷۷﴾

او دوږخیان کافران ناري کړي ای مالک چي مشر ددوی سرفرست دی، پر موږ دي حکم وکړي ستا رب یعني مړه دي مو کړي تاچي مستریح سو، ووایي (ای الله تعالی او یا مالک زرکاله بعد) "انکم ماکثون" یعني مقیمون في العذاب لاخلاص لکم بموت ولا بغیره، له ابن عباس څخه په ډېرو روایاتو ثابته ده ددې آیت په تفسیر کي چي ده وویل چي کافران چي دا ووایي (ونادوا یا مالک) مالک ددوی څخه ساکت وي زر کاله وروسته جواب ورکړي انکم مکثون.

**پوه سه:** چي کافران بیا داسي تضرع و خدای ته وکړي او اسي نداء و خدای ته وکړي، ربنا غلبت علینا شقوتنا (غالبه سوه پر موږ بدبختي زموږ چي کفر دی) وماکنا قومًا صالحین (موږ په دنیا کي ګمراهان ؤ) ربنا اخرجنا منها (ای زموږ ربه موږ وباسه له دې اوره څخه یعني دنیا ته) فان عدنا فانا ظالمون (نو موږ ظالمان یو او د هر عذاب مستحق یو) فیذرهم مثل الدنیا مرتین (نو دوی پرېږدي په مثل د عمر د دنیا دوه واره یعني جواب نه ورکوي نه په لا او نه په نعم، وروسته جواب ورکړه سي د رب العزت له خوا څخه) اخسئوا فیها (ذلیل او سېږئ په دوږخ کي) ولا تکلمون (زما سره خبري مه کوئ یعني هیڅ زاري او عجز مه کوئ) فما استمعکم بعدها ابدًا (نو په دوږخ کي د زفیر او د شهیق بغاري سي چي د خره دوه اوازه دي، خدای د اخیر جواب وروسته داسي ورته ووایي)

لَقَدْ جِئْنٰكُمْ بِالْحَقِّ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَكُمْ لِلْحَقِّ كٰرِهُوْنَ ﴿۷۸﴾

موږ تاسي ته راتګ کړی ؤ په حق سره چي توحید ؤ بارسال الرسل وانزال الکتب لکن اکثره ستاسي له حق څخه کارهون یعني بد مو ځني وړه، ولي د هوا سره د نفس سره مخالف وه او د تقلید سره د اباؤ ستاسي یې سمون نه درلودی، وانما قال اکثرکم لان العدد القلیل قد امنوا.

**حکایت د مقام په مناسبت:** راوي وایي چي یو وخت الشبلي النعماني قدس سره ناجوړی ؤ نو قریبانو په هسپتال کي داخل کړی، نو علي بن عیسی چي وزیر ؤ خلیفة المسلمین ته ماجرا نوشته کړه چي الشبلي په بیمارستان کي مریض دی

داخل دی، خليفة المسلمين تر ټولو طبيبانو مقدم چي نصراني ؤ هسپتال ته ورواستاوه او ډېر تاکيد يې ورته وکړی چي دا مريض زما شخصي مريض دی بلکې د ټوله ملت اسلامي ستر مريض دی، نصراني طبيب چي هر څه علاج وکړی نه سو کامياب، نو يې الشبلي ؒ ته وويل چي که ماته معلومه سي چي زما د غوښو په ټوټه ستا علاج کېږي ما به خپلي غوښې دريغ کړي وای، الشبلي ؒ ورته وويل چي په لږ شي ستا د بدن تر غوښو زما علاج کېږي؟ طبيب ورته وويل چي هغه نو څه شی دی چي په دې سره ستا علاج کېږي؟ شبلي ؒ ورته وويل چي زنار د نصرانيت د غاړي وکاږه او د اسلام تناؤ په غاړه کي واچوه، طبيب على الفور وويل اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمد رسول الله، خليفة المسلمين ته چي دا خبر وررورسېدی وه يې ژړل چي زموږ په عقيده موږ مقدام الاطباء مريض ته واستاوه لکن خبر نه ؤ چي په حقيقت کي موږ مريض (يعني نصراني طبيب چي په مرض د نصرانيت مريض ؤ) طبيب ته واستاوه چي الشبلي قدس سره دی چي هغه مريض نصراني د مرض کفر د الشبلي ؒ په دعاء او دعوت او کرامت د رب العزة جوړ کړی.

أَمْ أَبْرَمُوٓا۟ أَمْرًا فَإِنَّا مُبْرِمُونَ ﴿٧٩﴾

**بوه سه:** چي ام منقطعه دی په معنی د بل دی، او همزه لپاره د انکار دی له ابرام الامر څخه يعني بايد دوی ته وای کړی، او بل لپاره د اضراب دی عن کراهة الحق والى الترقي فيها، والمعنى بل احكموا (امرًا) يعني مکر و عليه الصلوة والسلام ته او امرًا في تكذيب الحق ورده اى کلمة التوحيد ولم يقتصروا على كراهة لکن کامياب به نسي ولي (فانا مبرمون) موږ حکم کړی امر د مجازات دوی كما في غزوة بدر.

**بوه سه:** چي ابن له محمد بن کعب القرظي ؓ څخه روايت کړی دی په مابين کي د کعبې او د پوښ د هغې دوه قرشيان او يو ثقفي او يا دوه ثقفيان وه او يو قرشي ؤ، نو يوه د دوی څخه وويل چي ستاسي څه رايه ده خدای ؑ به زموږ خبري اوري او که نه، بل د دوی څخه ورته وويل چي که موږ په زوره خبري وکړو نو يې اوري او که يې کراري وکړو نو يې نه اوري، فنزلت هذه الآية.

أَمْ يَحْسَبُونَ أَنَّا لَا نَسْمَعُ سِرَّهُمْ وَنَجْوَىٰهُم ۚ بَلَىٰ وَرُسُلُنَا لَدَيْهِمْ يَكْتُبُونَ ﴿٨٠﴾

ام منقطعه دی همزه لپاره د انکار دی او يا لپاره د اضراب دی، آيا دوی ګمان لري

(يعني دا گمان يې غلط دی) چې موږ نه اورو يعني پټې خبرې د دوی په زړو کې وي (ونجواهم) يعني کرار خبرې (بلٰی) هو يعني موږ يې اورو او زموږ رسولان چې ملائکه حفظه دي چې د دوی سره همېشه ورسره دي هغه عملونه د دوی نوشته کوي.

قُلْ إِنْ كَانَ لِلرَّحْمَٰنِ وَلَدٌ فَأَنَا أَوَّلُ الْعَابِدِينَ ﴿٨١﴾

، ته ورته ووايې چې که چېرې خدای ﷻ لره ولد يا نر يا ښځه وای لکه نصاری چې وايي عيسی ابن الله يا يهودان وايي عزير ابن الله يا بعض اهل مکه وايي الملائکة بنات الله، زه به يې اول د عابدانو وای، ولې چې نبي خو اعلم د خلکو دی بما يصح على الله وما لايصح، او خبردار وي په تعظيم د ما يوجب تعظيمه او هغه څوک چې تعظيم د والد کوي چې الله دی تعظيم د ولد د هغه که بالفرض والمحال وای پر لازم او واجب دی، ولهذا قال رسول الله ﷺ فاطمةؓ بعضة مني (فاطمهؓ زما جزء ده) فمن اغضبها اغضبني (که چا د دوی سره بغض کاوه او يا يې دا په غضب راوستلې وه، نو زه يې په غضب راوستلم يا يې زما سره بغض وکړی) رواه البخاري، مظهري دلته د متعلمينو تر فهم لوړې خبرې کړې دي، نو ځکه د روښ نه راوړې.

سُبْحَانَ رَبِّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ رَبِّ الْعَرْشِ عَمَّا يَصِفُونَ ﴿٨٢﴾

پاکي ده هغه چا لره چې خالق او مالک د اسمانو دی او خالق او مالک دی د عرش چې هغه په عالم اجسام کې تر ټولو يې بنا ده له هغه شي څخه چې کافران يې و ده ته نسبت کوي چې خدای ﷻ لره ولد سته.

فَذَرْهُمْ يَخُوضُوا وَيَلْعَبُوا حَتَّىٰ يُلَاقُوا يَوْمَهُمُ الَّذِي يُوعَدُونَ ﴿٨٣﴾

پرېږده دوی يا محمد (ﷺ) چې دوی خبرې ناوړه کوي په باره کې د خدای ﷻ چې ولد ورلره سته.

**پوه سه:** چې يخوضوا مجزوم دی جواب د امر دی يعني فذرهم، او دوی په دنيا کې خپل سات تېروي، تر هغه وخته پورې چې دوی ملاقي کېږي د هغه ورځې سره چې د دوی سره يې وعده کړل سوې ده يعني يوم القيامة چې په هغه ورځ د دوی سره د عذاب النار وعده سوې ده.

**فائده:** په دې آيت کې يعني فذرهم الآية اشاره ودې ته ده چې ته يا محمد (ﷺ)

ددوی له لهو ولعب سره خپل مبارک زړه ډېر په غم کي مه اچوه، ولي چي ددوی مطبوع پر کفر دي او کفر ددوی جهل مرکب دی او متابعت د هوا نفساني دی.

وَهُوَ الَّذِي فِي السَّمَاءِ إِلَٰهٌ وَفِي الْأَرْضِ إِلَٰهٌ ۚ وَهُوَ الْحَكِيمُ الْعَلِيمُ

او الله هغه ذات دی چي په اسمانو کي هم اله دی او په ځمکه کي اله دی، يعني مستحق د عبادت په اسمان او ځمکه کي هم دی دی چي مستحق د عبادت په دواړو بل څوک نسته چي مضمون د لا اله الا الله دی او چېري چي عبادت د غير الله کول کېږي هغه باطل او بغير الاستحقاق دی (وهو الحکيم) خدای ﷻ په تدبير د خپل مخلوق خپل حکمت دی يعني د خدای پاک په صنع کي عبث شی نسته (العليم) د خپل مخلوق په هر حال خبر دی، نو ځکه مستحق د معبوديت يعني لا اله الا هو.

وَتَبَارَكَ الَّذِي لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا وَعِندَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ

**پوه سه:** چي تبارک ماضي معلوم ده و معناه کثير الخير او عظيم المرتبة دی هغه څوک چي ده لره سلطنت دی د اسمانو او د ځمکي او د ماېين د اسمانو او ځمکي چي کائنات الجوي بولي من الصواعق والبرق والسحاب وغير ذالک، او خاص په خدای ﷻ پوري علم د وقوع د قيامت کبری دی چي نه ملک مقرب په خبره ده او نه نبي مرسل کما يدل عليه تقديم الظرف يعني عنده (واليه ترجعون) يعني يوم القيامة فيجازيکم باعمالکم من الخير والشر والظاهرة والباطنة.

وَلَا يَمْلِكُ الَّذِينَ يَدْعُونَ مِن دُونِهِ الشَّفَاعَةَ

او مالکان نه دي هغه شيان چي مشرکان يې عبادت کوي (چي عبارت له بتانو څخه دي) ماسوی له خدای ﷻ څخه (الشفاعة) شفاعت د خپلو عابدانو لکه مشرکانو چي به ويل هؤلاء شفعاء الی الله دا بتان به زموږ شفاعت وخدای ﷻ ته کوي.

إِلَّا مَن شَهِدَ بِالْحَقِّ وَهُمْ يَعْلَمُونَ

استثناء ده د شفاعت کونکو څخه مګر هغه څوک شفاعت کولای سي د شفاعت کونکو څخه چي شاهدي اداء کوي (بالحق) يعني بقوله لا اله الا الله چي

انبیاء علیهم السلام او ملائکه دي او سائر مؤمنان (وهم یعلمون) او دوی عقیده لري په زړو کي په ما شهد به السنتهم، په دې سره منافقان ویستل سوه ولي دوی خو په من شهد بالسنتهم کي داخل وه لکن په هم یعلمون سره ووتل.

وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَهُمْ لَيَقُولُنَّ اللَّهُ فَأَنَّىٰ يُؤْفَكُونَ ﴿٨٧﴾

کد ته له دوی څخه (یعني د کفارو څخه د مکې) پوښتنه وکړې چي دوی چا پیدا کړي دي، نو دوی حتمًا وایي چي خدای پیدا کړي یو، ولي کفار مکه په دې قانع وه چي خالق زموږ خدای دی وبس لعدم امکان الاستناد لخلق الی الجمادات. او سره د دې عبادت د غیر الله یې کاوه چي بتان وه (فانی یؤفکون) نو سره د دې اقرار چي خالق زموږ خدای دی زموږ بتان نه دي نو څرنګه مصروف سواست له عبادت څخه د خدای و عبادت ته د جماداتو بلکې لائق د اقرار سره په خالقیت د خدای باید تاسي عبادت خپل خالصًا د خدای کولای لا غیره چي بتان دي... ع: این خیال است و محال است و جنون.

وَقِيلِهِ يَا رَبِّ إِنَّ هَٰؤُلَاءِ قَوْمٌ لَّا يُؤْمِنُونَ ﴿٨٨﴾

بالجر و کسر عطف علی الساعة یعني عنده علم الساعة وعلم قوله ﷺ هذا علی قرائة عاصم و همزه (یا رب آه) یعني کفار مکة (قوم لایؤمنون) یو داسي قوم دی چي ایمان نه راوړي.

فَاصْفَحْ عَنْهُمْ وَقُلْ سَلَامٌ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴿٨٩﴾

نو ته یا محمد (ﷺ) اعراض وکړه د دوی له دعوت څخه د دوی و ایمان ته، یعني د ایمان راوړلو څخه یې طمع قطع کړه (وقل سلام) سلام دی زموږ او ستاسي ترمنځ، دې ته سلام د متارکة وایي یعني تسلمون منا ونسلم منکم (فسوف یعلمون) ژر دی چي دوی وپوهېږي په جزاء د عقائدو خپل او د اعمالو خپل او د اقوالو خپل.

**درویش وایي:** چي لله الحمد والمنة والصلوة والسلام علی خیر البریة وآله واصحابه البررة چي تفسیر د سورة الزخرف من التفسیر الایوبي په ورځ د پنج شنبې ساعة (١٠) قبل الزوال سنه (١٤٣٢) هجري في کوئټه پاکستان ختم سوه.

سورة الدخان مكية وهي تسع وخمسون اية وثلث ركوعات

بسم الله الرحمن الرحيم

رب يسر علي ولا تعسره وتممه بالخير والعافية.

حم ① والكتب المبين ②

**درويش وايي:** چي لكه په نورو مقطعات قرآنيه وُ كي چي اختلاف د مفسرين سته په حم كي هم هغه ته ورته اختلاف سته، لكن حقه خبره داده چي علمها عند الله ولا يعلم تأويله الا الله، واما نحن فنقول نحن نؤمن بما اراد الله بتلك وتسمى تلك الاسماء بالحروف المتشابهة چي تحقيق يې په اول كي د سورة البقرة تېر سوى دى (والكتاب المبين) الواو للقسم، والجواب وروسته آيت دى، والمعنى زما دي قسم وي په كتاب سره چي مراد ځني قرآن مجيد دى چي مبين د حلال او حرام دى او مظهر د حق او باطل دى الى غير ذالك.

انا انزلنه في ليلة مبركة

په تحقيق موږ نازل كړى دى دغه كتاب، اى القرآن په مباركه شپه يو په دې سبب مباركه شپه وه چي قرآن كريم مبارك كتاب دى چي منافع دينيه او دنيويه پكښې موجود دي او هم په دغه شپه ملائكه د رحمت نازليږي او اجابة د دعاء پكښي كيږي چي ليلة القدر ده، قتادهؒ او ابن زيدؒ وايي چي انز الله القرآن في ليلة القدر من ام الكتاب چي لوح محفوظ دى و اول اسمان ته يعني جبرئيلؑ يې امر كړى په نسخ د قرآن د لوح محفوظ ځخه و بيت العزة ته چي په اول اسمان كي دى، وروسته بيا جبرئيلؑ له هغه ځايه و رسول اللهﷺ په په درويشت (۲۳) كاله كي نجمًا نجمًا و سورةً وآيةً آيةً يې راوړى (روح البيان) او بعض مفسرين وايي چي مراد د دغه ليلة مباركة ځخه ليلة النصف من شعبان فهو نداء من يعيد وليس بشيئ لمخالفة القرآن العزيز، قال عز من قائل شهر رمضان الذي انزل فيه القرآن آه وقوله تعالى انا انزلناه في ليلة القدر الى اخير السورة.

**سوال:** په روايت د القاسم بن محمد عن ابيه عن جده رضعن رسول اللهﷺ انه قال ينزل الله عزوجل ليلة النصف من شعبان فيغفر لكل نفس الا الانسان الذي في قلبه الشحناه (اى البغض والعداوة مع مؤمن او مشركًا بالله) رواه البغوي.

**درویش وایي:** چي هذا الحديث من المتشابهات لان النزول الانتقال من صفات الاجسام فيكتفى على تشابهه، او يؤول بتاويل صحيح مطابقًا للقطعيات يعني رحمته تعالى ونسبته النزول الرحمة مجاز باعتبار الحامل لها فافهم؟

نو ددې جواب دادی چي دا حدیث خو صرف پر برکت او عظمت د ليلة النصف من شعبان دلالت کوي ونحن لاننكره ولايدل على نزول القرآن فيه والمقصود ههنا نزول القرآن، فتدبر ولا تعجل.

إِنَّا كُنَّا مُنذِرِينَ ﴿۳﴾

موږ يو بيرونكي د خلكو له عذاب څخه په ذريعه د نزول القرآن، دا جمله مستأنفه ده يا بدل اشتمال ده من قوله انا انزلناه آه.

**پوښتنه:** نزول د قرآن كريم په شپه د قدر وسو نه په ورځ كي سرېږي څه دی؟

**ځواب:** من وجوه (۱) شپه وخت د احبهؤ ده د محبوب سره د وصال، او ورځ د فراق الاحبة وقت ده، ولهذا وقع معراج النبيﷺ په شپه كي كريمه "سبحان الذي اسرى بعبده ليلاً من المسجد الحرام الآية (۲) په شپه كي زړونه فارغ وي و ذكر ته حضرت المحبوب فهو اطيب ده عند الابرابر من النهار (۳) شپه نمونه د جنت ده يعني لكه جنت چي ځای د ارام او راحت دی شپه هم وخت د ارام له تعب څخه د ورځي، او ورځ شبه د دوږخ لري يعني لكه دوږخيان چي په دوږخ كي ناقراره وي د ورځي هم هر سړی په سرگردانی د دكان، تجارت، روزانه، دواخانه، قلبه كشي الى غير ذالك سراسيمه او سرگردان وي (۴) د شپې وړوړ ارام وي په عبادت كي يا په لمانځه كي نه خطاوزي او د ورځي چي ناري او وړوړه پر روي سړی په فارغ زړه عبادت نسي كولای نو له دې سببه د تهجد لمونځ افضل د نوافلو دی الى غير ذالك من الفوائد في الليل.

فِيهَا يُفْرَقُ كُلُّ أَمْرٍ حَكِيمٍ ﴿۴﴾

په ليلة القدر فعل اقضاء كېږي، هر كار محكم يا متلبس بالحكمة يا اسناد مجازي دی ای حكيم صاحبه.

**پوهه:** چي دا جمله صفت ثانيه دی د ليلة. البغوي رحمه الله وايي چي ابن عباس رضي الله عنه وايي چي په ليلة القدر كي د لوح محفوظ ملائكه كرام نقل كوي د وروسته كال تر



Scanned by CamScanner

بل کال شب قدر پوري آجال د انسانانو او ارزاق، ناجوړي خير او شر جنګونه يا امن حتى چي د حاجيانو تـک راتـک فلان و فلان الى غير ذالک، ورتـه و دې روايت ته په تغيير د الفاظو د الحسن، مجاهد او قتاده رحمهم الله څخه هم مروي دی.

أَمْرًا مِّنْ عِندِنَا ۚ إِنَّا كُنَّا مُرْسِلِينَ ۝

**پوه سه:** چي امرًا منصوب دی په حذف د اعني تقديره اعني هذا الامر امرًا مقضيًا من عندنا على المقتضى حکمتنا، وفيه مزيد تفخيم الامر ويجوز انيکون امرًا منصوبًا على انه حال من کل امر او من الضمير المستکى في حکيم، ويحتمل انيکن الامر بمعنى الطلب على سبيل الاستعلاء، وقع مصدرًا ليفرق والتقدير يفرق فرقًا صادرًا بامرنا (انا کنا مرسلين) په تحقيق موږ يو استونکي د محمد ﷺ ومن قبله من الرسل، بدل دی من قوله انا کنا منذرين، والتقدير انا انزلنا القرآن لان من عادتنا الانذار وارسال الرسل بالکتاب الى العباد.

رَحْمَةً مِّن رَّبِّكَ ۚ إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ۝

دا رحمت دی ستا د رب له خوا يا محمد ﷺ، اعراب: رحمة مفعول له للارسال او لتفريق کل امر حکيم يا مفعول له دی د مرسلين "السميع" اى يسمع اقوالهم ويعلم احوالهم.

**فائده:** داسي يې نه وويل رحمة منه لانه تعالى ذکر فيما قبل ملکه، نو اسم ظاهر يې راوړی يعني ربک اشعارًا بان ربوبية تعالى اقتضت ذالک.

**فائده:** هذين الاسمين وکذا مابعده يعني رب السموات آه لپاره د تحقيق د ربوبية د خدای ج دی ولي ربوبيت نه حاصلېږي الا لمن له هذه الصفات.

رَبِّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۖ إِن كُنتُم مُّوقِنِينَ ۝

وړاندي ددې آيت معنى تېره سوه.

**فائده:** رب السموات آه يا مجرور دی بدل من قوله من ربک يا مرفوع دی چي خبر د مبتداء محذوف دی اى هو يا صفت دی د السميع العليم (ان کنتم مؤمنين) که تاسي ياست ايمان راوړونکي والمعنى ان کنتم مؤمنين بان الله رب السموات والارض فايقنوا ان محمدًا رسول الله.

لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ

ای لا یستحق العبادة غیره تعالی اذ لا خالق سواه.

**فائده:** هذه الجملة مقررة د رب السموٰات والارض ده (یحیی ویمیت) خدای دی خالق د حیوة او د موت په انسانانو وغیرهم من الحیوانات دا خو مشاهده؟ کافرانو ته معلوم دی، جمله حال ده له هو څخه.

رَبُّكُمْ وَرَبُّ اٰبَآئِكُمُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿٨﴾

رب دی ستاسي او ستاسي د پلرو چي تر تاسي اقدم وه، نو یوازي اباء اقربین بلا واسطه نه دي مراد بلکې معنی شامل الاجداد ولو بوسائط ولي چي عرب جد ته هم اب وایي.

بَلْ هُمْ فِيْ شَكٍّ يَّلْعَبُوْنَ ﴿٩﴾

بلکې دوی په شک کي دي من البعث بعد الموت او من القرآن.

**پوه سه:** چي د شک څخه معنی متعارف ده اهل معقول نه ده مراد چي تساوي د طرفینو د اثبات او نفي ده بلکې معنی عام چي انکار ته هم شامله وي لانهم منکرون من ذالک.

**پوه سه:** چي کلمه د بل لپاره د اضراب ده له ایقان څخه یعني یقین کول پر بعث یا پر قرآن نه لري (یلعبون) حال دی له ضمیر څخه د في شک ای یلعبون بالقرآن سات تیروي او پسخند وهي په تا یا محمد (ﷺ)

فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَآءُ بِدُخَانٍ مُّبِيْنٍ ﴿١٠﴾

یعني اذا کان امر کک نو ته انتظار وکړه یا محمد (ﷺ) هغي ورځي ته چي راتګ وکړي اسمان په دود ښکاره.

**پوه سه:** چي لفظ د یوم په دې آیت کي ظرف نه دی بلکې مفعول به د ارتقب دی،

**درویش وایي:** چي په دخان کي د مفسرینو اختلاف دی ابن عباس او ابن عمر او الحسن وعن آبائهم ﷺ چي دا دخان له علاماتو څخه د قیامت دی یعني نفخة الصور الاولی کما جاء في الحدیث اخرج ابن جریر والثعلبي والبغوي من حدیث حذیفة ﷺ ده وویل قال رسول الله ﷺ اول الآیات الدخان ونزول عیسیٰ بن مریم ونار تخرج من

قعر عدن ابین (بالفتح نام شخصیت که این شهر را بنا کرده دریمن) تسوق الناس الی المحشر ای الشام وبین المقدس، قال حذیفة رضي الله عنه وما الدخان فتلا هذه الآیة ویملأ مابین المشرق والمغرب (او ډک به وي دود په مابین کي د مشرق او مغرب) څلوېښت ورځي به جاري وي مؤمن ته به هیئت د زکام وربېښ سي، واما الکافر کالسکران دا دخان به وزي تر غوږو دده او تر سږمو دده یا تر دبره دده.

يَغْشَى النَّاسَ ۖ هَٰذَا عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿١١﴾ رَّبَّنَا اكْشِفْ عَنَّا الْعَذَابَ إِنَّا مُؤْمِنُونَ ﴿١٢﴾

دا یو عذاب درد دهنده دی. د "ربنا اکشف آه" سره قول مکرر دی ای قالوا ای زموږ ربه زموږ څخه پورته کړې دا عذاب موږ ایمان راوړو.

أَنَّىٰ لَهُمُ الذِّكْرَىٰ وَقَدْ جَاءَهُمْ رَسُولٌ مُّبِينٌ ﴿١٣﴾ ثُمَّ تَوَلَّوْا عَنْهُ وَقَالُوا مُعَلَّمٌ مَّجْنُونٌ ﴿١٤﴾

له کومي خوا سته دوی لره پند اخستل؟ الاستفهام للانکار یعني دوی پند نه اخلي، والحال انه قد جائهم یعني امثال ددې دخان په ذریعو د رسول عظیم الشان (فالتنوین للتعظیم) چي ښکاره کړي دوی ته تر دې دخان لوی موجبات د پند اخستلو شیان من الآیات والمعجزات "ثم تولوا عنه" دوی اعراض وکړی د هغه نبي څخه یعني ایمان یې نه راوړی، او وویل یعني بعض ددوی چي دا نبي ته یو څوک ښوونه کوي چي غلام اعجمي د بني ثقیف آهنګرؤ چي علیه الصلوة والسلام به بعض وخت د هغه پر دکان کښېنستی ددې لپاره چي هغه غلام نصراني ؤ علیه الصلوة والسلام به دعوت د اسلام ورته کاوه، مکي والو به ویل چي محمد ده هغه غلام عجمي څخه زده کړه کوي، ولنعم ما قیل:

| | |
|---|---|
| چشم بند اندیش که بر کنده باد | عیب نماید شهرش در نظر |

او بعض کفار د مکې به ویل چي محمد (صلى الله عليه وسلم) لېوني دی.

**درویش وایي:** چي دا ؤ تعصب او عداوت د کفارو د مکې چي دومره عقل والا او نبي ته دي لېوني ووایي، قال الله تعالی:

إِنَّا كَاشِفُو الْعَذَابِ قَلِيلًا ۚ إِنَّكُمْ عَائِدُونَ ﴿١٥﴾

ای زمانا قلیلاً (نو قلیلاً ظرف او کشفا قلیلاً نو مفعول مطلق دی، المراد به الکشف ۴۰ ورځي) "انکم عائدون" تاسي بیرته کفر ته وګرځئ.

يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرٰى ۚ إِنَّا مُنْتَقِمُوْنَ ﴿١٦﴾

بطشة الكبرى اى يوم القيامة (ظرف دى لقوله، انا منتقمون) موږ له دوى څخه انتقام اخلو يعني په عذاب النار سره.

**درويش وايي:** چي مظهري وايي چي ابن مسعود رضی الله عنه له دې تفسير څخه انكار كاوه يعني چي مراد له دخان څخه حقيقت دخان دى كما روى البغوي عن ابى الضحى عن مسروق قال بينما رجل من كندة (د قبيلې نوم دى) بيان يې كاوه چي په ورځ د قيامت به يو دود پيدا سي، فيأخذ بأسماع المنافقين وابصارهم ويأخذ المؤمنين كهيئة الزكام ففزعنا (موږ وبېرېدلو) نو زه ابن مسعود رضی الله عنه ته ورغلم د هغه كندي بيان مي ورته وكړى ابن مسعود رضی الله عنه تكيه كړې وه درد ورغلى راكښېنستى، وقال من علم فليقل (كه څوک په يو شي خبر وي نو خو بيان دي وكړي) ومن لم يعلم فليقل الله اعلم (څوک چي نه پوهېږي تفويض د علم دي و خداى ج ته وكړي) فان من العلم ان يقول لما لا اعلم الله اعلم (چي د علم لويه حصه داده چي په يو شي چي نه پوهېږې داسي ووايي الله اعلم) فان الله قال لنبيه ﷺ قل اسئلكم من اجر وما انا من المتكلفين (مراد د متكلف څخه دادى چي په شي خبر نه وي د ځانه يې اختراع كوي) ابن مسعود رضی الله عنه زياته كړه چي قريشو تاخير وكړى له ايمان څخه فدعى عليهم النبي ﷺ (ښېرا يې ورته وكړه) فقال اللهم اعني عليهم بسبع كسبع يوسف (ماته كومک راكړې پر دوى يعني قريشو په اووه كاله كاختى لكه اووه كاله كاختي د يوسف عليه السلام يعني چي اووه كاله بارانونه د اهل مكه څخه بند وي) فاخذهم سنة (كاختى) حتى اهلكوا فيها (چي بعض كسان د لوږي مړه سوه) او دوى مردار شيان خوړل او هډوكي يې خوړل، نو ابو سفيان راغلى و عليه الصلوة والسلام ته او وه يې ويل چي ته خلک امر كوې په صلة الرحم سره او ستا قوم هلاكېږي د لوږي او قحط څخه. فادع الله ته خداى ته خواست د دفع د دغه قحط وكړه، او په هغه وخت كي د كاختى په مابين كي د اسمان او د مځكي كتل په خيال كي دود ورتلى لضعف ابصارهم.

**درويش وايي:** چي د ابن مسعود رضی الله عنه غرض داؤ چي په دې آيت فارتقب يوم تأتي السماء بدخان مبين آه دغه هيئت د دود دى د لوږي له سببه حقيقت دود نه دى. نو عليه

الصلوة والسلام هم دعاء وکړه خدای پاک ورته وویل انا کاشفوا العذاب قلیلاً، نو علیه الصلوة والسلام استسقاء وکړه بارانونه شروع سوه او دوی یعني قریشو ایمان رانه وړی کما قال الله تعالی انا کاشفوا العذاب قلیلا انکم عائدون، قال ابن مسعودؓ نوم تتطش البطشة الکبری ای یوم بدر، بغويؒ له ابن مسعودؓ څخه روایت کړی دی چي پنځه شیان تېر سوي دي اللزام، والبطشة، والقمر، والدخان، والروم انتهی.

**درویش وایي:** چي هغه دخان چي علیه الصلوة والسلام په علاماتو کي د قرب قیامت راوړی دی چي د قعر عدن څخه به راوزي الی اخیره هغه اور او هغه اور بلا ریب حقیقة اور دی، د ابن مسعودؓ غرض رد دی پر تفسیر د کندي کما رواه البغويؒ چي په ورځ د قیامت به یو دود پیدا سي الی اخیره وقد مر قریبًا.

وَلَقَدْ فَتَنَّا قَبْلَهُمْ قَوْمَ فِرْعَوْنَ وَجَآءَهُمْ رَسُوْلٌ كَرِيْمٌ ﴿١٧﴾

لام موطئه د قسم دی یعني جواب د قسم محذوف دی، موږ امتحان کړی دی په بل عبارت ابتلاء مو کړې ده دمخه تر کفارو د مکې (په بسوو کلونه دمخه) د قوم د فرعون، تنوین په "رسول کریم" کي د تعظیم دی ای رسول عظیم الشان چي موسیٰ ﷺ دی.

**فائده:** قوم یې ذکر کړی لان فرعون رأس ذالک القوم کما قال انا ربکم الاعلی فلا حاجة الی ذکره.

**سوال:** هارون ﷺ خو هم رسول ؤ نو د هغه ذکر یې ولې نه وکړی؟

**ځواب:** اصلاً په کوه طور کي خو یوازي موسیٰ ﷺ رسول سو لکن دده په غوښتنه واجعل لي وزیرًا من اهلي هارون اخي اشدد به ظهري واشرکه في امري ای النبوة، ولهذا په بل ځای کي د قرآن رسولا راغلی دی، یعني په تثنیه.

**فائده جدیدة:** د عمالقه د قوم دا رواج دی چي هر څوک چي د دوی سلطان وي فرعون یې بولي ورنه دده فرعون نوم ولید بن الریان ؤ او هر څوک چي د حبشه سلطان وي نجاشي یې بولي، کله څه هم د علیه الصلوة والسلام په عصر کي د حبشې د سلطان نوم اصحمه ؤ، او هر څوک چي د ترکانو سلطان وي نوم چي یې هر شی وي خاقان یې بولي، او هر څوک چي د فارسیان سلطان وي نوم یې هر شی چي وي کسری یې بولي، او هر څوک چي د رومیانو سلطان وي نوم چي یې هر شی وي قیصر یې بولي، او هر څوک چي د حمیر د قبیلې سلطان وي تبع یې بولي. او په

اسلام کي په زمانه قدیم کي یعني تر عصر نبوي ؐ وروسته هر څوک چي د امارت واګي په لاس کي ولري امیر المؤمنین یې بالـه تر انتهاء پوري د دورې د خلفاء راشدینو ؓ، څه زمانه وروسته بیا دا لفظ ګرانمایه بیا بدل سو په خلیفة المسلمین. او هر څوک چي د فرنګیانو بادشاه وي جورج یې باله نوم یې هر شی چي وي، په ورستنیو زمانو کي بیا رئیس الجمهور یا فلانی شاه خان ورته وایي.

اَنْ اَدُّوْۤا اِلَیَّ عِبَادَ اللّٰهِ ؕ اِنِّیْ لَکُمْ رَسُوْلٌ اَمِیْنٌ ﴿۱۸﴾

کلمه د ان مصدریه ده چي زما په لاس را کړه او ماته تسلیم کړه بنده ګان د خدای ج یعني بني اسرائیل وارسلوهم معي الی الشام او له مرییتوب څخه یې ازاد کړه او عذابونه مه ورکوه، او بعض مفسرین یې ترجمه داسي کوي چي ماته ادا کړه حق د خدای ج یعني الایمان بتوحیده ورسالتي او زما قبول کړې یا عباد الله په حذف د حرف نداء نو پر دې تقدیر مراد د عباد الله څخه فرعون او قوم دده دي، وفیه نظر لان هذه الاضافة لایلیق بشانهم فتدبر ''اني لکم آه'' په تحقیق زه و تاسي ته رسول یم یعني د خدای ج له خوا څخه، او امین یم په وحي کي یعني متهم په دروغو سره نه یم لاجل دلالة المعجزات علی رسالتي الیکم.

وَّاَنْ لَّا تَعْلُوْا عَلَی اللّٰهِ ۚ اِنِّیْۤ اٰتِیْکُمْ بِسُلْطٰنٍ مُّبِیْنٍ ﴿۱۹﴾

عطف علی قوله ادوا، او تکبر مه کوئ پر خدای ج چي استهانت کوي په وحي سره د خدای ج او په رسول د خدای او استخفاف او سپکاوی د بندګانو د خدای چي بني اسرائیل دي مه کوئ. په تحقیق ما راتګ کړی دی تاسي ته په ښکاره دلیل پر نبوت خپل چي مشهوره عصا او ید بیضا دي. ولذا ذکر الامین مع رسول، ومع عدم التعلی السلطان وروسته فرعون او دده قوم و موسیٰ ته پېښ رو ورکړی چي مونږ به دی په ډبرو سنګسار کړو، ځکه موسیٰ علیه السلام وویل.

وَاِنِّیْ عُذْتُ بِرَبِّیْ وَرَبِّکُمْ اَنْ تَرْجُمُوْنِ ﴿۲۰﴾

او زه پناه غواړم په رب سره زما او په رب سره ستاسي.

**درویش وایي:** چي په دې عبارت کي موسیٰ علیه السلام و دې ته اشاره وکړه چي زموږ او ستاسي رب یو دی او ستا د خدایي دعوی باطله ده کما قال فرعون انا ربکم الاعلی (ان ترجمون) چي تاسي به ما رجم کوئ او په ډبرو به مي وژنئ.

**فائده:** کسره د نون عوض له یاء څخه د اضافت ده.

وَإِن لَّمْ تُؤْمِنُوا لِي فَاعْتَزِلُونِ ﴿٢١﴾

تاسي تصدیق زما نه کوئ په دعوی کي د رسالت زما څخه ګوښه ګرځئ یعني ما ته تعرض په بد و سره مه کوئ وقیل معناه لالي ولا علي.

فَدَعَا رَبَّهُ أَنَّ هَٰؤُلَاءِ قَوْمٌ مُّجْرِمُونَ ﴿٢٢﴾

نو موسیٰ ؑ خواست وکړی خدای ج ته (وروسته تر دې چي فرعون او قوم دده و تکذیب ته ادامه ورکړه او په ازار دده یې لاسونه پورته کړه) "ان هؤلاء" په تحقیق دغه کسان یعني فرعون او قوم دده قوم مجرمون یعني جرم او تجاوز ددوی پیشه ده یعني مشرکان دي په دې ویلو کي د موسیٰ ؑ تعریض و بنېرا ته د هلاک د فرعون او قوم وُ له دې سببه سمي دعاء.

**درویش وایي:** چي وروسته تر ډېري زمانې چي معجزات یې په فرعون او قوم ولیدل او فرعون د موسیٰ ؑ چي ده ساحر باله مقابله په خپلو ساحرانو وکړه او ساحران مغلوب سول او ایمان یې راوړی، لکه چي ددې قصې د قرآن مبارک په بل ځای کي بیان راغلی دی او مخ ته هم تېر سوی دی په تفسیر ایوبي کي، نو خدای پاک د موسیٰ ؑ خواست قبول کړی نو موسیٰ ؑ ته یې داسي وویل:

فَأَسْرِ بِعِبَادِي لَيْلًا إِنَّكُم مُّتَّبَعُونَ ﴿٢٣﴾

فاسری، الفاء جزائیه یعني اذا کان الامر کذالک نو ته د شپې وباسه (بعبادي) یعني مؤمنان چي بني اسرائیل وه (لیلاً) تاکید دی د اسری لان الاسراء هو الاخراج لیلاً (انکم متبعون) فرعون او قوم دده یعني تو له په تاسي پسي دروزي یعني ستاسي د بیرته راګرځولو لپاره، لکه چي فرعون قوم ته وویل ان هؤلاء شرذمة قلیلون، دا بني اسرائیل یوه ډله ده لږ وانهم لنا لغائضون او دوی ما ته درد راوستی. نو راځئ چي بیرته یې غلامی ته رد کړو، او موسیٰ ؑ ته خدای ج امر ورکړی.

وَاتْرُكِ الْبَحْرَ رَهْوًا ۖ إِنَّهُمْ جُندٌ مُّغْرَقُونَ ﴿٢٤﴾

یعني اذا خرجت عنه واصحابک (رهواً) حال دی من البحر ای داغسي کوڅه کوڅه یې پرېږده او ژر یې په لکړه مه وهه چي فرعون به په موږ پسي را ورسېږي

موږ به راو ګرځوي (انهم جند مغرقون) دوی يو عظيم لښکر دی (نو تنوين د جند لپاره د تعظيم دی) چي غرقيږي يعني وروسته تر دې چي ټوله قوم د فرعون په شمول دده په کوځو د درياب داخل سو بيا نو درياب په لکړه وهه چي دوی ټوله غرق کړي ففعل موسیٰ ؑ کذالک ټوله فرعونيان غرق سوه او ټوله بني اسرائيل سالم پاته سوه، الحمد لله علي علمه وقدرته.

**درويش وايي:** چي تاريخ قديم په فارسي ژبه خبري کوي: فرعون قبطي بوده و قوم او قبطيان مي ناميدند وبني اسرائيل درزمين ايشان غريب بودند و از زمين کنعان درمصر قرار ګرفته بودند، و از نژاد يعقوب بودند که با پدر خويش يعقوب ؑ بمصر امدند ودرمصر ايشانرا توالد وتناسل بود بمرور زمانهای متعاول تعداد ايشان هزارها بلکه بصد هزارها رسيدند.

كَمْ تَرَكُوا مِنْ جَنّٰتٍ وَّعُيُوْنٍ ﴿۲۵﴾ وَّزُرُوْعٍ وَّمَقَامٍ كَرِيْمٍ ﴿۲۶﴾

ای ترکوا کثيراً نو کم خبري لپاره د کثرت دی، له باغو څخه د رنګارنګ مېوو او جاري ولې (وزروع) د کښتو مځکي، او د اوسېدو ځايونه چي ډېر زيبا او ښائسته وه.

وَّنَعْمَةٍ كَانُوْا فِيْهَا فٰكِهِيْنَ ﴿۲۷﴾

او نعمتونه چي دوی په هغو نعمتو کي متنعمين وه.

**درويش وايي:** چي په هيڅ قصه کي د هيڅ تفسير دانه دي راغلي چي فرعون او قوم دده چي د بني اسرائيلو په طلب پسي ووتل ښځي يې هم ورسره وې ولي په قصه کي د وتلو د فرعون هامان چي دده وزير مشاورؤ پر مقدمة الجيش فرعون راهي کړی شپږ لکه انسانان يې ورسره کړه او فرعون په خپلو زير قبضه ښارو کي اعلان وکړی د جمع کېدو د نرو فوجيانو په ډېره پېمانه (پښتانه وايي د مرچو د قراره يې اټکل کړه) يعني چي مقدمة الجيش شپږ لکه وه نو فرعون به څومره نفر سره جمع کړي وه، نو د ښځو د وتلو خو هيڅ ضرورت نه ؤ، نو بناء عليه که څه هم هيڅ مفسر اشاره نه ده ورته کړې د نعمة کانوا فيها فکهين څخه دي مراد ښځي د فرعونيانو وي چي په طور د مينځيانو د بني اسرائيلو په لاس ورغلې چي دا غټ سبب د تفکه دی، وهذه فائدة جديدة الهمت بما.

كَذٰلِكَ ۖ وَاَوْرَثْنٰهَا قَوْمًا اٰخَرِيْنَ
(كذالک قال الكلبي كذالک افعل بمن عصاني وقيل الامر كذالک) او
موږ په ميراث ورکړې يعني لکه ميراث چي مال متروک دی له مړه څخه و وارث ته
(قومًا آخرين) يعني بني اسرائيلو ته.

فَمَا بَكَتْ عَلَيْهِمُ السَّمَآءُ وَالْاَرْضُ وَمَا كَانُوْا مُنْظَرِيْنَ
نو نه وژړل پر فرعونيانو اسمان او نه مځکي، او نه وه فرعونيان چي دوی ته
مهلت ورکړل سي تر بل وخته پوري.

**درويش وايي**: چي بعض مفسرين دا کلام پر تمثيل حمل کړی دی لکن حمل پر حقيقت ډېر ښايسته دی يعني فرعونيان خو پر کفر مړه سوه نو د ژړا ځای يې نه په اسمان کي درلودی او نه په مځکه کي بخلاف المؤمن، اذا مات چي مړ سي پر هغه باندي ژاړي مځکه او اسمان دواړه كما روى الترمذي عن ابن عباس قال قال رسول اللهﷺ ما من عبد (ای مؤمن) الا وله بابان في السماء باب يصعد عنه عمله وباب ينزل منه رزقه فاذا مات فقداه وبكيا عليه، وروى ابن جرير وغيره عن ابن عباس چي دده څخه چا پوښتنه وکړه عن قوله تعالى فما بكت عليهم السماء والارض قال نعم انه ليس احد من الخلائق (ای المؤمنين لان الكلام فيهم) الا له باب في السماء ينزل منه رزقه ويصعد فيه عمله (ای الصالح) فاذا مات المؤمن فاغلق بابه من السماء فقد بكى عليه واذا فقد من مصلاه من الارض التي كان فيها يصلى ويذكر الله فيها بكى عليه تلك الارض.

**پوښتنه**: معنی د ژړا د اسمان او مځکي څه ده؟

**ځواب**: عند ارباب الحقيقة محمول پر حقيقت دی لان قدرة المولى جلت قدرته شاملة لكل ما يراه القدرة المتوسطة بعيداً، ويشهد له حديث البخاري وغيره چي رسول كريمﷺ د مخه تر جوړېدو د منبر لپاره د خطبې يو وچ لرگي ته چي په مسجد نبوي کي ولاړ ؤ تکيه کول، نو کله چي منبر جوړ سو او عليه الصلوة والسلام منبر ته راغلی هغه وچ لرگي په فراق د رسول اللهﷺ داسي بغاري او ژړا شروع کړه چي ټول له اهل مسجد اورېدل، حتى عليه الصلوة والسلام له منبره راکښته سو او هغه وچ لرگی يې په غېږ کي ونيوی يو څه يې ورته وويل والله اعلم، نو هغه لرگي کرار کرار ژړا

كمول، راوي وايي لكه يو كوچنى چي ژاړي او څوک يې ېمنوي اخير لركي ژړا
پرېښول ساكت سو او عليه الصلوة والسلام بيرته منبر ته تشريف فرما سو.

وَلَقَدْ نَجَّيْنَا بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ مِنَ ٱلْعَذَابِ ٱلْمُهِينِ ﴿٣٠﴾

لا موطئه د قسم دی يعني جواب د قسم محذوف دی. په تحقيق نجات وركړی
موږ و بني اسرائيلو ته له عذاب څخه چي اهانت وركونكی ؤ، يعني د فرعون جبار
له خوا پر دوی مسلط ؤ من قتل ابنائهم واستحياء نسائهم او د نرو څخه به يې د
مريانو كار اخستی، او ښځو يې د فرعونيانو د كورو خدمت كاراني وې چي فقط
كارونه به يې مابنام پر مابنام وركوله او ځوانان يې پر اعمال شاقه ؤ لكه كلاوي
جوړول زراعت په كول الى غير ذالک.

مِن فِرْعَوْنَ ۚ إِنَّهُۥ كَانَ عَالِيًا مِّنَ ٱلْمُسْرِفِينَ ﴿٣١﴾

اى من عذاب فرعون په حذف د مضاف يا بدل اشتمال دی من العذاب، په تحقيق ؤ
فرعون متكبر (اى غاية الاستكبار حتى قال الجبار انا ربكم الاعلى) تر تجاوز كونكو
په سركښي كي او په گمراهي او ظلم كي كما يدل عليه ما ذكرنا من احوال اللعالمين.

**فائده:** "من المسرفين" خبر ثاني د كان دی.

وَلَقَدِ ٱخْتَرْنَٰهُمْ عَلَىٰ عِلْمٍ عَلَى ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿٣٢﴾

موږ غوره كړي وه يعني موسٰى و هارونؑ و بني اسرائيلو ته (على علم) حال
دی اى عالمين بانهم احقاء بذالک (على العالمين) اى عالمي زمانهم فلا يرد
السوال بامة محمد ﷺ.

وَءَاتَيْنَٰهُم مِّنَ ٱلْءَايَٰتِ مَا فِيهِ بَلَٰٓؤٌا۟ مُّبِينٌ ﴿٣٣﴾

اى من المعجزات والكرامات كفلق البحر وانزال المن والسلوى واظلال
الغمام حين كانوا في التية. ابن زيدؒ وايي چي مراد له بلا څخه امتحان د دوی
دوو دی بالرخاء والشدة لان امتحان الله قد يكون بالنعمة لاجل الشكر وقد يكون
بالعذاب والنقمة لاجل الصبر.

**درويش وايي:** چي دا سبب دی چي بعض علماء وايي چي لفظ د بلاء له
اضدادو څخه دی، وليس كک فافهم.



Scanned by CamScanner

إِنَّ هَٰؤُلَاءِ لَيَقُولُونَ ﴿٣٤﴾ إِنْ هِيَ إِلَّا مَوْتَتُنَا الْأُولَىٰ وَمَا نَحْنُ بِمُنشَرِينَ ﴿٣٥﴾

په تحقيق دوی يعني كفار قريش، دوی وايي نه دی نهايت امر د دوی مګر موت زمونږ چي اول دی يعني دوهم وار ژوند نسته لكه محمد ﷺ چي وايي چي بعث بعد الموت سته لپاره د جزاء د اعمال د اهل دنيا، اما الجنة واما النار.

**پوښتنه:** د كفار قريش ذكر چېري وسو چي اشاري يې په هؤلاء ورته وكړه؟

**ځواب:** اصل كلام خو مسوق د قريش د كفارو دی و قصة فرعون و قومه په دې مناسبت راوړه چي كفار قريش مثل د فرعونيانو دي په اصرار كي پر ضلالت او ازار رسول د رسول الله ﷺ او غريب مسلمانانو ته لكه ابن مسعود، عمار بن ياسر بلال الحبشي وامثالهم ﷺ لكه فرعونيانو چي بني اسرائيلو ته ازار رساوه، په دې كي اشاره ودې ته ده چي كفارو ته د قريشو به هم داسي عذاب وركړل سي لكه فرعونيانو ته.

**سوال:** مرجع د ضمير د هي چي ټول مفسران په نهاية ترجمه كوي چېري ذكر سوي نو دا به اضمار قبل ذكر المرجع نه وي؟

**ځواب:** د مرجع د ضمير لفظًا خو نه دی شرط بلكي لفظًا او تضمنًا او حكمًا دري سره كافي دی لفظًا خو ظاهر دی نو جاء زيد وهو راكب على الفرس او تضمنًا نحو اعدلوا هو اقرب للتقوىٰ چي ضمير د هو راجع و عدل ته دی چي اعدلوا مصدر دی او په ضمن كي اعدلوا مذكور دی او حكمًا كما فيما نحن فيه وبيانه ان النبي ﷺ لما قال و كفار قريش ته ويل چي تاسي بعد الموت ژوندي كېږئ، نو ګويا داسي يې ورته وويل چي ستاسي نهاية دوهم ژوند دی فقالوا نه دی نهاية الامر زمونږ دوهم ژوند بلكي نهاية الامر مونږ اول مرګ دی فقط.

**درويش وايي:** چي داسي پوره تفصيل د مرجع د ضمير د هي له خواصو څخه د تفسير ايوبي دی ان شاء الله والله اعلم.

"وما نحن بمنشرين" يعني مبعوثون بعد الموت.

فَأْتُوا بِآبَائِنَا إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿٣٦﴾

تاسي راتګ وكړئ زمونږ پلرونه دا جواب د شرط محذوف دی ای ان كان البعث بعد الموت ممكنًا فأتوا بآبائنا.

**پوه سه:** چي مخاطب په فأتوا كي عليه الصلوة والسلام او مؤمنان دي لان

المؤمنين ايضًا يقولون هذا "ان كنتم صادقين" كه چېري تاسي ياست صادقين په دې خبره كي چي مونږ لره بعث بعد الموت سته.

**پوښتنه:** جواب د ان شرطي څه شي دی؟

**ځواب:** له ماقبل څخه فهمېږي يعني فأتوا بآبائنا.

اَهُمْ خَيْرٌ اَمْ قَوْمُ تُبَّعٍ ۙ

آيا دوی يعني كفار مكه ښه دي په قوت او شوكت كي او په كثرت كي، او كه قوم د تبع خير دی تر دوی.

**پوهه:** چي استفهام لپاره د انكار و بيان د تقرير دی يعني تاسي خبر نه ياست تر قوم د تبع بلكې قوم تبع تر دوی خبر وه، روح البيان وايي چي مراد له تبع څخه بادشاهان د يمن دي چي مشهور په نېز د قريشو كي دی خاص يې په ذكر سره كړی لقرب يمن من مكة دار القريش.

وَّالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ اَهْلَكْنٰهُمْ ۫ اِنَّهُمْ كَانُوْا مُجْرِمِيْنَ ۝

او هغه كسان چي تر قوم تبع دمخه وه من الامم الكافرة لكه عاديان او ثموديان ونحوهم؛ مونږ هلاك كړه ولي چي دوی په تحقيق وه مجرمين ای مشركين، دا بيان د علت د اهلاك د دوی دی.

**فائده:** بعض مفسران وايي چي تبع د يو سړي نوم ؤ چي تبع يې په دې باله چي اتباع يې ډېر وه، او بعض مفسران وايي تبابعه يې ډېر كسان وه چي هر يو يې تبع باله چي يو په بل پسي راتله.

**فائده:** محمد بن اسحاق له ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت كړی دی چي اخير د التبايعة اسعد ابو كرب بن مليك ؤ.

**فائده:** خدای پاك د ذم نسبت د تبع قوم ته وكړی، خاص وده ته يې نه وكړی حيث قال ام قوم تبع، ولي تبع اسلام راوړی او قوم يې تكذيب وكړی تبع ټوله د يمن باشندګان وه او هر يو پر خپل نوبت باچا وه د قبيلې څخه د قحطان په هيئت كي لكه چي بادشاهانو ته د اسلام خليفه وايي او د روميانو هر باچا قيصر بولي او د فارسيانو هر باچا كسری بولي وهكذا كما مر من قبل في هذا التفسير، فمن التبايعة الحارث الرائش وهو ابن همال وهو اول من غزا من ملوك قبيلة حمير من اليمن

واصحاب الغنائم الكثيرة فقسم على الناس و الحارث الرافش ملک على الناس (۱۳۳) سنه، واختلف المفسرين في المراد من التبع ههنا في القرآن نو بعض وايي چي مراد اسعد الحميري دی الذي سار بالجيوش وبني الحيرة مدنية بالكوفة وهو مؤمن صالح، او پر عيسىٰ ﷺ يې ايمان راوړی ؤ، وچون تبع اسعد الحميري از اهل كتاب نعت وصفت رسول اخير الزمان محمد رسول الله ﷺ شنيده بود برسالت وی ايمان آورد وقال شهدت علي احمد انه رسول من الله د مخه تر اسلام (۶۰۰) کاله، وقال السيوطيؒ في الجلالين اول چي په كعبه شريفه يې پوښ واغوستی اسعد الحميري ؤ وهو التبع الاكبر من ثياب الخيرة چي يو قسم لكي لكي كشميرۍ وې چي په يمن كې به جوړيدې، وكان التبع الاكبر مؤمنًا بالاتفاق وقومه كفار، راويان د قصې د تبع اكبر وايي چي تبع اكبر د كعبة الله لوی احترام وكړی او پوښونه يې وركړه او د اهل مكه كه څه هم مشركان وه د هر مالي كومک يې ورسره وكړی وروسته تبع اكبر د يثرب چي د مدينې قديمي نوم دی پر خوا راهي سو، درآن وقت در يثرب كدام بناء وآبادی نه بود واثر شهر وبناء نبود يک چشمه آب بوده تبع اكبر لشكر خود بسر چشمه فرود اوردند ودانشمندان وتاريخ دانان كه با او بودند قريب دو هزار بودند در كتابهای قديم خوانده بودند كه اين زمين بنام يثرب جای هجرت رسول اخر الزمان ومهبط وحی و قرآن است وچهار از اين دو هزار كه عالم تر وفاضل تر بدوند بايک ديگر قرار داد نمودند وبعيت كردند كه ازان بقعه يثرب مفارقت. بر اميد ديدار رسول الله ﷺ آن مقام كنند اگر ايشان خود را از تبع خلاص يابند وزنده بودند خو بسيار خوب باشد والا فرزندان ايشان و نسل ايشان اوزا دريابند وبركات آن ذات بابركات بايشان برسند، اين قصه را علماء مذكور به تبع اكبر رسانيدند وتبع را نيز همين رغبت در دل افتاد تبع اكبر اينجا يک سال در آن جا قيام نمود، وچهار صد قصر برائ علماء مذكور بنا كردند وهر يكی را كنيزک بخريد وازاد كردند ويک يک بنكاح آن علماء دادند، ولباسها و لوازمات خانه بايشان دادند ونفقه يک سال هم بايشان دادند وايشان را وصيت نمود كه آنجا باشيد تا مگر رسول اخير الزمان دريابيد، وخود تبع اكبر از جانب خود يک نامه نوشته كرده ومهر زرين بر آن نهاد وعالمی را ازان علماء سپرد و گفت اگر محمد ﷺ را دريابی اين نامه بدو برسانيد. واگر تو درنيابی بفرزندان خود وصيت كن تا باو رسانند ومضمون مكتوب تبع اكبر

این بود به پیغمبر اخیر الزمان؛ ای برگزیده خداوند جهان بروز شمار شفیع بندگان من که نامم تبع هست بتو ایمان آوردم بآن خداوند که تو بنده و پیغمبر او، بی گواه باش که بر ملت تو ام و در ملت پدر تو ابراهیم خلیل الرحمن ﷺ (اگرچه پیشتر بعیسی ایمان آورده بود کمامر لکن اینجا علماء خبر دادند که دین عیسی ﷺ بآمدن رسول خدا محمد مصطفی ﷺ منسوخ گردند ولهذا الجام ایمان را بطرف محمد مصطفی ﷺ گردانید) اگر تو را بینم یا نه بینم لکن ایمان عبد ذلیل تبع روز قیامت از شفاعت خود فراموش نکنید، بر نامه که مهر زده بود در آن مهر نوشته بود لله الامر جمیعًا من قبل ومن بعد ویومئذ یفرح المؤمنون بنصر الله، عنوان نامه همچنین نوشته کرده الی محمد بن عبدالله ورسوله خاتم النبیین ورسول رب العالمین ﷺ من تبع امانة الله في ید من وضع في یده الی ان یوصل الی صاحبه، یعني رسول الله ﷺ.

**فائده**: تاریخ میگوید که انصار رسول الله ﷺ از نژاد آن صد عالم بودند رفته رفته زمان بسیار سفری شد که آن مکتوب تبع بدست ابو ایوب الانصاري ﷺ از اجداد خود رسیده بود، راوی میگوید که آن روز که رسول الله ﷺ بمدینه تشریف آورد انصار مدینه اختلاف کردند که رسول خدا مهمان کدام خانه باشد رسول الله ﷺ که آن اختلاف انصار دید گفت بگذارید ناقه من مأمور است بهر خانه که مرضی خدا باشد خودا میرساند وآن جا بر زمین میخوابند (یعني چوکېږي) ناقه رسول الله ﷺ بخانه ابو ایوب الانصاري ﷺ آمد و بر زمین بیفتد ابو ایوب اول الامر نامه تبع باو سپرد نمود، نامه رسول الله ﷺ بعلي ؓ داد که بخواند رسول الله ﷺ درنامه سخنهای تبع را بشنیدند اورا دعاء نمود وگفت نعم العبد تبع.

**درویش وایي**: چي دا قصه بعض مفسرینو په ډېر طول سره راوړې ده حتی چي د ډېرو تبایعانو نومان چي بعض کافران وه لکن تبع اکبر په اتفاق سره مؤمن ؤ، درویش ځای د ضرورت راوړی که ما د مفسرانو ټولي خبري ددې قصې رویداد راوړي وای شاید نوري صفحې به ډېري د تفسیر ایوبي اضافه سوي وای.. بیت:

**تاطبع شریفت نپذیرت ملالتی ....... آن به که نامه را بدعاء مختصر کنم**

وَمَا خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا لٰعِبِيْنَ ۝

موږ نه دي پیدا کړي اسمانونه او مځکه او چي په مابین کي د اسمانو او د

مځکي دي (چي کائنات الجو يې بولي لکه وريځ، پيلبو، تنا، تکي وغيرها مما يعلمه الله "لعبين" د ساتېري لپاره (حال دی د خلقنا له ضمير څخه) يعني عبث مو نه دي پيدا کړي بلکې چي انسانان دا شيان دليل وګرځوي پر وجود زموږ او پر کمال قدرت زموږ او پر نورو صفات جليله ؤ زموږ او لپاره د ابتلاء د خلګو.

مَا خَلَقْنٰهُمَآ اِلَّا بِالْحَقِّ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۳۹﴾

او موږ نه دي پيدا کړي دا دوه جنسين (اسمانونه او مځکه) مګر په حق سره يعني لاظهار الحق من التوحيد و وجوب الطاعة تا چي موږ ثواب ورکړو المطيع ته چي مؤمنان دي او عقاب ورکړو و عاصي ته ای الکامل چي کافران دي.

**بوه سه:** چي مراد د عقاب څخه عقاب الابد دی ځکه موږ خاص په کافرانو پوري وګرځاوه. "ولكن اكثرهم لايعلمون" لکن ډېر خلګ په دې حکمت الهي سره نه پوهېږي لسخافة عقولهم او انهماکهم في شهوات الدنيا والاقتداء بالاباء والتكبر والعناد مع الانبياء عليهم السلام الى غير ذالک.

اِنَّ يَوْمَ الْفَصْلِ مِيْقَاتُهُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿۴۰﴾

په تحقيق د فصل په ورځ يعني يوم القيامة لانه يفصل فيه بين الحق والباطل والمحق والمبطل بالجزاء اللائق بهما في هذا اليوم "ميقاتهم" ظرف دی ای وقت حسرتهم وجزائهم، د ټولو مؤمنانو او کافرانو.

يَوْمَ لَا يُغْنِيْ مَوْلًى عَنْ مَّوْلًى شَيْـًٔا وَّلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ ﴿۴۱﴾

بدل دی د يوم الفصل چي نفع نه سي رسولای يو قريب و بل قريب ته که ولي د قرابت وي که ولي د صداقت او اشنايي وي، د هيڅ شي که جلب د منفعت وي او که دفع د ضرر وي. او نه هم ددوی کومک کړل کېږي.

**سوال:** ضمير د جمع وکوم لفظ ته راجع دی؟

**خواب:** ومولى ته راجع دی لانه جميع باعتبار المعنى.

اِلَّا مَنْ رَّحِمَ اللّٰهُ ۭ اِنَّهٗ هُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ﴿۴۲﴾

العائد الى من محذوف ای الا من رحمه الله يا په عفو سره يا په قبول د شفاعت سره وهم المؤمنين ولي دوی يو د بله شفاعت کوي او خدای ﷻ دوی ته د شفاعت

اجازه ورکوي، کریمه، لایشفع الا من اذن الرحمن، په تحقیق خدای غالب دی چي هیڅ طاقت نه لري چي کومک دي وکړي د هغه چا سره چي دده اراده د تعذیب ورته وي چي کافران دي، او مهربان دي یعني پر مؤمنانو چي د شفاعت د شافع اجازه ورته کوي، یا انبیاء علیهم السلام ته یا اولیاء الله ته الی غیر ذالک.

اِنَّ شَجَرَتَ الزَّقُّوْمِ ﴿۴۳﴾ طَعَامُ الْاَثِيْمِ ﴿۴۴﴾

په تحقیق درخته د زقوم طعام دی د ډېر ګناه کار چي مراد ځني کافران دي.

**پوه سه:** چي چونکه درخته خو نه خوړل کېږي نو مراد مېوه ده د هغې درختې، وفي القاموس هذه شجرة في جهنم وثمرها طعام لاهل النار، او په عین المعاني کي وايي هي شجرة في اسفل النار مرتفعة الی اعلاها وما درکة من جهنم الا وفیها غصنها وهي النار نظیر طوبی في الجنة یعني في کل جنة غصنها.

كَالْمُهْلِ ۚ يَغْلِيْ فِي الْبُطُوْنِ ﴿۴۵﴾

"کالمهل" خبر آخر د ان دی بعض مفسرین وايي چي مهل دا دی (یعني خټه بیله د زیت اسوده او بعض وايي چي هر شی د معدنیاتو لکه اوسپنه، جس، صفر، سره زر- سپین زر وغیرها چي په اور ویلي سي مهل یې بولي)

كَغَلْيِ الْحَمِيْمِ ﴿۴۶﴾

لکه جوش کړی شی چي په نس کي د کافر جوش سي، البغوي له ابن عباس څخه روایت کړی دی چي ده وویل قال رسول الله ﷺ ایها الناس اتقوا الله حق تقاته ای خلکو (مراد ځني کافران دي بقرینة ذکر الزقوم لانه طعام الکافر في الجحیم) وبېرېږئ د خدای ﷻ څخه په حق بېرېدو سره یعني ستاسي او د دوږخ تر منځ ژوند حائل وي که چېري یو څاڅکی د زقوم پر مځکه ولوېږي تریخ به کړي پر اهل دنیا عیش ددوی فکیف ممن هو طعامه لیس له طعام غیره.

**درویش وايي:** چي ابو جهل وغیره به ویل چي درخته خو په اور سوځي او محمد (ﷺ) وايي چي شجرة الزقوم په اور کي ولاړه ده او مېوه ددې طعام الاثیم ده، وهذا من غایة جهلهم لان جمیع الحیوانات تعیش في البر او البحر سمندل چي نوم د یو حیوان دی چي غذاء یې د اور سکروټي دي او په اور کي اوسېږي او که یې له اوره راوباسې مړ کېږي لکه ماهي چي له اوبو څخه راوباسې.

خُذُوهُ فَاعْتِلُوهُ إِلَىٰ سَوَاءِ الْجَحِيمِ ﴿٤٧﴾

یعني زبانیه ؤ ته د دوږخ وویل سي د خدای ﷻ له خوا څخه چي ونسئ د غه اثیم یعني کافر "فاعتلواه" او وه یې غور ځوئ قهرًا او کش یې کړئ قهرًا و مابین ته د اور.

ثُمَّ صُبُّوا فَوْقَ رَأْسِهِ مِنْ عَذَابِ الْحَمِيمِ ﴿٤٨﴾

بیا توی کړي سر بېره پر سر دده له عذابه څخه د تودو اوبو یعني ایشولي اوبه چي عین عذاب دی، نو په دې کي غایت مبالغه ده.

ذُقْ إِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيزُ الْكَرِيمُ ﴿٤٩﴾

"ذق" تقدیره قائلین ای خزنة النار جرب یعني ورَه دغه عذاب، ته خو عزیز کریم سړی یې، قال البغوي "مقاتل" وایي: چي خازن النار یضرب الکافر علی رأسه نو سر یې مغزو ته سوری سي، په هغه سري کي د دماغ ماء حمیم ورتوی کړي چي تود والی یې نهایت ته رسېدلی وي بیا اهانةً داسي ورته وو ایي ذق انک الی اخیره، دا اشاره و هغه قول ته د ابو جهل ده چي ده به ویل انا اعز اهل هذا الوادي واکرمهم، یعني د وادي مکه.

**درویش وایي:** چي ویناوي د خزنه ؤ استخفافًا واستهزاءً وتوبیخًا دي، راوي وایي چي ابو جهل و علیه الصلوة والسلام ته وویل مابین جبلي مکه اعز واکرم علی اللہ مني فواللہ ما تستطیع انت ولا ربک ان تفعل بي شیئًا (قسم په خدای چي نه ته او نه ستا خدای کولای سئ چي په ما دي څه وکړي ولي چي اعزد جبلي د مکې یم او اکرم یم.

**درویش وایي:** چي دا طاغي فرعون الامة المحمدیة په داسي ذلت د دوو کم سنه ځوانانو په لاس قتل کړل سو په ورځ د بدر او ډېر اهانت یې وسو او دده سره او ویا کسه نور قتل سوه د بدر څاه ته وغورځول سول.

إِنَّ هَٰذَا مَا كُنْتُمْ بِهِ تَمْتَرُونَ ﴿٥٠﴾

دا عذاب هغه عذاب دی چي په دنیا کي تاسي واست په دې عذاب کي شکمن بلکې انکار مو کاوه، دا قول د خزنة النار کافرانو ته په ورځ د قیامت دی.

**درویش وایي:** الی ههنا تم احوال الاشقیاء، والآن بیان حال الاتقیاء والسعداء فقال عز من قائل:

إِنَّ ٱلْمُتَّقِينَ فِي مَقَامٍ أَمِينٍ ﴿٥١﴾

په تحقيق متقين به د امن په ځاى كي وي "مقام" بعض قراء په ضم د ميم وايي چي مصدر ميمي يې بولي اى اقامة او جمهور قراء يې په فتحه د ميم وايي او موضع اقامة وبين المعنيين تلازم "امين" چي صاحب په امن كي به وي د هر مصيبت او آفت والانتقال والخروج منها.

فِي جَنَّٰتٍ وَعُيُونٍ ﴿٥٢﴾

په باغو كي چي قسم قسم مېوې به پكښې وي ما لاعين رئت ولا اذن سمعت ولا خطر على قلب بشر او عيون يعني جاري اوبه او شيدې جاري عسل جاري شراب جاري چي لاغول فيها ولاهم عنها ينزفون.

يَلْبَسُونَ مِن سُندُسٍ وَإِسْتَبْرَقٍ مُّتَقَٰبِلِينَ ﴿٥٣﴾

دوى به اغوندي له سندس څخه چي د نازكو تارو څخه جوړي سوي وي او د پنډو وريښمو څخه چي سندس يې ظهار چي دا يې بطانه وي، مخامخ په مجالسو كي يعني متحاسد او متباغض نه وي بلكې كه يو جنتي بله خوا ته مخه كوي د هغه بل سير پر راوګرځي چي بېرته سره مخامخ سي وهكذا الى الابد.

كَذَٰلِكَ وَزَوَّجْنَٰهُم بِحُورٍ عِينٍ ﴿٥٤﴾

اى الامر كذالك، اى قربناهم بحور عين وليس من التزويج المصطلح لانه لايقال في التزويج المصطلح زوجت بامرئة يعني مع كلمة الباء بل زوجته امرئة وليس من عقد التزويج لانه لايتعدى بالباء لانه لايقال زوجت ازدواجا بهن، بل يعني دوى فرد وه په حور سره زوج سوه كما تزوج النعل بالنعل يعني يو نعل فرد په بل نعل سره زوج كړه سوه.

**فائده:** الحور النساء النقيات البياض يحار فيهن العين (ستركي پر بريښي) من البياض لهن وصفًا الوانهن، والعين جمع عيناء وهي عظيم العينين؛ قال ابى امامة رضي الله عنه قال رسول الله ﷺ خلق الحور من الزعفران، واخرج البيهقي مثله، وعن زيد بن اسلم رح قال ان الله تبارك لايخلق الحور من تراب انما خلقهن من مسك و كافور و زعفران، او قتادة رح له حبان رح څخه روايت كوي چي ښځي د دنيا چي جنت ته داخلي سي بالاوي په حسن كي پر حور العين، ابن ابى الدنيا رح له انس رض څخه روايت كړى دى قال رسول

الله ﷺ لو ان حوراً ابزق (ناړي تو کړي) في بحر (اى تريخ) لعذب ذالک (شيرين به سي هغه تريخ درياب) دغه رنګه له ابن عباس ؓ څخه روايت دی که يوه حوره مخ ښکاره کړي لأضاء (روښانه به کړي حسن د دې مابين د اسمان او مځکي)

يَدْعُونَ فِيهَا بِكُلِّ فَاكِهَةٍ آمِنِينَ ﴿٥٥﴾

دوی به راغواړي په جنت کي هر قسم مېوه يعني چي د دوی اشتهاء ورته وسي "آمنين" چي دوی بېغمه وي چي دا مېوه به خلاصه سي يعني لکه د دنيا مېوې چي بعض وخت موجودي وي بل وخت پيا نه وي او بې غمه به وي له ضرره څخه لکه د دنيا بعضي مېوې چي پر بعض خلګو بد تاثير کوي.

**درویش وايي:** چي ابن ابی حاتم او ابن جرير له ابن عباس ؓ څخه روايت کړی دی قال ليس في الدنيا مما في الجنة، نسته په دنيا کي د هغو مېوو څخه لکه په جنت کي چي سته مګر صرف نوم يې مثلاً انار په دنيا کي سته او په جنت کي هم سته لکن شراکت يې صرف په نامه کي دی يعني د دنيا انار دومره غټ نه دي لکه د جنت انار نه يې داغسي صاف رنګ دی لکه د جنت د انار او نه يې داغسي خوند او شيريني لکه د جنت د انار، وقس عليه انګور، اينځر، امرت وغيرها.

لَا يَذُوقُونَ فِيهَا الْمَوْتَ إِلَّا الْمَوْتَةَ الْأُولَىٰ ۖ وَوَقَاهُمْ عَذَابَ الْجَحِيمِ ﴿٥٦﴾

نسي څکلای جنتيان په جنت کي مرګ بلکې ژوندي به وي ابداً، مګر نه هغه اول مرګ د دنيا (دا استثناء منقطع ده ولي مرګ د دنيا خو په مرګ کي د آخرت داخل نه دی لان موت الآخرة والجنة معدوم او مرګ د دنيا خو موجود ؤ) او خدای دوی ساتلي دي له عذاب څخه د دوږخ، دا جمله حال ده له فاعل څخه د لايذوقون لکن په تقدير د قد کما هو الشرط لوقوع الماضي حالاً کما بين في النحو.

فَضْلًا مِّن رَّبِّكَ ۚ ذَٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴿٥٧﴾

**پوه سه:** چي فضلاً مفعول مطلق د فعل محذوف دی ای فضلوا فضلاً منه تعالى يعني لاحقاً عليه تعالى، له جابر ؓ څخه روايت دی قال قال رسول الله ﷺ لايدخل احد منکم عمله الجنة (نسي داخلولای يو ستاسي عمل ده و جنت ته) ولا يجيره (او نه پناه ورکولای سي له اور څخه يوه ته ستاسي عمل دده) قالوا ولا

انت (ته هم داغسي يې) قال ولا انا، رواه مسلم "ذالک هو الفوز العظيم" دغه نعمتونه چي په سابقهؤ کي ذکر سوه چي د چا په نصيب سي لويه کاميابي ده، ولي چي فائده پر دغو مذکوره نعمتو د ټولو مکاره څخه بيغمه سو او ټول مطالب عاليه يې په لاس ورغله، اللهم اجعلنا وجميع المؤمنين فائذين بتلک المطالب العالية بمحض فضلک وکرمک يا ارحم الراحمين.

**پوښتنه:** په بل ځای کي د قرآن مجيد راغلي دي "ادخل الجنة بما کنتم تعملون" فکيف التوفيق؟

**ځواب:** نفس دخول د جنت په فضل د خدای ﷻ دی او تقسيم د درجاتو يعني لوړي يا کښته درجې په مناسبت او سبب د اعمالو دي کما هو مذهب اهل السنة والجماعة.

فَإِنَّمَا يَسَّرْنَاهُ بِلِسَانِكَ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ ﴿٥٨﴾

په تحقيق موږ اسانه کړی دی (ای القرآن) "بلسانک" حال من الضمير المنصوب ای متلبسًا بلغتک ای العربية التي هي فوق سائر لغات الدنيا) ددې لپاره چي اهل مکه به پند او فائده څني تر لاسه کړي لانه بلغتهم، دا آيت متصل دی معنًی د هغه آيت سره انا انزلناه في ليلة مبارکة، او د ټوله سورة فذکه ده (يعني حاصل دی)

فَارْتَقِبْ إِنَّهُمْ مُرْتَقِبُونَ ﴿٥٩﴾

جزاء د شرط محذوف ده ای ان لم يتذکروا، نو ته يا محمد (ﷺ) منتظر اوسه چي پر دوی عذابونه راتلونکي دي، دوی منتظر دي ستا و مرګ ته يا پر تا باندي غلبې ته.

**درويش وايي:** چي بحمد الله وحسن توفيقه تفسير د سورة الدخان په اخيري تاريخ کي د رجب الخير په ورځ د جمعې بعد صلوة الجمعة په سنه (١٤٣٢) هجري على مهاجرها صلواته التامة وعلى آله وصحبه الکملة البررة پای ته ورسېدی، وروسته تر دې تفسير د سورة الجاثية په پسې دی ان شاء الله تعالى وها انا في التاريخ المذکور اشرع في تفسير سورة الجاثية ان شاء الله تعالى.

تفسير ايوبي حنفي د نصيراحمد احمدي لخوا سکين او pdf سو. د دعا محتاج احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹.

سورة الجاثية مكية وهي سبع وثلثون اية واربع ركوعات بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

حٰمٓ ﴿۱﴾ تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ﴿۲﴾

**درويش وايي:** چي تفصيل د بيان د مقطعات قرانيه ؤ په اول كي د تفسير د سورة البقرة تېر سو فلانعيده "تنزيل" مبتدا ده "من الله العزيز الحكيم" يې خبر دی، ترجمه: په تدريج سره نزول د كتاب يعني القرآن، وانما قلت په تدريج لان التنزيل چي باب د تفعيل دی يقال لنزول الشيئ تدريجًا بخلاف الانزال فانه النزول دفعةً لكه نزول د تورات والانجيل او ګاهي انزال صفت د قرآن هم راغلی دی لان القرآن انزله جبرئيل من اللوح المحفوظ دفعةً الى السماء الدنيا بامر الله تعالى ثم من هناک انزله جبرئيل على رسول الله ﷺ بواسطة الضرورات والوقائع في زمان رسالته (۲۳) كاله ومعنى العزيز الغالب الذي لايرد قضائه شيئ في السمٰوٰت والارض ومعنى الحكيم هو الذي يفعل ما يفعل بحكمة وفائدة عظيمة ولايفعل العبث اصلاً وانه محال.

اِنَّ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ لَاٰيٰتٍ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۳﴾

په تحقيق په خلق السمٰوٰت (بحذف المضاف) او د محكي دلائل سته پر قدرت عاليه د خدای ؓ او پر وحدانيت د خدای ؓ، كريمه: لو كان فيهما الهة الا الله لفسدتا چي برهان تمانع يې بولي، چي تمام تفصيل يې په شرح العقائد او شرح المقاصد كي للعلامة التفتازاني ؒ موجود دی "للمؤمنين" لپاره د مؤمنانو قيد به لان غير المؤمنين لاينظر الى هذه الآيات بنظر العبرة... بيت:

برگ درختان سبز درنظر هوشيار ...... هر ورقی دفتريست معرفت كردگار

وَفِيْ خَلْقِكُمْ وَمَا يَبُثُّ مِنْ دَآبَّةٍ

او د غه رنګه آيات د قدرت سته ستاسي په پيدا ايښت كي (يعني من نطفة ثم من علقة ثم من مضغة الى ان صار انسانًا، كريمه: فتبارک الله احسن الخالقين) او هغه چي متفرق يې پيدا كړي دي، والدابة كلما يدب على وجه الارض من الحيوانات مع اختلاف صورها واشكالها وكثرة انواعها.

**فائده:** دا كلمه معطوف ده پر مضاف چي خلق دی نه پر مضاف اليه، ولي چي

مضاف او مضاف اليه لکه يوه کلمه نو عطف پر بعض د کلمه لازميږي، سعدي المفتي" وايي چي عطف پر ضمير مجرور چي دلته کم دی بېله اعادې د جاره منع کړی دی سيبويه وجمهور البصريين، واجازه الکوفيون ويونس والاخفش قال ابو حيان وهو الصحيح، فالمعنی علی مختار اهل البصرة وفي خلق ما يبث آه فافهم.

## اٰيٰتٌ لِّقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ ۝

دلائل دي پر وجود د صانع و توحيده وکما صفاته، د هغو کسانو لپاره چي پر انه لا اله الا الله او پر بعث بعد الموت يقين لري بخلاف الکفرة فان علی قلوبهم الران.

## وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ

عطف دی پر خلقکم بالطول والقصر صيفًا و شتاءً والذهاب والمجئ.

## وَمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ مِنَ السَّمَآءِ مِنْ رِّزْقٍ

او هغه چي نازل کړي الله له اسمانه له رزق څخه، نازل د اسمانه خو باران دی لکن چونکه باران سبب دی د موادو ارزاقيه وُ نو ځکه يې رزق نازل وباله.

## فَاَحْيَا بِهِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا

نو يې ژوندی کړه په هغه سره مځکه وروسته تر مرګ.

**يوه سه:** چي حيات د مځکي عبارت دی له نباتاتو څخه او موت د مځکي وچوالی دی له نباتاتو څخه.

## وَتَصْرِيْفِ الرِّيٰحِ اٰيٰتٌ لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ۝

او بدلولو د باد من الشرق والغرب والجنوب والشمال، نښاني دي د هغه قوم لپاره چي عقل لري ای عقل خال عن التعنت والعناد والتعصب والحسد وتقليد الاباء، ای دلائل لوجود الخالق القادر الواحد لاشريک له.

**سوال:** کفار خو هم د ذوی العقول څخه دي؟

**ځواب:** لا بل هم کالانعام بل هم اضل.

**پوښتنه:** په دې آيتو کي خدای پاک يو ځای يوقنون او په بل ځای کي لقوم يعقلون وو ايه سبب يې څه دی؟

**جواب:** قال البيضاوي اختلاف الفواصل الثلاث لتفنن العبارة چي د محسناتو څخه د عربيت دي، والا فالايمان والايقان واحد وهو من ثمرات العقل فان العقل يقتضى الايمان بمتدع السموات والارض وما بينهما.

تِلْكَ ءَايَٰتُ ٱللَّهِ نَتْلُوهَا عَلَيْكَ بِٱلْحَقِّ

يعني دغه آيات المتلوه دلائل قدرته، چي موږ يې تلاوت کوو پر تا باندي "ايات الله" مبتداء او خبر دي "نتلوها عليک" يا خبر ثان ده يا حال ده له ايات الله څخه عامل يې معنوي دی يعني معنى الاشارة په تلک کي کما في قوله تعالى وهذا بعلي شيخا. "بالحق" يعني متلبسة بالحق،

فَبِأَيِّ حَدِيثٍۭ بَعْدَ ٱللَّهِ وَءَايَٰتِهِۦ يُؤْمِنُونَ ۝٦

الفاء جزاء لشرط محذوف ای ان لم تؤمنوا بآيات نو په کومه خبره سره "بعد الله" ای بعد کتاب "وایاتهم" ای دلائل قدرته و وجود وحدته "يؤمنون" دوی ايمان راوړي يعني کفار مکه، والحاصل انهم لايؤمنون اصلاً، او بعض مفسرين وايي چي معنا دې داده چي ان القرآن اخير الكتب المنزلة ومحمد ﷺ اخير رسله عزوجل فان لم يؤمنوا به فبای کتاب بعده يؤمنون لانه لا کتاب بعده ولا نبي بعده ليرشد هم الى الحق. روی عن حذيفة رضي الله عنه قال سمعت رسول الله ﷺ مات رجل من بني اسرائيل من قوم موسى عليه السلام فاذا کان يوم القيامة خدای پاک ملائکه ؤ ته ووايي چي تاسي و ګورئ چي په کتاب العمل کي دده يوه حسنه سته يفوذ بها اليوم، نو ملکي ووايي چي موږ نه وينو په عمل نامه کي دده سوای له دې څخه چي په کتمی کي دده نقش ده لا اله الا الله، خدای پاک ووايي چي داخل يې کړئ جنت ته فقد غفرت له.

**درويش وايي:** چي صدق من قال: به بها نه می بخشد و به بهانه می بخشد.

وَيْلٌ لِّكُلِّ أَفَّاكٍ أَثِيمٍ ۝٧

هلاک دی هر افاک چي ډېر درواغ وايي او کثير الاثم هم وي، راوي وايي چي دا آيت په نضر بن الحارث کي نازل سوی دی چي دا دوه وصفه په کمال سره په ده کي موجود وه.

**سوال:** ويل خو مبتداء ده او لکل آه يې خبر دی او سره دده چي ويل نکره

محضه ده او د نکره محضه ابتدائیه خو نحات روا نه بولي؟

**ځواب:** ویل نکره محضه نه ده بلکې وصف ورسره محذوف دی بقرینة المقام ای ویل عظیم کما قالوا في مثل شر اهر ذاناب، فافهم.

يَسْمَعُ آيَاتِ اللَّهِ تُتْلَىٰ عَلَيْهِ

دا جمله صفت دی د وهم د افاک.

**فائده:** دا صفت یې مضارع راوړی له دې سببه چې سمع د آیات د خدای ج چې تلاوت به یې پرده کېدی همېشه به وه د رسول الله ﷺ له خوا.

**پوهه:** چې تتلی علیه حال دی له آیاتو څخه.

ثُمَّ يُصِرُّ مُسْتَكْبِرًا كَأَن لَّمْ يَسْمَعْهَا ۖ فَبَشِّرْهُ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ

عطف دی پر یسمع او ثم لپاره د استبعاد د اصرار پر کفر بعد سماع الآيات کرات و مرات (مستکبرًا) چې کبر به یې کاوه له ایمان راوړلو څخه.

**فائده:** کان مخفف د مثقل څخه دی اسم یې ضمیر شان محذوف دی ای کانه ای شان دادی چې ده به نه واورېده دغه آیات قرآنیه (فبشره بعذاب الیم) کلمه د فاء لپاره د سببیت ده یعني ما ذکر اولاً سبب دی د بشارت د عذاب الیم.

**فائده:** بشارت خو زېري ته د خوشالی د خبري وایي چې تاثیر د خوشحالی په بشرت کي پیدا سي، نو د عذاب الیم خبر که څه هم د خوشالی خبر نه دی مګر دلته تحکمًا په خبر الحزن کي استعمال کړی چې د غم اثر یې پر بشرت پیدا سي.

وَإِذَا عَلِمَ مِنْ آيَاتِنَا شَيْئًا اتَّخَذَهَا هُزُوًا ۚ أُولَٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ

او کله چې دده علم راسي (عطف دی پر یسمع) پر یو شي زموږ د آیاتو اذا بلغه من القرآن، نو دوی هغه وګڼي، ضمیر مؤنث په "اتخذها" کي راجع دی و شي ته ولي هغه عبارت دی له آیاتو څخه "هزوًا" یعني پسخند، مصدر دی په معنی مهزوبها یعني بیله تفکره مبادرت و استهزاء ته وکړي "اولئک" دغه کل افاک الی اخیره دوی لره دی ذو اهانت عذاب په قبرو کي.

**پوهه:** چې لفظ د کل که څه هم مفرد دی لکن په معنی د جمع دی نو ځکه یې ضمیر د جمع ورته راجع کړی.

مِنْ وَّرَآئِهِمْ جَهَنَّمُ

پوه سه: چي وراء په معنى د جهت دى چي د سړي سره برابر وي كه ترمخ وي او كه ترشاء ولهذا عد من الاضداد، نو دوړخ په مخ كي دى په دې اعتبار چي د كفارو هغه خواته مخ دى او وروسته دى په اعتبار ددې چي وروسته تراجالو ددوى دى.

وَلَا يُغْنِيْ عَنْهُمْ مَّا كَسَبُوْا شَيْئًا

او فائده نه كوي په رفع كي د عذاب هغه شيان چي دوى يې كسب كړى من الاموال والاولاد "شيئا" هيڅ شى له عذاب څخه د خداى ﷻ.

وَّلَا مَا اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَوْلِيَآءَ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ

ولايغني عنهم هغه شيان چي دوى ګرځولي ماسوى له خداى څخه اولياء او دوستان چي يا عبارت د بتانو څخه دي باعتباره د رسيانو څخه چي دوى د هغه په متابعت كفر او شرك مختاره كړى ؤ.

پوه سه: چي جمله د ولايغني الى اخيرها حال آخر ده له ضمير څخه د لهم في اولئک لهم "ولهم عذاب عظيم" دوى لره دى لوى عذاب يعني لايعلم مقداره الا الله په ورځ د قيامت كي حال آخر من الضمير المذكور.

هٰذَا هُدًى وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ رَبِّهِمْ لَهُمْ عَذَابٌ مِّنْ رِّجْزٍ اَلِيْمٌ

دا قرآن هدايت دى، او هغه كسان چي كفر كوي په آياتو سره د رب ددوى، هغو لره عذاب دى له قسم څخه د سخت عذاب چي درد وركونكى به هم وي.

اَللّٰهُ الَّذِيْ سَخَّرَ لَكُمُ الْبَحْرَ

اسم جليل مبتداء موصول مع الصلة يې خبر دى يعني چي خداى ج په خپل قدرت درياب مسخر ګرځولي دى ستا د نفع لپاره (فاللام للنفع كما سيأتي قريبًا) ومعنى التسخير چي سطح د درياب يې بنوى پيدا كړې چي لرګي او خاشې يې پر سر راپورته كوي او په هغه كي غوټې او آب بازي ممكنه ده.

لِتَجْرِيَ الْفُلْكُ فِيْهِ بِاَمْرِهٖ وَلِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ

چي چلېږي او رواني وي په ده كي كښتۍ يا كښتياني (لان لفظ الفلک

مشترک بين الواحد والجمع والفرق تقديري كما مر في التفسير الايوبي) ومعنى بامره بتسخيره "ولتبتغوا" چي تاسي طلب وکړئ په ذريعه د کښتيو من رزقه بالتجارة فيها او الغوص فيها لطلب اللؤلؤ والمرجان، يعني غوټې ووهئ تر مځکې پورې او ملغلرې او مرجان څني راوکاږئ او ښکار د ماهيانو پکښې وکړئ "ولعلكم تشكرون" ولکې تشکروا دا لوی نعمتونه چي په ذريعه د کښتيو يا د غوص يا د ښکارېږي له دريابه تاسي تر لاسه کوئ.

**فائده:** جمله د الله الذي سخر لكم البحر مرتبطه ده بما سبق من آيات قدرته تعالى او په مابين کې جمل معترضه دي.

**وَسَخَّرَ لَكُم مَّا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا مِّنْهُ**

او مسخر يې کړځولي دي ستاسي لپاره، عطف على سخر السابق، هغه مخلوق چي په اسمانو کې دي من شمس وقمر والنجوم والماء والثلج وغيرها. او هغه څه چي په مځکه کې دي من الحيوانات بانواعها النافعة لكم ونبات من الاشجار وغيرها والمعدنيات والعيون والانهار "جميعًا" تاکيد دی يا حال دی يعني نفع يې ټولو وتاسي ته راجع ده "منه" حال دی له ما څخه ای سخرها جميعًا كائنة منه تعالى او يا خبر دی له محذوف څخه ای هي جميعًا منه تعالى.

**إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ**

يعني په دغه مذکوره شيانو کې هر آئينه ډېر آيات او دلائل د قدرت او د وحدت د خدای ستا هغه قوم لره چي فکر وهي په عجائبو کې د صنع د خدای ﷻ، نو هغه ايمان راوړي. البغوي روايت کړی دی چي قال ابن عباس وقتاده ان رجلاً من بني غفار شتم عمر په مکه کې، نو عمر قصد وکړی چي بېنګ يې کړي او جزاء د ښکنځلو ورکړي. فانزل الله تعالى.

**قُل لِّلَّذِينَ آمَنُوا يَغْفِرُوا**

ته ووايه يا محمد (ﷺ) هغه کسانو ته چي ايمان يې راوړی دی چي بخښنه دې وکړي او عفو او صلح دې وکړي.

پوه سه: چي يغفروا که څه هم مضارع دی لکن دلته په معنی د امر دی ای اغفروا.

لِلَّذِينَ لَا يَرْجُونَ أَيَّامَ اللَّهِ لِيَجْزِيَ قَوْمًا بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴿١٤﴾

وهو کسانو ته چي توقع نه لري او نه بېرېږي، ده وقائعه د خدای يا عذابه ولايتوقعون الاوقات التي وقتها لاعدائه ای لنصر المؤمنين عليهم وثوابهم، قال البغوي رح قال القرطبي والسدي نزلت في جميع اصحاب النبي ﷺ من اهل مكة لانهم كانوا في اذى شديد من المشركين قبل ان يؤمروا بقتال (چي دوی يعني مؤمنان نه وه امر سوي په قتال سره د کفارو) نو اصحابو و عليه الصلوة والسلام ته شکايت وکړی فانزل الله هذه الآية، وروسته دا آيت منسوخ سو په اية القتال سره "ليجزي" متعلق بقوله يغفروا "قومًا" يعني يجزي المؤمنين على صبرهم على اذية المشركين، او يا معنی داده چي جزاء ورکړي کامله جزاء، و کافرانو ته بالانتقام في الدنيا، او يا دوارو ډلو ته جزاء ورکړي چي ثواب دی مؤمنانو ته پر صبر باندي او جزاء ورکړي د انتقام و کافرانو ته په اذيت د مؤمنانو "بما كانوا يكسبون" من الخير والشر.

مَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِنَفْسِهِ ۖ وَمَنْ أَسَاءَ فَعَلَيْهَا ۖ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّكُمْ تُرْجَعُونَ ﴿١٥﴾

که څوک عمل صالح وکړي د خپلي فائدې لپاره دی لان نفعه راجع اليه، که څوک بد عمل وکړي ضرر يې و ده ته راجع وي "ومن اساءه" يعني وروسته چي تاسي مستحق وګرځېد است د ثواب يا د عقاب په دنيا کي تاسي به راجع کړه کېږئ و رب ته ستاسي فيجازي كلا منكم بعملكم ان كان خيرًا فخيرًا وان كان شرًا فشرًا.

وَلَقَدْ آتَيْنَا بَنِي إِسْرَائِيلَ الْكِتَابَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ

**پوه سه:** چي کلمه د لام جواب د قسم محذوف دی.

ترجمه: په تحقيق موږ ورکړی ؤ و بني اسرائيلو ته کتاب (اللام للجنس ای جنس الكتاب ای التورات على موسیٰ ؑ والانجيل على عيسیٰ ؑ و زبور على داؤد ؑ لان هؤلاء كلهم كانوا انبياء بني اسرائيل "والحكم" يعني په دوی کي اهل حكم من العلماء والملوک هم وه.

**پوښتنه:** تخصيص د نبوت يې په ذکر سره ولي وکړی؟

**ځواب:** لكثرة الانبياء فيهم.

وَرَزَقْنٰهُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ وَفَضَّلْنٰهُمْ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٦﴾

او موږ دوی ته رزق ورکړی د پاکو شیانو، ای المن والسلوٰی وغیرهما من الاطعمة اللذیذة الحلال "وفضلناهم" موږ تفضیل ورکړی و دوی ته په مراتبو سره د قرب الی الله "علی العالمین" ای عالمی زمانهم لئلا یلزم تفضیلهم علی امة محمد ﷺ، کریمه: کنتم امة اخرجت للناس الآیة، ابن عباس رضی الله عنه وایي چي هیڅ څوک ددوی په زمانه کي اکرم علی الله ولا احب الی الله نه وُ تر دوی.

**سوال:** بني اسرائیلو خو ټولو مراتب د قرب الی الله نه درلودی، نو څرنګه یې ضمیر ټولو بني اسرائیلو ته راجع کړی؟

**ځواب:** ارجاع الضمیر الیهم باعتبار بعضهم وهم الانبیاء علیهم السلام.

**فائده:** له دي آیت څخه دا معلومه سوه چي خواص البشر افضل دی تر خواص د ملکو لان خواص الملائکة داخلون في عالمي زمانهم.

وَاٰتَيْنٰهُمْ بَيِّنٰتٍ مِّنَ الْاَمْرِ ۚ

موږ دوی ته ورکړي وه دلائل واضحه یعني په امورو کي د دین بحیث یحصل لهم بکل مایجب به العلم حتی لهم العلم بمبعث رسول الله ﷺ، کریمه: یعرفونه کما یعرفون ابنائهم.

فَمَا اخْتَلَفُوْٓا اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًاۢ بَيْنَهُمْ ۚ

نو دوی اختلاف نه دی کړی په امر کي د دین او کتاب خپل یا في امر محمد ﷺ، مګر نه وروسته تر دي چي دوی ته راغلی علم په حقیقت حال سره "بغیا بینهم" ای عداوة وحسدًا واتباعًا للهوٰی والشهوات والنفسانیة لا علم مستند الی دلیل کما ان الآئمة الاربعة من مجتهدی امة محمد ﷺ یعني الامام ابو حنیفة، الامام مالک، الامام احمد محمد بن ادریس الشافعي امام احمد بن حنبل رحمهم الله اما ما اختلفوا في فروع الدین طلبًا للحق او استناد په آیت قرآني سره، و ای من عبارته او من دلالته او من اشارته او من اقتضائه کما بین في اصول الفقه، یا په حدیث نبوي سره وایي من اقسامه المختلفة کما بین في اصول الحدیث، وبالجملة لیس الاختلاف بینهم لاتکبرًا ولا عنادًا ولا تعصبًا وهو العبادة القصوی لرب العالمین، والخدمت العلیا للدین المبین.

**تفریع:** لـه دې ځخـه دا معلومـه سوه چې افتـراق د يهودو د علماؤ په عقائدو (۷۱) فرقې ته و افتراق علماء النصارى في اصول الدين الى (۷۲) ډلو وكذا افراق امة محمد ﷺ ايضًا في باب العقائد الى (۷۳) فرقه ليس كلها مستند الى دليل شرعي بل هو باتباع الهوى في مقابلة النصوص القاطعة كالمعتزلة ذهبوا الى بعض العقائد الباطلة زعما منهم ان العقل كاف في كثير من العقائد كعقول الفلاسفة والمجسمة حيث يقولون الموجود لايكون الا جسمًا فالواجب تعالى جسم بناء على مثل المتشابهات القرآنية والحديثية يد الله فوق ايديهم اينما تكونوا فثم وجه الله، يداه مبسوطتان الى غير ذالک او بناء على الحسد والعناد كالروافض والخوارج الى غير ذالک، ولهذا قال رسول الله ﷺ ستفترق امتي (۷۳) فرقة كلهم في النار الا الناجية الى اخير الحديث الذي رواه البخاري وغيره.

إِنَّ رَبَّكَ يَقْضِي بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴿١٧﴾

په تحقيق ستا خداى به حکم وکړي فيصله به وکړي په مابين د دوى په ورځ د قيامت په هغو مسائلو کې چې د دوى پکښې اختلاف وُ من امور الدين بالمواخذة والمجازات.

ثُمَّ جَعَلْنَاكَ عَلَىٰ شَرِيعَةٍ

وروسته بيا مونږ ته وګرځولې يا محمد (ﷺ) على طريقة حقة وصراط مستقيم چې د نورو رسولانو د شرائع سره موافق دى (الا في بعض فروع الدين)

**پوهه:** چې على شريعة مفعول ثان دى د جعلنا.

مِّنَ الْأَمْرِ فَاتَّبِعْهَا وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ ﴿١٨﴾

اى من امر الدين، پس ته متابعت وکړه يا محمد (ﷺ) د هغه شريعت حقة مستقيمة واصله الى رضى الرحمن في الدنيا والآخرة، او ته متابعت مه کوه د خواهشاتو زائغه وُ د هغو کسانو چې دوى نه پوهېږي چې کفار د قريش دي، مظهري وايي چې خطاب خودي و نبي ﷺ ته دى او مراد يې امت دده دى انتهى.

**درويش وايي:** چې مبنى د قول د مظهري په نهي کې شرط امکان وقوعي دى او هغه امکان خو په عليه الصلوة والسلام کې نه وُ نو ځکه يې امت مراد کړى، لکن محققان پر دې مسلک دي چې شرط د نهي امکان ذاتي دى وهو لاينافي الامتناع

الوقوعي بلكې مظهري صراحةً ويلي دي چې خطاب د امت دی او د اهواء تفسير په خپله مظهري چې رؤساء د قريشو به د نبي ﷺ ته ويل ارجع الى دين ابائك فانهم كانوا افضل منك آه، نو دا مخاطبه ددوی پر تقدير بايد رؤساوُ د قريشو او امتيانو د عليه الصلوة والسلام دواړو کړی وای، او مظهري په ترجمه کي د آيت ويلي ای لاتبع امتک، او روح البيان او روح المعاني مخاطب په نهي عليه الصلوة والسلام خو ګرځولی دی دا خبره مسلمه ده چې امت تبعًا داخل دی لکن نه په اصل خطاب ورنه بيا خو بايد داسي ويل سوي وای ولا تتبعوا لكن اجماعًا ثابته ده چې نبي ﷺ چې د يو شي څخه نهي سي امت په طريق اولی نهي دی وهذا هو الدلالة الالتزامية.

إِنَّهُمْ لَن يُغْنُوا عَنكَ مِنَ اللَّهِ شَيْئًا ۚ

دغه کسان چې تا و متابعت ته د دين د آباؤ را بولي، که يې فرضًا متابعت وکړې، نو هرګز نسي دفع کولای له تا څخه "من الله" ای من عذاب الله چې پر متابعت ددوی اهوا فرضًا خدای درکوي "شيئًا" هيڅ شی نه لږ نه ډېر، منصوب دی چې مفعول به دی د لن يغنوا او يا شيئًا مفعول مطلق دی ای شيئًا من الاغناء او کلمه د من لپاره د تبعيض ده ای بعض عذاب الله ومجموع الجملة علت ده نهی له متابعت څخه د اهوا ددوی.

وَإِنَّ الظَّالِمِينَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ ۖ

او بعض مشرکان د مکې دوستان د بعض دي ولي چې شرط د دوستی متجانست په شرک کي دی.

**درويش وايي:** چې مظهري دلته داسي ترجمه کړې ده فلا تتخذ انت منهم اولياء چې صريح مخاطب يې عليه الصلوة والسلام ګرځولی دی او د انت په ضمير سره يې دده مخاطبه تاکيد کړی دی، والله اعلم.

وَاللَّهُ وَلِيُّ الْمُتَّقِينَ ﴿١٩﴾

فاتخذه وليًا بالتقوى واتباع الشريعة الغراء النازلة من السموات العلى.

**فائده:** په دې دوو جملو کي اشاره و دې ته ده چې مشرکان تا ته ضرر نه سي رسولای ولي دوی ظالمان يو د بله سره دوستان دي او خدای ج ولي د متقيانو دی

چي مخکښنه يې ته يې او څو مره د پر فرق دی د دې دوو ولايتو لانه بديهي ده چي د
خدای ولايت قوي بلکې اقوی دی.

هٰذَا بَصَآئِرُ لِلنَّاسِ وَهُدًى وَّرَحْمَةٌ لِّقَوْمٍ يُّوقِنُونَ ۝

هذا ای القرآن او اتباع الشريعة "بصائر" من اسباب البصيرة ای البصيرة في
الدين "للناس" د خلکو لپاره چي خلکو ته لار د فلاح د دارينو وربښيي "وهدی"
او لاربښوونه ده د نجات د ضلالت څخه "ورحمة" او رحمت دی د خدای له خوا د
هغه قوم لپاره چي پر دې يې يقين وي چي دا قرآن د خدای کتاب دی.

اَمْ حَسِبَ الَّذِيْنَ

عطف على هذا بصائر و کلمة ام منقطعة په معنی د بل، همزه لپاره د انکار دی له
داسي حسبان څخه، او يا لپاره د توبيخ دی على ذالک الحسبان او کلمة د بل لپاره د
اضراب ده عن ايقانهم بان القرآن بصائر و هدی يعني انهم لاقنون ذالک.

اجْتَرَحُوا السَّيِّاٰتِ اَنْ نَّجْعَلَهُمْ كَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

چي دوی کسب کوي د کبائرو گنهو، دا چي زه به دوی گرځوم لکه هغه کسان
چي ايمان يې راوړی وي او اعمال صالحه يې هم کړي وي، دا آيت په يو څو نفرو
کي د مشرکانو د مکې نازل سوی دی چي دوی به مؤمنانو ته ويل ان کان
ماتقولون ای البعث بعد الموت حقًا مونږ به تر تاسي بالا يو لکه په دنيا کي چي په
جاه، جلال او اموالو تر تاسي بالا يو.

سَوَآءً مَّحْيَاهُمْ وَمَمَاتُهُمْ ۗ سَآءَ مَا يَحْكُمُوْنَ ۝

برابره ده (دا کلمه بدل ده کالذين آمنوا بدل اشتمال) "محياهم ومماتهم" فاعل
دی لسواء، والضمير ان للموصول الاول وان کان الضميرين للموصول الثاني سواء
حال من الموصول الثاني وضمير الاول فافهم جداً وهذه الجملة مستأنفة والمعنى
المؤمن مؤمن محب الله في الدنيا والآخرة والکافر مبغوض لله في الدنيا والآخرة
"ساء مايحکمون" بد دی حکم د دوی يعني الحکم بالمساوات بين الفريقين.

**درويش وايي:** چي په صحيح حديث کي راغلي القرآن يدلکم على دائکم
(قرآن مبارک دلالت کوي ستاسي پر مرض ستاسي) و دوائکم (او پر دوا د مرض

ستاسي) اما دائكم فالذنوب (ستاسي مرض گنهونه دي، اى على تفاوت درجاتها) اما دوائكم فالاستغفار، واعظم الذنوب الشرك وعلاجه التوحيد، اى كلمة لا اله الا الله (اى اقرارًا باللسان وتصديقًا بالقلب يعني لا كالمنافق يقربها باللسان وينكرها بالقلب، شيخ سعدي قدس سره وايي:

گر کسی وصف او زمن پرسد...... بيدل از بی نشان چه گويد باز

عاشقان کشتگان معشوقند...... بر نيايد ز تشنگان اواز

وَخَلَقَ اللّٰهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ

پيدا کړي دي خدای ج اسمانونه او مځکه بالحق اى متلبسة بالحق اى ليدل على وجوده و وحدته وقدرته وسائر صفاته الكمالية يعني نه دی خلق د علوياتو چي اسمانونه دي مع مافيها من الشمس والقمر والنجوم وغيرها، والسفليات چي مځکه مع ما عليها من الحيوانات والاشجار والنبات وغيرها على سبيل اللهو واللعب متلبسة بالحق المتقضى لانتصار المظلوم من الظالم والتفاوت بين المسئ والمظلم وهذا الانتصار اذا لم يكن في المحيا لابد انيكون في الممات بعد المحشر والبعث.

درويش وايي: وهذا الدليل على قوله ام حسب الذين الى اخيره.

وَلِتُجْزٰى كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿٢٢﴾

عطف دی على قوله بالحق لانه في معنى العلة كالمعطوف عليه، ترجمه: چي جزاء ورکړه سي هر نفس ته که محسن وي او که مسئ په هغه سره چي د کسب کړی وي من خير او شر "وهم لايظلمون" او پر دوی ظلم نه کړه کېږي له جانبه څخه د خدای ج چي يا دي حسنات ورکم کړي يا په سيئاتو کي بالابود راولي، ولي چي خدای ج پر بندگانو ظلم يو پر بل حرام کړځولی دی نو په خپله به ظلم څرنګه کوي؟

مسروق رح د تميم الداري رضی الله عنه حال داسي بيان کړی دی چي ده يو شپه د مقام ابراهيم په نېز لمونځ کاوه ود دې آيت ته چي ورسېدی ام حسب الذين اجترحوا السيئات ان نجعلهم كالذين آمنوا و عملوا الصالحات الآية استغراق ورپيښ سو چي د غه آيت يې تر سهاره پوري په رکوع، قيام، سجده او قعده کي وايه.

درويش وايي: چي په دې مناسبت زه په خپل هجره کي چي نه تر او نه بڼه

راسره سته او دا حجره زما لپاره کاهي حجرة الاحزان وګرځي چي خپل تېر سوي ګنهونه راپياد کړم، او ګاهي دار السرور راته وګرځي چي د خدای پاک عمومي رحم ته خصوصًا پر عمر رسيده خلګو چي عمر يې اته نيوي (۹۸) کاله وي راپياد کړم، نو دا دوه بيته څو واره تکرار کړم:

الهی عبدک العاصی اتاکا ........ مقرًا بالذنوب وقد دعاکا

فان ترحم فانت لـذاک اهل ........ وان تطرد فمن يرحم سواکا

د زړه في الجملة تسلي په وکړم، د تاريخ په پاڼو کي فقير دا قصه ليدلې ده چي يو وخت يو ځوان بنده د خدای چي صاحب الحال ؤ پياده د حج پر لار روان ولاړی، نو د سفر په اوږدو کي يو سپين ږيری عالم هم ورسره ملګری سو يعني چي هغه هم حج بيت الله شريف ته راهي ؤ ځوان په لار کي د شيخ رفيق ډېر خدمت کاوه، دا واسه تر اوبو پوري او د کالو تر پرېولو پوري تر څو ميقات ته ورسېدل، ځوان ژر ژر خپل د تلبيه او دعاګانو ځان فارغه کړی بيا يې د شيخ اوبه او احرامونه ورسم کړه شيخ دوګانه رکعته وکړه لبيک اللهم لبيک آه يې شروع کړی هاتفي اواز يې واورېدی لا لبيک ولا اقبل بالرحمة عليک، ځوان دا اهاتف واورېدی پر هغه کړي خدمت باندي پښېمانه سو، لکن په دې کي د ځوان شک ؤ چي شيخ به څه اورېدلي وي او که نه، نو پوښتنه يې ځني وکړه چي شيخه تا څه واورېده که نه؟ شيخ ورته وويل هو زويه وامي ورېده، نو ځوان ورته وويل چي بالا نو سفر الحج ته ولې دوام ورکوې خو د خدای ﷻ له خوا جواب در کړه سو، سپين ږيري وژړل اوښکي يې راتوی سوې و ځوان ته يې وويل چي اول جواب نه دی بلکې پنځوس (۵۰) واره پر دغه ميقات جواب سوی يم لکن که بل خدای وای نو به مي هغه ته رجوع کړې وای، خدای دی يو خدای چي تر قيامته مي جواب وي مخ نه ځني اړوم، شيخ چي دا اوښکي د مخه توی کړې درياب د رحم په جوش راغلی هاتفي اواز وسو چي ستا پنځوس (۵۰) حجه مقبول سوه او ثواب يې د حج اکبر دی، انه تعالی علی کل شيئ قدير.

## اَفَرَءَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ اِلٰهَهٗ هَوٰىهُ

الفاء للعطف علی محذوف تقديره اتهتم ان تهديهم، نو ستا رايه ده چي هغه څوک چي معبود يې خواهش نفسي يعني د هوا نفساني متابعت لکه عابد چي

معبود کوي خوښ وي.

**پوه سه:** چي اتخذ مع ما عطف عليه يعني واضله الله على علم علقت ارئيت عن العمل فمن يهديه جزائه وهواه مفعول اول لاتخذ والهه مفعول ثان، ذكر البغوي قول سعيد بن الجبير رحمه الله انه كانت العرب يعبدون الحجارة والذهب والفضة يعني الاصنام المتخذة منها فان وجدوا افضل من الاولى رموه وكسروه وعبد الاخر فنزلت هذه الآية، وقال الشعبي رحمه الله انما سمي هوى لانه يهوى صاحبه في النار (نو هوى په معنى د اچولو دى) وقال ابن عباس رضي الله عنه والحسن وقتاده رحمه الله وذالک ان الکافر اتخذوا دينه ما يهويه فلا يهوى شيئا الاركبه لانه لايؤمن بالله ويخافه ولا يحرم ما حرم الله.

وَاَضَلَّهُ اللّٰهُ عَلٰى عِلْمٍ وَّخَتَمَ عَلٰى سَمْعِهٖ وَقَلْبِهٖ وَجَعَلَ عَلٰى بَصَرِهٖ غِشٰوَةً

يعني چي خداى يې په علم ازلي کي په ضلال او فساد استعداد دده جزوي جرود محلقه ضالا، او خداى مهر لګولى ؤ په غوږو دده چي حق يې نه اورېدى او پر زړه دده چي فکر يې په آياتو کي د خداى پر کار نه اچاوه حتى يعرف حقية دين الاسلام مع تائيد بالمعجزات الباهرات، او خداى ګرځولي وه پر سترګو دده پرده چي حق او معجزات يې نه په ليدل.

**پوه سه:** چي د ختم پر سترګو او پر زړه او پر بصر د غشاوة ظاهري معنى نه ده لکون الکفرة سامعين ظاهرًا متفکرين بالقلب رائين بابصار هم لکن چونکه مقصود او حکمة الهى ددې درو قوو او په انسان دا ؤ چي په غوږو سره حق واوري بسمع القبول او په زړه سره تفکر په شان د رسول او دده په امين والي کي فکر وکړي او په سترګو دده و معجزاتو ته په نظر د عبرت وګوري لکن چونکه دغه حواس د حکمت سره ده برابر نه کړه استعمال جعلهم الله تعالى کانهم ناقدين لتلک الحواس.

فَمَنْ يَّهْدِيْهِ مِنْۢ بَعْدِ اللّٰهِ ؕ اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ۝

نو څوک دى چي دوى ته هدايت او د لار حق ښوونه وکړي، استفهام لپاره د انکار دى يعني لا احد ان يهديهم بعد اضلال الله لهم في الازل يعني ازلي ګمراه ته څوک هدايت نسي کولاى که ټول له واعظان ورته جمع سي ''افلا تذكرون'' آيا تاسي فکر نه وهئ، ابن جرير او ابن المنذر د ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت کړى دى چي اهل جاهليت به ويله انما يهلکنا مرور الليل والنهار والشهور والسنين.

وَقَالُوا مَا هِيَ إِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا نَمُوتُ وَنَحْيَا

ويل به كفارو د قريشو نه دى ژوند هيڅ شى يعني التي نحن فيها يعني كه دا حيات چي په موت بدل سي بيا حيوة نسته چي معنا يې انكارؤ د بعث بعد الموت څخه ''نموت ونحيا'' مړو په بعض اوقاتو كي او ژوندي به يو په بعض اوقاتو كي.

**سوال:** د وى خو نموت د مخه كړى وروسته يې نحيا وويل نو داسي نه سوه معلومه چي د وى حيوة بعد الموت نه وايي؟

**ځواب:** لان الواو لمطلق الجمع بلا دلالة على الترتيب والتراخي مثلاً يو سړى داسي ووايي جائني زيد وعمر او سره د دې چي عمر د مخه راغلى وي دا تركيب صحيح دى.

وَمَا يُهْلِكُنَا إِلَّا الدَّهْرُ

او موږ نه هلاكوي مګر زمانه يعني چي په مرور د زمانو سړى زوړ سي نو مړ سي، چي حاصل د دې قول د دوى انكار دى د واجب صانع العالم څخه.

**فائده:** لفظ د دهر په اصل كي مدة د بقاء عالم د وجود ده الى انقضائه وروسته بيا دا لفظ په هره مده مديده كي استعماليږي بخلاف الزمان فانه يطلق على مطلق المدة قليلة كانت او كثيرة.

وَمَا لَهُمْ بِذَٰلِكَ مِنْ عِلْمٍ

نسته د وى لره پر ما قالوا هيڅ علم، ولي چي علم خو يقين دى يقين خو يا په هدايت سره حاصليږي كالواحد نصف الاثنين والاربعة زوج الى غير ذالك يا په دليل قطعي المقدمات سره ولا شيئ من ذالك عندهم بل الدلائل العقلية والنقلية متواترة بوجود الصانع وان شئت الدلائل العقلية فارجع الى كتب علم الكلام وان شئت الدلائل النقلية فارجع الى علم الكلام المجيد والاحاديث النبوية.

إِنْ هُمْ إِلَّا يَظُنُّونَ ﴿۲۴﴾

نه دي د وى مګر صرف ظن كوي يعني حكم بلا علم وبلا دليل، دا جمله تاكيد د ما سبق ده يعني مالهم به من علم.

وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ

او چي كله تلاوت وكړل سي پر كفارو د مكې د آياتو زموږ چي عبارت د قرآن

څخه دی په داسي حال کي چي واضح الدلالة دي پر خلاف د عقائدو ددوی يعني البعث بعد الموت.

مَّا كَانَ حُجَّتَهُمْ إِلَّآ أَن قَالُوا ائْتُوا بِآبَائِنَآ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴿٢٥﴾

نه دی دليل ددوی هيڅ شی مګر دا چي وايي په ابطال کي د بعث بعد الموت دوی چي تاسي را ژوندي کړئ پلرونه او نيکه ګان زموږ که تاسي رشتيا وايـاست چي بعث بعد الموت سته، شرط مستغن عن الجزاء بما قبله.

**سوال:** قرآن مبارک ددوی باطلو خبرو ته حجت څرنګه وو ايـه مع ان الحجة ما يتركب من المقدمات اليقينية ومقدمات دليلهم باطلة وهمية؟

**ځواب:** حجة يې په زعم ددوی وايـه چي دوی په ځای کي د حجت استعمالاوه مع انه لايلزم من عدم حصول الشي حالاً لكه احياء د آباؤ ددوی امتناعه مطلقًا.

قُلِ اللَّهُ يُحْيِيكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يَجْمَعُكُمْ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَٰمَةِ

وو ايه ته الله تاسي را ژوندي کوي ای وقت شاء، بيا تاسي ته مرګ درکوي اذا اراد كما دلت عليه الحجج، بيرته به مو سره جمع کړي يعني ژوندي به مو کړي لپاره د جزاء په ورځ د قيامت.

**يوه سه:** چي مظهري رح وايي چي لفظ د الی زائد دی.

**درويش وايي:** چي د زيـادت چندان وجه نه ده بلکې عند الضرورة بايد تګ ورته وسي خصوصًا خصوصًا في القرآن لان الحروف الجارة تجيئ بعضها مقام بعض وههنا يمكن ان الى بمعنى اللام ای ليوم القيامة او في يوم القيامة.

لَا رَيْبَ فِيهِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٢٦﴾ ع

هيڅ شک نسته د قيامت په ورځ کي (لانه موعود الله و موعود الله لابد ان يحقق والعقل لايأباه لان من يقدر على الابداء يقدر على الاعادة والحكمة يقتضي المجازات) لكن ډېر خلک چي کفره دي په قدرت د خدای جل جلاله نه پوهېږي لقلة تفكرهم وقصور نظرهم وقياس قدرة الله الكاملة غاية الكمال على قدرتهم النافعة غاية النقصان.

وَلِلَّهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ يَوْمَئِذٍ يَّخْسَرُ الْمُبْطِلُوْنَ ۝

هذا بيان تعميم قدرة الله عزوجل بعد تحقيقها، خدای لره ده بادشاهي د اسمانو او د مځکي، او هغه ورځ چي قائم سي قيامت ظاهر سي خسران د هغو کسانو چي په صدد کي د ابطال د دين الاسلام وه، چي د خسران ظهور يې دا دی چي دوه ورځ ته د کېل سي.

**پوهنه:** چي فقير ترجمه په ظهور د خسران وکړه لان خسرانهم يکون في الدنيا ايضًا.

وَتَرٰى كُلَّ اُمَّةٍ جَاثِيَةً ۫

ته به ووينې ای مخاطب غير معين هر امة "جاثية" پر زنګنو، البغوي رح وايي چي جثى يا جثو پر زنګنو تاسي ته وايي لکه يو مخاصم چي په نېږد د حاکم کښېني په انتظار د قضاء، د امير المؤمنين علي رضي الله عنه روايت دی چي په اول کي د سورة الحج ئې بيان تېر سوی دی، د سلمان فارسي رضي الله عنه څخه روايت دی چي په ورځ کي د قيامت يو ساعت دی چي طول يې لس کاله دی چي پراته وي خلګ په هغه ساعت کي جثات على رکبهم، حتى ابراهيم عليه السلام ناري وهي نفسي لا اسئلک غير نفسي .. بيت:

**بجای که دهشت خورد انبياء ..... تو عذری گناه را چه داری بيا**

او بعض مفسرين وايي چي د کل امة جاثية معنى داده ای مجتمعة من الجثوة وهي الجماعة په صحيح حديث کي راغلي دي چي احمد يې روايت کړی دی له عبد بن ثانيه څخه قال رسول الله ﷺ کاني اراكم بالكرم حول جهنم جاثين، قال الحافظ ابن حجر رح المراد بالكرم المكان العالي الذي عليه محمد ﷺ، سعدی قدس سره ميګويد:

**درآن روز کز فعل پرسند وقول ..... اوالعزم را تن بلرزد زهول.**

كُلُّ اُمَّةٍ تُدْعٰٓى اِلٰى كِتٰبِهَا ۭ اَلْيَوْمَ تُجْزَوْنَ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝

هره ډله بلل کېږي و خپل کتاب ته يعني صحيفه د اعمالو خپل ته کريمه: اقرء كتابك كفى بنفسك اليوم عليك حسيبًا، له انس رض څخه روايت دی عن النبي ﷺ قال الكتب (يعني عملنامې) لاندي تر عرش دي، فاذا كان الموقف (چي پر ځای د حساب ودرېږي خلګ) بعث الله الريح فتطيرها بالايمان والشمائل يعني مؤمنانو ته په راسته لاس کي واقع کېږي او د کفارو دا په چپه لاس کي ورکړه کېږي د هري

عمل نامې په اول کې هغه د مخنې آيت نوشته وي اقرأ كتابك الآية.

"اليوم تجزون آه" صفت ثاني لقوله كل امة كلمه د ما موصوله ده و العائد محذوف اى ما كنتم تعملونه، ترجمه: نن ورځ تاسي ته جزاء در کول کېږي د هغو شيانو يعني هغه عملونه چې تاسي يې عمل کاوه د هغو کارو ان خيراً فخير وان شر فشر.

هٰذَا كِتٰبُنَا

دا زموږ ليکلي کتابونه دي يعني صحيفه د عملو ستاسي چې کرام کاتبين ليکلي دي زموږ په امر، نو چونکه دا عملنامې ،ملکو ليکلي وي د خداى ج په امر نو ځکه يې خداى ج نسبت وځان ته وکړى يعني کتابنا.

يَنْطِقُ عَلَيْكُم بِالْحَقِّ ۚ إِنَّا كُنَّا نَسْتَنسِخُ مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٢٩﴾

اى يشهد عليكم "بالحق" په رشتيا سره بلا زيادة السيئة ولا نقصان الحسنة كريمه: لاظلم اليوم، موږ طلب د کتابت کاوه د کرام کاتبينو څخه د نوشتې د هغو عملونو چې تاسي به کوله، نو کلمه د ما موصوله ده عائد يې محذوف دى "تعملون"

فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ فَيُدْخِلُهُمْ رَبُّهُمْ فِي رَحْمَتِهِ ۚ ذَٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْمُبِينُ ﴿٣٠﴾

کلمة الفاء للتفصيل احوال العباد هر چې هغه کسان دي چې ايمان يې راوړى وي يعني پر وحدانيت د معبود او پر نبوت د نبي الوقت او عملونه د صالحاتو يې هم کړي وي من الفرائض و الواجبات و السنن و المستحبات من الاعمال و الاقوال ،نو داخلوي دوى رب د دوى په خپل رحمت کې چې حاصل د رحمت يې جنت دى (اى على تفاوت اعمال العمال) "ذالک هو الفوز المبين" دغه دخول د رحمت کاميابي ده ښکاره.

وَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا أَفَلَمْ تَكُنْ آيَاتِي تُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ

او هر چې هغه کسان دي چې په دنيا کې يې کفر کاوه يعني فيقال لهم، آيا نه وه آيات زما په کتب منزلو کې چې تلاوت يې کېدى تاسي ته.

**پوه سه:** چې همزه لپاره د انکار دى او انکار د نفي اثبات دى د نفي و کلمة الفاء للعطف على محذوف تقديره الم يأتيكم رسلي فلم تكن تتلى الخ فحذف فيقال لهم و المعطوف عليه للفاء اكتفاءً بالمقصود و اعتماداً على القرائن



Scanned by CamScanner

فَاسْتَكْبَرْتُمْ وَكُنْتُمْ قَوْمًا مُّجْرِمِينَ ۝٣١

تاسي روى گرداني وكړه او تاسي واست چي عادت ستاسي كفر او جرمۇ او د اياتو څخه انكار كما هو عادة بنى نوعكم.

وَإِذَا قِيلَ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ وَالسَّاعَةُ لَا رَيْبَ فِيهَا

اوچي كله وويل سول تاسي ته، عطف على استكبرتم، په تحقيق وعده د خداى ج يعني بعث بعد الموت "حق" يعني كائن لا محالة او قيامت چي دى شک نشته په راتگ كي د هغه، ولي چي په وعده او اخبار كي د خداى ج خلاف محال دى.

قُلْتُمْ مَا نَدْرِي مَا السَّاعَةُ إِنْ نَظُنُّ إِلَّا ظَنًّا وَمَا نَحْنُ بِمُسْتَيْقِنِينَ ۝٣٢

تاسي به ويل ايها الكفار الزنادقة من غاية عتوكم (سركښي ستاسي) چي موږ نه پوهېږو چي ساعت يعني قيامت څه شى دى يعني د تعجب له لاري واياست.

**پوښتنه:** نظن خو بې مصدر ده ظن بل احتمال نه لري نو دا خو استثناء د شي د نفس څخه سوه وهو لايجوز؟

**ځواب:** مفسرين وايي چي اصل كلام داسي ؤ ما نحن بحال من الاحوال الا نظن ظنًا، او بعض مفسرين وايي چي تنكير د ظنًا لپاره د تحقير دى، فالمعنى ان نظن الا ظنًا حقيرًا لان الظن مقول بالتشكيك لان بعض الظنون قريب الى مرتبة العلم وبعض الظنون قريبة الى درجة الوهم.

"وما نحن بمستيقنين" موږ نه يو چي پر ساعت يقين ولرو دا جمله تاكيد د نفي د ظن ده.

وَبَدَا لَهُمْ سَيِّئَاتُ مَا عَمِلُوا

اى ښكاره سوه دوى ده جزاء د سيئاتو (بحذف المضاف) د عملو ددوى په دنيا كي.

**سوال:** ښكاره والى د جزاء د سيئاتو د ماعملوا في الدنيا خو په آخرت كي ده نو بدأ په صيغه د ماضي څه توجيه ده؟

**ځواب:** د مستقبل متيقن الوقوع څخه په قرآن كريم كي ډېر ځايو نه په ماضي سره تعبير راغلى دى لانه بمنزلة الماضي في التحقيق.

وَحَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿٣٣﴾

اى نزل (توجيه التعبير بالماضي قدمر قريبًا) اى جزاء استهزائهم چي دوى په دنيا كي استهزاء كول، او دا هم احتمال سته چي د حاق څخه دي مراد دوږخ وي يعني احاطه وكړه او نازل سو اور د دوږخ پر دوى چي په هغه اور به دوى استهزاء كول يعني انبيا عليهم السلام به يې ذكر ورته وكړى دوى به پسخند په واهه.

**درويش وايي**: چي هغه دوهم احتمال د دې وروسته آيت سره ډېر سمون لري يعني.

وَقِيْلَ الْيَوْمَ نَنْسٰىكُمْ كَمَا نَسِيْتُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا

وويل سي يعني د خداى ﷻ له خوا څخه په واسطه د ملكو، نن ورځ موږ تاسي پرېږدو يعني په عذاب كي د اور لكه د سړي چي يو شى يو ځاى هېر سي هورې پاته سي (نو اطلاق د نسيان مسامحة دى) "كما نسيتم لقاء يومكم هذا" اى كما تركتم ملاقات د دې ورځي د قيامت چي تيارى د دې ورځي لپاره مو نه كاوه په ايمان راوړو سره په دنيا كي.

**پوه سه**: چي اضافت د لقاء و يوم ته اضافت دى و ظرف ته، والحقيقة يوم لقاء ربكم في هذا اليوم او يوم لقاء جزاء اعمالكم في هذا اليوم.

وَمَاْوٰىكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ﴿٣٤﴾

ځاى ستاسي د قرار اور دى، نسته ستاسي كومك كونكي چي له دې عذابه مو خلاص كړي، نه ستاسي بتان چي جمادات دي او نه انبياء عليهم السلام چي ستاسي شفاعت دي وكړي او نه ملائكه وغير ذالك.

**فائده**: دا دوې جملې يا عطف دي پر مقول د قيل يا حال دي له مفعول څخه د ننساكم.

ذٰلِكُمْ بِاَنَّكُمُ اتَّخَذْتُمْ اٰيٰتِ اللّٰهِ هُزُوًا

دا ترك ستاسي په عذاب مؤبد كي "بانكم" په دې سبب دى چي تاسي اتخذتم ايات الله "هزوًا" مصدر دى په معنى د مهزو به دى يعني تاسي به په هغو آيتو د قرآن چي بيان د دوږخ به پكښې ؤ پسخند واهه او فكر مو نه پكښې واهه او سره د دې چي راوړونكى د قرآن يعني النبي ﷺ مؤيد بالمعجزات الباهرات ؤ.

وَغَرَّتْكُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا ۚ فَالْيَوْمَ لَا يُخْرَجُوْنَ مِنْهَا وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُوْنَ ﴿۳۵﴾

او تاسي غولولي واست ژوند د دنيا او شهوات د دنيا او مال او منال د دنيا حتى شيطان غرور په زړو کي دراچولی ؤ چي بل ژوند نسته، نو نن ورځ نه خارج کېږي دوی له اور څخه "ولاهم يستعتبون" الاستعتاب الاسترضاء يعني نه طلب د رضى د خدای اوس يعني يوم القيامة، دوی دي اوس خدای ج راضي کړي په توبه سره ولي وخت د توبې تېر سو اوس وخت د جزاء دی، وفي الحديث قال رسول الله ﷺ لا بعد الموت من مستعتب يعني ليس بعد الموت نسته وروسته تر مرګ رضا د خدای ج طلبونکي لانها بالاعمال وقد انقضت زمانها تېره سوه زمانه د عملو.

فَلِلّٰهِ الْحَمْدُ رَبِّ السَّمٰوٰتِ وَرَبِّ الْاَرْضِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۳۶﴾

خدای لره حمد دی چي وفا يې په وعده د مؤمنين او مکذبينو سره وکړه "رب السموات" بدل دی د لفظ الله څخه يعني چي خالق او مالک د اسمانو دی او چي مالک او خالق دی د مځکي (يعني مع ما عليها و ما فيها) "رب العالمين" تعميم دی وروسته تر تخصيص.

**فائده:** لفظ د رب يې مقرر راوړی لان ربوبيته تعالى لكل شيئ نعمة مستقلة دالة على كمال قدرته تعالى وذكر العاطف بين السموات والارض لتغاير ما بينهما، وترک العاطف في رب العالمين لان السموات والارض معظم افراد العالم نو ګويا سموات والارض عين عالمين دي.

وَلَهُ الْكِبْرِيَآءُ فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۪ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿۳۷﴾

او ده لپاره کبرياء يعني اثار د غاية عظمت او د نهايت قدرت د ده سته په اسمانو کي من الشمس والقمر والنجوم وغيرها او په مځکه کي من الحيوانات والاشجار والنباتات وغير ذالک مما لا يعلم جميعًا الا الله "وهو العزيز" خدای دی غالب پر ما اراده څوک يې مانع د مشيت او ارادې نسي کېدای "الحكيم" په هر شي کي حکمت لري او عبث کار نه کوي.

**درويش وايي:** چي بحمده تعالى وحسن توفيقه تفسير د سورة الجاثية په تفسير ايوبي كي پر څلور بجې د ماپښين د ورځي د جمعې مباركي پر لس د شعبان المبارک سنه (۱۴۳۲) هـ ق پای ته ورسېدی ومع ذالک جزء ۲۵ اليه يرد هم پايته ورسېده، وروسته سورة الاحقاف شروع كېږي ان شاء الله العزيز ومع ذالک پاره او جزء ۲۶ حم شروع كړه كېږي.

**درويش وايي:** چي فقير په دې تفسير فخر نه كوم لانه قد ورد في الحديث الصحيح ان الله قد يؤيد هذا الدين بالرجل الفاجر فلعل اكون ذالک الرجل الفاجر، لكن دا وايم:... كه فاسق يم كه فاجريم ... پر تفسير باندي مين يم

روز محشر هر كه آيد تصوير جانان دربغل
من نيز حاضر ميشويم تفسير قرآن دربغل

يا الله يا الله يا الله هذا التفسير منک واليک، يوه لويه رابطه په دې تفسير كي فقير د سيد المرسلين شفيع المذنبين ﷺ لري چي هر ځای چي د رسول كريم ﷺ ذكر په اوږدو كي د دې تفسير راغلی دی په پوره ﷺ سره فقير بدرګه كړی دی يعني په اشاره د ﷺ يا صلعم يې كفايت نه دی كړی، اميد د فقير دادی چي امكان لري چي دا به د فقير سبب د شفاعت د شفيع المذنبين ﷺ وګرځي.

ع:... با كريمان كارها دشوار نيست

او په صحيح حديث كي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام وويل: من صلى علي (كه چا درود ووايه پر ما په يو كتاب كي) لايزال الملائكة يستغفرون له ما دام اسمي في ذالک الكتاب (هميشه به ملائكه طلب د بخښني كوي د خدای ﷻ څخه د دغه مصلي لپاره تر هغو چي نوم زما په هغه كتاب كي وي)

اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ النَّبِيِّ الْاُمِّيِّ وَعَلٰى آلِهٖ وَصَحْبِهٖ وَسَلِّمْ

تفسير ايوبي حنفي د نصيراحمد احمدي لخوا سكين او
pdf سو. د دعا محتاج احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

بسم الله الرحمن الرحيم

# الجزء السادس والعشرون

حم ٢٦

# تفسير الولي حنفي

حضرت مولانا محمد عبيد الله الأمين

الحنفي النقشبندي القندهاري

مكتبة القراءة والتجويد

كاسي رود كوئته بلوچستان

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى سَيِّدِ الْمُرْسَلِيْنَ وَعَلٰى اٰلِهٖ وَصَحْبِهٖ اَجْمَعِيْنَ.

اما بعد: درویش وایي چي که څه هم د جزء (۲۵) تفسیر په خیر او عافیت سره پای ته ورسېدی، لکن فقیر ابتداء د تفسیر د جزء (۲۶) وځنډاوه و ورځي ته د یکشنبې تبرکًا یخلق الله عزوجل چي ده ابتداء د خلق الارض والسماء د احد له ورځي څخه شروع کړې ؤ، نو اوس ورځ د یکشنبې د ماپښین درې بجې د شعبان د میاشتي دوولسم تاریخ چي سنه (۱۴۲۳) هجري ده، نو شروع په دې ډول ده.

سُوْرَةُ الْاَحْقَافِ مَكِّيَّةٌ وَهِيَ خَمْسٌ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ وَثَلٰثُوْنَ اٰيَةً وَاَرْبَعُ رُكُوْعَاتٍ

حٰمٓ ۞ تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ۞

**پوه سه:** چي د متشابهات مقطعاتو د قرآن کریم د اختلافاتو بیان په اول کي د تفسیر بقرة تېر سو خو مختاره د اکثر المفسیرین دا ده چي دا اسرار د قرآن عزیز دی بناء علی الوقف اللازم علی قوله تعالی في حقها وما یعلم تأویله الا الله ط، والیه ذهب امام الائمة ابو حنیفة رحمه الله وروسته د آیت ترجمه دا ده چي نزول په تدریج د کتاب یعني چي مشتمل دی پر دې سورة یعني القرآن الکریم له جانبه څخه د الله عزوجل چي هغه غالب دی یعني چي یو شي ته اراده وکړي څوک یې مانع نسي کېدای او خاوند د حکمت په خپل مخلوق کي عبث کار نه کوي یعني که یې څوک په حکمت پوهېږي او که نه پوهېږي.

**پوه سه:** چي تنزیل الکتاب مبتداء ده او من الله العزیز العلیم یې خبر دی په دې کي رد دی پر اهل مکه چي دوی به ویل چي قرآن مجید علیه الصلوة والسلام له ځانه جوړوي، او بعضو به ویل یعلمه بشر، او دا هم احتمال سته چي تنزیل الکتاب آه خبر د مبتداء محذوفي وي ای هذا تنزیل الکتاب آه.

**فائده:** تنزیل چي باب د تفعیل دی لپاره د تدریج په کار کي چي قرآن مبارک هم پر علیه الصلوة والسلام تدریجًا نازل سوی دی په (۲۳) کاله زمانه کي د نبوت

او د قرآن په باب د انزال لفظ هم راغلی دی خو هغه باب د افعال يې بولي چي په عربي کي دفعةً واحدةً وکړل سي هغه ته وايي لکه تورات او انجيل چي دفعةً نازل سوی دی، نو قرآن کريم ته لفظ د انزال استعمالول هم صحيح دی، ولي چي قرآن کريم د لوح محفوظ څخه په يوه وار جبرئيل نسخ کړی دی او په بيت العزة د اول اسمان يې محفوظ ايښی دی، له هغه ځای څخه تدريجًا بيا نازل سوی دی.

مَا خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَآ اِلَّا بِالْحَقِّ وَاَجَلٍ مُّسَمًّى

موږ نه دي پيدا کړي اسمانونه او ځمکه او په منځ کي د اسمانو او ځمکي چي کائنات الجو يې بولي لکه وريځ صاعقه، پيلبو وغيرها الا متلبسًا بالحق چي دليل دی پر وجود د صانع قديم حکيم وعلى البعث بعد الموت لاجل المجازات کما يقتضيه الحکمة "واجل مسمى" ای بتقدير اجل مسمى چي پر دې تقدير به اسمانونه وپای ته ورسيږي.

وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا عَمَّآ اُنْذِرُوْا مُعْرِضُوْنَ ۝

يعني کفار مکة وغيرهم چي دوی په بېرول کېږي.

**پوه سه:** چي که ما مصدريه سي نو معنی يې عن الانذار دی او که ما موصوله سي نو عائد يې محذوف دی تقديره عما انذروا به في القرآن يعني عذاب د ورځي د قيامت اعراض کونکی دی يعني لايتفکرون فيها ولا يستعدون لها چي ايمان يې راوړی وای سره ددې چي ورځ د قيامت خو له ممکناتو څخه ده او واجب الوقوع د سمعًا بشهادة المعجزات على صدق المخبر بها وهو رسول الله ﷺ او د بتانو عبادت کوي مع عدم الدليل النقلي والعقلي على صحة عبادتها بلکې دلائل عقليه والنقلية قائمة على عدم صحت عبادتها لانها جمادات لاتضر لمن لايعبدها ولاينفع لمن يعبدها فکيف يصح عبادتها؟

قُلْ اَرَءَيْتُمْ مَّا تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَرُوْنِيْ مَاذَا خَلَقُوْا مِنَ الْاَرْضِ

ووايه ای محمد ﷺ "ارأيتم" حاصل يې دا دی بالاتفاق تاسي خبر راکړئ، او دا استفهام لپاره د تقرير دی ای حمل المخاطب على الاقرار ليسکته في المناظرة "ما تدعون" ای تعبدون د کلمة د ما موصولة والعائد اليها محذوف کما اشرت اليه "من

دون الله" ماسوی لـه خدای څخه چي مراد څني بتان دي "اروني" تاسي ماتـه وو ایاست (دا تاکید دی د ارأیتم) کوم شی دوی پیدا کړی دی له مځکي څخه.

**پوه سه:** چي من الارض بیان د ما دی او کلمه د ما استفهامیه منصوب محلاً مفعول به د خلقوا.

## اَمْ لَهُمْ شِرْكٌ فِي السَّمٰوٰتِ ۭ

یا دوی لره شراکت سته د خدای سره "في السمٰوات" ای في خلق السمٰوات.

**پوه سه:** چي ام منقطعه دی په معنی د بل آه، کلمه د بل لپاره د انتقال ده، ما ذا خلقوا او همزه یې لپاره د انکار دی.

**درویش وایي:** چي علامه بغدادي د من الارض معنی داسي کړې ده ای من اجزاء الارض ای بقاعها بیا یې دا احتمال راوړی دی چي مراد ما علی وجه الارض حیوان وغیره بتقدیر المضاف بیا یې ویلي دي چي احتمال سته چي د ارض څخه دي مطلق سفلیات مراد وي قال هو اولی، بیا ده السمٰوات اراده د مطلق علویاتو اولی بللې ده، وحاصل الکلام دا دی چي تاسي خبر راکړئ د حال د خپلو خدایانو بعد فکر وترک التعصب چي آیا دا ستاسي عقلونه مني چي ستاسي خدایانو دي یو شی د اجزاء څخه د عـالم سفلي یا علوي پیدا کړی وي یا دي د خدای سره شریکان وي پـه خلق کي، وکل منهما لایقبله عقـل سلیم من التعـصب فکیف تجعلونها شرکاء لله في استحقاق الشرکة في العبادة معه تعالی: مصرع:

این خیال است و محال است و جنون

نصیحت یناسب الانسانیة والمخاطب فیها الرجال دي ظاهرًا.. بیت:

**یاد داری زر و ز زائدن تو ..... خلق خندان بودند وتو گریان**

یعني پلار مور او قریبان به خوشالي کولې، چا به ویل زوی مي پیدا سو چا به ویل ورور مي وزیږیدی، او تا به ژړل چي له شیریني مور څخه مي د نو پیوند په چاره پرې سو کما یدل علیه التجربة چي د کوچني چي دایي یې له مور څخه په چاره پیوند پرې کړي دی لویه بغاره وکړي.

همچنان زی که روز مردن تو خلق گریان باشند وتو خندان.

چي پيدا سوې تا ژړل خلکو خندا کړه
هسي مړ سې چي ته خاندې خلک ژاړي

نو که انسان اراده په داسي ژوند وکړي په طاعت کي د رب العزة چي په ورځ د مرګ ستا خلک يعني مور، پلار او ورونه مثلاً ژاړي څوک وای زوی مي مړ سو څوک وايي ورور مي مړ سو، او ته خاندې ولي ملکو به په زکندن کي پر تا زيری کړی وي چي لاخوف عليک ولاحزن، نه بېره سته پر تا ولي چي د اصحاب الجنة څخه يې او نه غم چي دنيا عبث رابانديې تېره سوه، ولي د دنيا د ژوند حق دې پر ځای کړی وي په ايمان او په طاعت کي کما حقه.. مصرع

دا باران چي پر همه وو مځکو اوري .... مشرف يې کړی ذات د کيميا ولي

اِيْتُوْنِيْ بِكِتٰبٍ مِّنْ قَبْلِ هٰذَآ اَوْ اَثٰرَةٍ مِّنْ عِلْمٍ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۝

تاسي ماته راوړئ يو کتاب من عند الله چي هغه کتاب شرک حق بولي د مخه تر دې قرآن چي ناطق بالتوحيد دی.

**فائده:** په قاموس کي وايي چي اثارة من الاثرة البقية من الشئ ځکه روح البيان يې داسي ترجمه کړې ده ای بقية كائنة من علوم الاولين شاهدة باستحقاقهم (ای الاصنام للعبادة) او روح المعاني بعينه دغه ترجمه کړې ده او تفسير کبير يې هم ورته ترجمه کړې ده وهكذا البيضاوي والقرطبي، او احمد د ابن عباس رض عن النبي ﷺ څخه روايت کړی دی چي مراد له اثارة څخه خط دی (يعني يا يو خط راوړئ) "من علم" يعني له علم څخه د انبياء اولينو چي مستند و وحي قطعي ته وې چي شرک حق دی او هغه معنی مراد ده د مجاهد او عكرمه رح بقولهما او رواية "ان كنتم صادقين" که تاسي ياست ای مشرکانو چي ان الله امرنا بعبادة الاوثان.

**سوال:** ان کنتم آه خو شرط دی جزاء يې څه شی ده؟

**ځواب:** جزاء يې له ماقبل څخه فهمېږي (يعني فأتوني بها) وحاصل الآية چي هيڅ دليل عقلي يا نقلي پر صحت د عبادت د بتانو نسته بلکې عقل او نقل دواړه پر ضد د هغه دلالت کوي، سعدي شيرازي رح وايي:

برگ درختان سبز درنظر هوشيار ..... هر ورقی دفتريست معرفت کردگار

وَمَنْ أَضَلُّ مِمَّنْ يَدْعُوا مِنْ دُونِ اللَّهِ مَنْ لَا يَسْتَجِيبُ لَهُ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَهُمْ عَنْ دُعَائِهِمْ غَافِلُونَ۝

الاستفهام للانكار ای لا احد اضل عطف دی پر مقوله د قول یعني ارئیتم "ممن یدعوا" تر هغه چا چي عبادت کوي او حاجات غواړي، چي قبلونه يې نه سي کولای ولو سمع دعائهم فرضًا "الی یوم القیامة" ای ما دامت الدنیا.

"وهم عن دعآئهم غفلون" الواو للحال ای والحال چي دوی یعني ماسواء الله چي دوی خواست ورته وکړی د دعا څخه ددوی غافله دي، ولي چي معبودات ددوی یا جمادات دي یعني بتان چي لا یسمع ولا یعقل یا عباد الله چي مشغول په خپلو احوالو سره دي لکه عیسیٰ چي نصاری ؤ ابن الله باله، یا عزیر چي یهودان يې ابن الله بولي، یا ملائکه چي بني خزاعة يې بنات الله بولي او عبادت يې کوي.

**سوال:** والی یوم القیامة چي غایة د عدم استجابة د دعاء داسي فهمیږئ چي وروسته تر ورځي د قیامت د هغو معبودانو اسجابة کیږي لان مفهوم الغایة معتبر بالاجماع؟

**ځواب:** مفهوم الغایة هلته معتبر دی چي د صریح منطوق څخه مخالف نه وي وههنا یخالف منطوق قوله تعالی واذا حشر الناس کانوا لهم اعداء الایة.

**درویش وایي:** چي علامه آلوسي ددې سوال په دفع کي ډېري اوږدې خبري کړي دي ولا حاجة الی نقلها لان ما اوردنا کاف في دفعه کما لا یخفیٰ.

وَإِذَا حُشِرَ النَّاسُ كَانُوا لَهُمْ أَعْدَاءً وَكَانُوا بِعِبَادَتِهِمْ كَافِرِينَ۝

او چي حشر کړل سي خلک یعني جمع کړل سي وهو یوم القیامة وي دا بتان چي د کافرانو معبودان وه، نو دې خلکو لره چي ددوی عبادت يې کاوه دښمنان یعني ضرر يې ورسېږي نفع يې نه ور رسېږي لکه د عابدینو چي خیال ؤ یعني چي موږ ته يې نفع را رسېږي، کریمه: هٰؤلاء شفعائنا الی الله "وکانوا بعبادتهم کافرین" او وي دغه بتان په عبادت سره د عابدینو منکر او ددوی تکذیب کوي چي دوی زموږ عبادت کاوه بلکې د شیطان عبادت يې کاوه او بتان خدای پر خبرو راولي تبرئنا الیک ما کانوا ایانا یعبدون الآیة.

**درویش وایي:** چي مفسرینو چي بزبان الحال ورسره زیات کړی لاحاجة الیه،

حاصل د آیت دادی چي د بتانو په دنیا کي عابدینو ته نفع نه رسېږي لکو نها جمادات او په اخرت کي خو یې نفع نسته کما ظنوه بلکې ضرر دی ددوی لقوله تعالی وکانوا بعبادتهم کافرین، بلکې په حدیث شریف کي راغلي دي چي دغه بتان په اور کي ددوی سره یو ځای کړې چي داغ په ورکوي او کما قال "فثبت مضمون قوله تعالی ومن اضل الآیة یعني ددې بتانو عبادت یې کاوه وترکوا عبادة الله یعني علی وجه التوحید مع ان الله سمیع بصیر الخبیر النافع یعني لمن یوحده الضار لاعدائه یعني المشرکین الذین اشرکوا هؤلاء الجمادات معه في العبادة.

وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ

چي تلاوت به وکړل سو پر دوی زموږ د آیتو چي مراد ځني آیتونه د قرآن عظیم الشان دي "بینات" چي واضح الدلالت وه پر حقیقت د هغو آیتو چي د اعجاز دلائل پکښې وه، کریمه: وان کنتم في ریب مما نزلنا علی عبدنا فأتوا بسورة الآیة.
**پوه سه**: چي واذا تتلی آه عطف دی علی قوله تعالی والذین کفروا عما انذروا معرضون.

قَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلْحَقِّ

دا جزاء د اذا ده، ویل به هغه کسانو چي کافران للحق یعني په شان د حق چي مراد ځني آیاتنا دی.
**سوال**: آیات خو دمخه ذکر سوی دی نو په ځای د للحق یې ولي ضمیر راجع و ایاتو ته نه راوړی یعني لها، او دغه رنګه کافران خو هم دمخه ذکر سوي وه، نو الذین کفروا په ځای کي ضمیر د علیهم ولي نه راوړی؟
**ځواب**: اسم ظاهر د حق چي یې راوړی په ځای د ضمیر د لها لپاره د حکم پر آیاتو په حقیت سره او په صدق سره او علیهم ضمیر د ضمیر یې په ځای کي چي الذین کفروا د اعلان د کفر ددوی والانهماک في الضلالة والله اعلم.

لِلْحَقِّ لَمَّا جَاءَهُمْ هَٰذَا سِحْرٌ مُّبِينٌ ۝

یعني بالفور بېله غور کولو په آیاتو کي تا په د سحر بې پر ولګول "هذا" ای القرآن په دې غرض دفع د سوال ده چي دمخه خو قرآن نه دی ذکر سوی بلکې ایاتنا ذکر سوی

دی، نو بايد هذه په تانيث سره ذكر سوی وای، وحاصل الجواب چي اياتنا او قرآن يو شی دی "سحر مبين" دا قرآن سحر دی او سحر والی يې هر چاته ښکاره دی.

اَمْ يَقُوْلُوْنَ افْتَرٰىهُ ۭ قُلْ اِنِ افْتَرَيْتُهٗ فَلَا تَمْلِكُوْنَ لِيْ مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا ۭ

ام منقطعه دی په معنی د بل آه بل يې لپاره د اضراب دی من قولهم انه سحر الی قولهم انه مفترا او همزه لپاره د انكار او تعجيب دی (يعني در تعجب انداختن مردم را از قول ايشان) ته ووايه چي كه ما قرآن افتراء په خدای پوري تړلی وي نو تاسي قادر نه ياست پر دې چي د ما څخه دي دفع كړئ د عذاب څخه د خدای يو شی، نو زه به ولي دلاوري كوم او خپل ځان به وعقاب ته د خدای اماده كوم او سره د دې چي په دې افتراء علی الله كي ماته څه نفع راجع كېږي او نه دفع د ضرر را څخه كېږي ستاسي له خوا څخه، او زه هم سليم العقل يم دې كار ته يعني افتراء علی الله ته به څرنګه دست اندازي كوم.

هُوَ اَعْلَمُ بِمَا تُفِيْضُوْنَ فِيْهِ ۭ كَفٰى بِهٖ شَهِيْدًۢا بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ ۭ

او خدای خبر دی په هغه خبرو چي خوض يعني بحث كوي په هغو خبرو كي كفار د مكې يعني چي تكذيب د آياتو د خدای كوي او سحر "كفى به" الباء زائدة په صله كي د كفى في جميع القرآن لان كفى متعدي بنفسه دی. نو ضمير د به مرفوع محلاً دی فاعل د كفى دی "شهيداً بيني وبينكم" يعني خدای شاهد دی زما پر صدق په دعوی كي د رسالت بسبب خلق المعجزات الباهرات علی يدي، او خدای شاهد دی پر دروا غو ستاسي په نسبت كي سحر او د افتراء پر ما وهو وعيد شديد لهم لجزاء ذالک في الدنيا لكه په بدر كي او په اخيرت كي يعني بالادخال في دار البوار جهنم ذات القرار.

وَهُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ۝

او خدای پاک غفور دی لمن تاب عن الشرک او مهربان هم دی چي تعجيل په عقوبت د كفارو نه كوي مع عظيم جريمتهم.

**فائده:** كل من السحر و الافتراء علی الله كفر لكن الافتراء علی الله اشنع من السحر فتدبر.

**حكايت:** از ابو يزيد البسطامي قدس سره قومي پرسيدند كه قومي ميگويند

که کلید بهشت لا اله الا الله است، بایزید گفت بلی ولکن کلید بی دندان در باز نه کشاید ودندان او چهار است، زبان از دروغ وغیبت وبهتان دور کردن ودل از مکر وخیانت صافی، وشکم از حرام وشبهت خالي وعمل از هوا وبدعت پاک انتهی قوله الجامع للخیرات.

**قُلْ مَا كُنْتُ بِدْعًا مِّنَ الرُّسُلِ وَمَآ أَدْرِىْ مَا يُفْعَلُ بِىْ وَلَا بِكُمْ**

ته ورته ووایه و کفارو ته د مکې چې زه نه یم بدیعًا (یعني نوی) یعني اول د رسولانو چې ما دعوی د رسالت کړې ده چې تر ما دمخه دغه دعوی د رسالت هیڅ چا نه ده کړې بلکې تر ما دمخه خدای د پر رسولان را استولي دي، نو تاسي ولي انکار زما له رسالت څخه کوئ بعد شهادة المعجزات علی صدقي، البته که په نوع کې د انسان دعوی د رسالت چا نه وای کړې نو تاسي ته به تعجب معلومېدای، نو که تاسي زه مفتر بللی حق په جانب واست لکن چونکه خدای چې د انسانو نوع یې په مخکې کې نشر کړې ده د هغې سره یې دعوی د رسالت هم پرانېزلې ده، د دعوی د رسالت زما ځای د انکار او تعجب نه دی البته د محق او مبطل په دې دعوی کې د رسالت په کار دی هغه معجزاتي دي چې د طوق د بشر وتلي دي، نو تاسي ته هیڅ دلیل د انکار نسته فما لکم لاتؤمنون.

**پوه سه:** چې مخکنې آیت کې اول ما نافیه دی او دوهم ما یا موصوله دی منصوب دی په یفعل سره یا استفهامیه دی مرفوع، او کلمه د لا لپاره د تاکید د نفي ده، بعض مفسرین وایي یعني په دنیا کې مثلاً چې نصرت او غلبه به زما نصیب وي او که ستاسي، او بعض مفسرین وایي چې په یوم القیامة کې.

**درویش وایي:** چې دا آیت چې نازل سو مشرکان خوشحاله سوه او وه یې ویل واللات والعزی ما امرنا وامر محمد عند الله الا واحد وماله علینا بفضیلة او که دی مبتدع په دعوی کې د رسالت نه وای نو هغه چا چې دی را استولی ؤ دی به یې خبر کړی وای په ما یفعل به، فانزل الله لیغفر لک الله ما تقدم من ذنبک وما تاخر، نو صحابه کرامو وویل هنیئًا یعني مبارک دی ستا یا نبي الله قد اعطاک الله ما یفعل بک لکن لانعلم یفعل بنا فانزل الله لیدخل الله المؤمنین والمؤمنات جنات

الآية، وايضًا انزل وبشر المؤمنين بان لهم من الله فضلاً كبيرًا فبين الله مايفعل بهم، قال البغوي ؒ وهذا قول انس وقتاده وعكرمه ﷺ.

**درويش وايي:** چې دا قول که څه هم بغوي ؒ و هؤلاء السادات المذكورين ته منسوب کړې دى لکن شايد په اسناد و کې د بغوي ؒ تر هؤلاء السادات پورې يا ضعيف يا انقطاع وي، له دې کبله مخلص خاص د بغوي يعني المظهري داسې ويلي دي، وهذا القول عندي غير مرضي، ولې يو سورت له سورتو څخه غالبًا که مکي وي او که مدني وي په هغه سورت وعده د مؤمنين (يعني وعده د ثواب او د جنت في يوم القيامة) او د وعيد د کافرانو (يعني وعده د عذاب او دوږخ في يوم القيامة د کافرانو سره) دواړه وعد او وعيده موجود دي، نو څرنګه به صحيح وي ولا ادري ما يفعل بي ولا بكم (يعني په اخرت کې)

**پوه سه:** چې اول وحي راغلي دي چې خداى پاک و عليه الصلوة والسلام ته وويل وانذر عشيرتک (يعني بعذاب الله ان لم يؤمنوا) نو له دې آية څخه خو صراحةً دا معلومه سوه چې و عليه الصلوة والسلام ته خو حال د کافرانو په قيامت کې معلوم وُ او هم په دغه سورت کې راغلي دي وهذا كتاب لسانًا عربيًا لينذر الذين ظلموا (اى كفروا) وبشر المحسنين، نو له دې آيت څخه هم دا معلومه سوه چې عليه الصلوة والسلام د کافرانو او د مؤمنانو په ورځ د قيامت معلوم وُ (يعني په نزول د دې آيت د قرآن) وايضًا قال الله عزوجل ان الذين قالوا ربنا الله ثم استقاموا فلا خوف عليهم ولاهم يحزنون، اولئک اصحاب الجنة الآية، يعني چې وروسته بيا د کافرانو حال بيان سوى دى اولئک اصحاب النار، نو د دې آيتو د وعد او وعيد په رڼا کې څرنګه ممکنه ده چې عاقبت د مؤمنانو او کافرانو يعني د ورځې د قيامت غير معلوم و عليه الصلوة والسلام ته وي فماذا نقول في جواب هذه الآيات، او پر دې تقدير چې دا حالات د مؤمنانو او د کافرانو په قيامت کې و عليه الصلوة والسلام ته معلومي نه وي خو هغه اعتراض د کافرانو کـما مر، يعني ما امرنا وامر محمد عند الله الا واحدًا ومانرى لک (يا محمد) علينا من فضل فاى فائدة في ترک دين الآباء واتباع الرسل.

**درويش وايي:** چې هغه خبره چې بعض مفسرينو کړې ده لپاره د تصحيح د

احتمال د ورځي د قيامت په آيت کي د وما ادري آه (اى تفصيلاً) يعني چي د مؤمنانو په جنت کي کوم قسم قسم ميوې سته او څو مره حوري او غلمان سته او په دوږخ کي څونه لړمان او ماران او شجرة الزقوم سته الى غير ذالک فلايدفع سوال الکافرين ما امرنا وامر محمد آه کما لايخفى.

**درويش وايي:** چي دد ې آيت وما ادري ما يفعل آه روح البيان يو ډېر زيبا او په زړه پوري تفصيل کړى دى، دى وايي وما اعلم اى شيئ يصيبنا فيما يستقبل من الزمان والى ما يصير امرنا وامرکم في الدنيا، ولي چي بعض انبياء عليهم السلام قد کان سالمًا من المحن ومنهم من يمتحن بالهجرة من الوطن ومنهم يبتلوا بانواع الفتن وکذالک امم الانبياء في الدنيا منهم من اهلک بالخسف ومنهم من هلک بالقذف بالحجارة وکذا بالمسخ بالقردة والخنازير، ومنهم هلکوا بالريح ومنهم بصيحة جبرئيل ؑ ومنهم من هلکوا بالغرق الى غير ذالک ثم عرفه الله (اى النبي ﷺ) حاله بالهجرة من مکة الى المدينة وعلمه بالعصمة من الناس، واخبره ان دينه يظهر على الاديان کلها ويسلطه على اعدائه الى غير ذالک انتهى.

**پوښتنه:** البغوي ؒ په خپل سند سره د خارجة بن يزيد څخه روايت کړى دى چي ده وويل ام العلاء الارية چي څه وخت چي مهاجرين د مکي مکرمي مديني منورې ته راغله (نو چونکه مهاجرينو نه کور درلودى نه ؤ وده، نو په امر د عليه الصلوة والسلام انصارو ؓ قرعه کشي وکړه پر سکنى وغير ذالک د مهاجرينو چي دى په هغه زمانه کي اخوة ويل کېدى يعني وروروَلي) نو زموږ په قرعه کي عثمان بن مظعون ؓ په برخه سو في السکنى يعني وغيرها من الامور الضرورية، څو زمانه وروسته عثمان بن مظعون ؓ مريض سو، دا وايي چي موږ يې د دوا وغيره دده ډېر حسب الطاقة خدمت وکړى اخير الامر داعي الاجل ورسېدى وفات سو، عليه الصلوة والسلام دده له وفات څخه خبر سوى ؤ نو زموږ کورته راغلى ام العلاء ؓ وايي چي زه هم ورغلم ما داسي وويل رحمة الله عليک ابا السائب (چي د عثمان بن مظعون ؓ کنيت ؤ) شهادتي (يعني زه شاهدي اداء کوم چي) اکرمک الله، فقال النبي ﷺ ما يدريک ان الله قد اکرمه قلت لا والله لا ادري (قسم په خداى دى چي زه په اکرام د خداى ده لره نه يم خبره) فقال رسول الله ﷺ اما هو فقد اتاه اليقين (اى الموت) من ربه واني لارجوا له الخير (زما اميد دى

چي ده ته به خداى خير ورکړي) والله ما ادري و انا رسول الله ما يفعل بي ولابکم، ام العلاء وايي چي فوالله لا ازکی احدًا بعده ابدًا، دا وايي چي څو ورځي وروسته ما عثمان په خوب وليدی چي يوه چينه د جاري اوبو يې درلوده، نو خوب مي وعليه الصلوة والسلام ته ووايه، فقال ذالک عمله، نو حاصل د سوال دادی چي د دې حديث په ښکاره طور معلوميږي چي قول د هغه چي وايي معنی د آيت متلوه يعني ما ادري ما يفعل بي ولا بکم سره مراد د احوال د يوم القيامة ده والا فما معنی هذا الحديث؟

الجواب: معنی د دې حديث داده انه لايجوز الحکم قطعًا علی شخص معين لکه عثمان بن مظعون بالنجات والاکرام عند الله او العذاب عند الله في يوم القيامة لانه ادعاء د علم الغيب ده ولا علم بالبواطن والسرائر الا لله سبحانه وتعالی، او قبلاً چي مونږ ويلي وه چي حال د اخرت د مسلمانانو او کافرانو في يوم القيامة په قرآن سره ثابت دی هغه خو دا ؤ چي دا ثابته په قرآن سره ده چي مؤمنان مطلقًا علی الاجمال اهل النجات دي او کافران مطلقًا اهل العذاب دي، ولا منافات بين عدم جواز الحکم بالاکرام عند الله علی شخص معين لانه من الغيب الذي لا يعلم الا الله وبين الحکم علی طائفة المؤمنين والکافرين علی الاطلاق لانه ثابت بالقرآن، وح ءٍ المراد في هذا الحديث بقول النبي ﷺ وما ادري وانا رسول الله ما يفعل بي ولا بکم في جزاء کل عمل مخصوص وانما قال ذالک مبالغة في سد دعوی علم الغيب، ولا يجوز مثل هذا التأويل في الآية المتلوه يعني وما ادري ما يفعل بي ولابکم لان الحکم هنالک مردد بين الذات الانور ﷺ وبين ذوات الخبيثة للکفرة فان کان حال يوم القيامة فهو معلوم بالقرآن فما معنی النفي بخلاف احوال الدنيا کما مر نقلاً من روح البيان.

**سوال:** احوال د دنيا خو هم په قرآن سره ثابت وه قال الله انا لننصر رسلنا الآية؟

**ځواب:** دا خو يو شخصي حکم د دنيا دی مقصود په لا ادري ما يفعل بي نفي جميع احوال د دنيا دي فافهم.

**درويش وايي:** چي والکلام في تفسير الآية المذکورة وان افضی الی التطويل لکن د شکوکو او د شبهاتو قمع او قلع من کل الوجوه وسوه ان شاء الله العزيز بتوفيق الملک العزيز.

اِنْ اَتَّبِعُ اِلَّا مَا يُوْحٰٓى اِلَيَّ وَمَآ اَنَا اِلَّا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿٩﴾

زه متابعت نه کوم مګر نه د هغه شي چي ماته يې وحي کړه سوي دي (يعني له جانبه څخه د خداى ﷻ) چي قرآن مبارک دى يعني لا اترکه ابدًا.

شان نزول: د مکې کفارو اراده درلوده له رسول الله ﷺ څخه چي ته زموږ د دين متابعت وکړه او دوى طمع وعليه الصلوة والسلام ته ورکول د جمع د اموال کثيره دده لپاره چي اغنى الناس به په مکه کي دى وي او په نکاح ورکولو د ډېرو لونو خپل بلا سوق مهر، او دى ﷺ به يې ډېر ازاراوه او بېراوه به يې پر ترک د اتباع د دوى د دين، نو مقتضى د مخ د آيت او ددې آيت داده چي عليه الصلوة والسلام دوى ته خبر ورکړى چي انه لا يطمعهم ولا يخافهم کما قالوا، او دا يې ورته وويل چي تاسي قدرت نه لرئ پر هغه شي چي تاسي يې اراده وکړئ (يا نفع يا ضرر وماته) بل النفع والضرر کلاهما من الله يحکم ما يشاء ويحکم ما يريد فمعنى الآية السابقة لا ادري ما يفعل ولا بکم من النصر والهزيمة يعني ترک النصر چي شکست ورته وايي وانا لا اتبعکم على شيئ من التقادير بلکې ان اتبع الآية، بيضاوي په شان نزول کي د آيت متلوه داسي ويلي دي چي آيت جواب د هغه غوښتني د کافرانو د مکې دى چي ته موږ ته اخبار د هغه وکړه چي تا ته يې وحي نه وي کړه سوي.

**درويش وايي:** چي دا شان نزول غير مرضي دى ولي دوى په غيب څه پوهېد له البته که ددوى مراد دا وي چي موږ ته قصه د روستم او اسفنديار وکړه چي تا ته يې وحي نه دي کړه سوي او دوى دا قصه د تاريخ د لاري او رېدلي وه لکان لقول البيضاوي وجه فافهم. او بعض مفسران وايي چي بعض مسلمانان د ژر خلاص والي له ازاره څخه د کفارو تعيين د تاريخ غوښتنى وبه قال البغوي ، او بعض مفسرين وايي لما اشتد البلاء بالمسلمين في مکة نو عليه الصلوة والسلام چي دى په مکه کي ؤ خوب يې ليدى چي يوې مځکي ته چي اکثره يې ښره وه او د خورما درختي هم پکښې وې چي ته به دغي مځکي ته هجرت کوې فقال له اصحابه متى تهاجر فسکت ونزل ان اتبع الا ما يوحى الي، کذا قال ابن عباس.

**فائده:** علم بالغيب مختص دى بالذات په خداى ﷻ پورې، واما اخبار الانبياء عليهم السلام والاولياء رحمهم الله فبواسطة الوحي والالهام، ومن هذا القبيل اخباره عليه

الصلوة والسلام عن اشراط الساعة وما يظهر في اخير الزمان من غلبة البدع والاهواء كما في كتب الآحاديث الشريفة، وكذا اخباره ﷺ لاصحابه اول من يدخل من هذا الباب رجل من اهل الجنة (نو اصحابو تولو و هغې دروازې ته سترګې نيولې وې) چې عبد الله بن سلام ﷺ داخل سو ، نو بعض صحابه كرام ورولاړېسوه نو عبد الله بن سلام ؓ يې په ما قال سره خبر كړى او اصحابو ؓ ده ته وويل كه موږ خبر كړې په اوثق عمل سره خپل چې ته اميد ورته لرې، ده ورته وويل چې زه ضعيف يم وان اوثق ما ارجوه سلامة الصدر (يعني من النفاق والشكوك) او بل ترک ما لا يعنيني (او بل هغه زه نه كوم چې هغه زما په بښه نه راځي) ومثل هذا الالهام ما نقل عن سيد الطائفة الجنيد البغدادي قدس سره، دى وايي چې ما ته زما ماما وويل يعني السري السقطي ؒ چې تكلم على الناس چې سبا خبري يعني وعظ وكړه خلكو ته، جنيد ؒ وايي چې ما خپل ځان قابل د وعظ او تبليغ لائق نه باله، نو ما نبي ﷺ په خوب وليدى چې شپه هم د جمعې وه، ما ته يې وويل چې په ورځ د جمعې خلكو ته وعظ او تبليغ وكړه، فقعد (اى للوعظ) من غدٍ چې ورځ د جمعې وه، دمخه تر دې دروازې ته د ماما يعني السري السقطي ؒ ورغلم چې د خوب قصه ورته وكړم، نو زما د بيان كولو دمخه مې ماما راته وويل: لم تصدقنا (زما تصديق دې نه كاوه يعني چې ما درته وويل چې ته وعظ وكړه) حتى قيل لک يعني من جانب رسول الله ﷺ، نو هغه وُ چې د جمعې په ورځ و تبليغ او وعظ ته په مجمع عظيم كې كښېنستم، نو ډېر په زړه پورې وعظ مې وكړى.

قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ كَانَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ وَكَفَرْتُمْ بِهٖ

ته ووايه يا محمد (ﷺ) وكفارو ته د مكې چې تاسې خبر راكړئ چې ستاسې حال به څه وي، كه وي قرآن له جانب څخه د خداى ؑ ، يعني لكه زه چې درته وايم "وكفرتم به" دا جمله حال ده په تقدير د قد كما هو القانون النحوي في الماضي الواقع حالاً، والتقدير قد كفرتم به ايها المشركون.

وَشَهِدَ شَاهِدٌ مِّنْۢ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ عَلٰى مِثْلِهٖ

"وشهد شاهد" دا جمله هم حال ده په تقدير د قد او شاهدي اداء كړې وه يعني تصديق د قرآن يې كړى وُ "من بني اسرائيل" له بني اسرائيلو څخه، قتاده او

الضحاکؒ وايي چي دا شاهد عبدالله بن سلام بن الحارثؓ د يوسفؑ له اولاد څخه (يعني بالوسائط) يعني يوسف بن يعقوب بن اسحاق بن ابراهيمؑ "عَلٰى مِثْلِه" بعض مفسرين وايي چي لفظ د مثل زائد دی وضمير مثله راجع الی القرآن فالمعنی شهد شاهد علی القرآن يعني انه من عند الله، او يا لفظ د مثل زائد نه دی فالمعنی شهد شاهد علی مثل ما قلتم ايها المشركون يعني ان القرآن من عند الله نه دی ای قبل الاسلام او روح البيان يې هم زائد نه بولي ای مثل القرآن من المعاني المندرجة في التورات من التوحيد والوعد والوعيد والجنة والنار وغير ذالک، فان ذالک الامور التي آمن به عبد اللهؓ في التوراة مثل ما في القرآن بل عينها في الحقيقة.

**درويش وايي:** چي مسروقؒ له دې څخه منکر دی چي نزول ددې آيت دې په عبدالله بن السلامؓ کي وي، وقال (يعني په صريح قسم سره) والله ما نزلت فيه لان سورة آل حم نزلت بمكة او اسلام د عبدالله بن السلامؓ خو په مدينه منوره کي ؤ، ده زياته کړې ده چي دا آيت په دليل ويلو کي د رسول اللهﷺ د خپل قوم سره (چونکه پر مسروقؒ دا سوال وارديدی چي ستا پر تقرير د شهد شاهد من بني اسرائيل څخه نو په دې آيت کي څوک مراد دی؟) ده په جواب کي داسي ويلي دي چي مراد شهادت د موسٰیؑ دی او شهادت د موسٰیؑ ما في التورات من خبر بعثة محمدﷺ علی مثله ای مثل القرآن وهو ما في التورات من الآيات المصدقة للقرآن فآمن موسٰیؑ واستكبرتم يا معشر قريش عن الايمان بمحمدﷺ والقرآن، وجواب الشرط وهو قوله تعالی ان كان من عند الله آه محذوف تقديره فمن اضل منكم او لستم ظالمين انتهی قول مسروق.

**درويش وايي:** چي كه د ايمان د عبدالله بن السلامؓ ټوله قصه راوي کړې وای نو انکار د مسروق به پای ته رسيدلی وای، وتمام قصة داده: روی البخاري والبيهقي عن موسٰی بن عقبة وعن ابن شهاب قال عبدالله بن السلامؓ لما سمعت رسالة محمدﷺ وهو بمكة او ما د خلكو څخه دده نوم او هيئت هغه ټوله د تورات سره برابر وه و علمت انه الذي نتوقع (وهذا منه الايمان من عبداللهؓ في الحقيقة بنبوته) عبدالله بن السلامؓ وايي فكنت مسرًّا كذالک، دا حال ما پټ ساتلی ؤ او پټه خوله وم حتی قدم رسول اللهﷺ نزل معنا في بني عمر بن عوف فاخبرني رجل بقدومه او زه د خورما د درختي په

سر کي وم خورما مي تولوله، او زما عمه خالده بنت الحارث لاندي د خورما تر درختي ناسته وه فلما سمعت بقدوم رسول الله ﷺ نو ما په لوړ اواز الله اکبر ووایه، عمه مي راته وویل والله لو کنت سمعت بموسیٰ بن عمران ما رئیت منک مثل ذالک السرور ای بقدوم محمد ﷺ، عبدالله رضي الله عنه وویل ای عمه هو والله اخو موسیٰ بن عمران وعلی دینه بعث بما بعث به یعني موسیٰ علیه السلام في التوحید واصول الدین فقالت فذاک اذًا قال عبدالله رضي الله عنه ثم خرجت الی رسول الله ﷺ فلما ان رئیت وجهه المبارکة عرفت ان وجهه لیس بوجه کذاب، فاول ما سمعت منه ای من النبي ﷺ قوله یا ایها الناس اطعموا الطعام وافشوا السلام وصلوا الارحام وصلوا باللیل والناس ینام تدخلوا الجنة بسلام.

**درویش وایي:** چي وروسته عبدالله بن السلام رضي الله عنه د خپل ایمان بالغیب پر علیه الصلوة والسلام کمامر د مزید تائید لپاره او د ایمان بالمشاهدة لپاره داسي و علیه الصلوة والسلام ته وویل: یا محمد زه ستا څخه سوال کوم د درو شیانو چي لایعلمهن الا نبي (۱) ما اول اشراط الساعة (څه شی ده اوله علامه د قیامت؟) (۲) و ما اول طعام اهل الجنة (څه شي به اول خورک د جنتیانو وي یعني په جنت کي) (۳) وما ینزع الولد الی ابیه یعني په رنګ کي او الی امه ایضًا په رنګ کي، فقال علیه السلام اخبرني بهن جبرئیل علیه السلام، عبدالله رضي الله عنه ورته وویل جبرئیل علیه السلام خبر درکړی؟ علیه الصلوة والسلام ورته وویل نعم قال عبدالله رضي الله عنه ذالک عدو الیهود من الملائکة اما اول اشراط الساعة فنار تخرج علی الناس من المشرق (ای من المشرق الی المغرب) یعني فتساوق الناس الی جهة المغرب واما اول طعام یاکله اهل الجنة فزیادة کبد حوت (د اینې په زړه کي د ماهي) واذا سبق ماء الرجل ای نطفته ورحم ته د ښځي تر نطفي د ښځي (یعني اول تر انزال سي مني په رحم کي د ښځي قرار ونسي، او وروسته ښځه پر انزال سي نزع الولد، نو ولد د پلار وخوا ته کېږي واذا سبق ماء المرئة نزعت الولد یعني د امور و خوا ته کېږي) فقال عبدالله بن السلام رضي الله عنه اشهد ان لا اله الا الله وانک یا محمد رسول الله، وروسته عبدالله رضي الله عنه کورته ولاړی وامر اهل بیته بالاسلام فامن کل من اقاربه وابناء عمه.

**درویش وایي:** چي اوس مخ پر لور د جواب د انکار د مسروق چي عنقریب تېر سو حاصل د جواب دادی چي مسروق په هغه ایمان د عبدالله بن السلام رضي الله عنه چي هنوز



Scanned by CamScanner

عليه الصلوة والسلام په مکه کې او ده په علاماتو د تورات چې ده په تورات کې ليدلي وې ايمان يې راوړی ؤ، وروسته بالمشافهة په مدينه منوره کې ايمان راوړی، مسروق ته فقط ايمان راوړه په مدينه منوره کې معلوم ؤ نو ځکه يې مذکور سوال ذکر کړی، اوس بيرته د عبدالله بن السلام رض د بقيه قصې پر خوا، وروسته عبدالله رض و عليه الصلوة والسلام ته وويل چې يهودان بنه خبر دي چې زه سيد د دوی يم او ابن سيد هم واعلمهم يعني بالتورات وابن اعلمهم او يهودان داسې قوم دی چې بهتان ويونکې دی، او که دوی زما په اسلام خبر سي پر ما به ستا په مخ کې بهتان ووايي، نو زما دا خوښه ده چې ته ما په يوه خونه کې پټ کړې او د يهودانو مشران راوغواړې زما پوښتنه ځني وکړې، نو عليه الصلوة والسلام هم داغسې وکړه مشرانو د يهودانو چې عبدالله ورښوولي وه راغوښته، نو دوی چې راغله عليه الصلوة والسلام ورته وويل يا معشر اليهود ويلكم اتقوا الله فوالله الذي لا اله الاهو انكم لتعلمون اني رسول الله (يعني د تورات له معلوماتو څخه) ولقد جئتكم بالحق ای بدين الحق فاسلموا، يهودانو ورته وويل چې ستا په نبوت موږ هيڅ خبر نه يو، بيا عليه الصلوة والسلام پوښتنه ځني وکړه چې ای رجل فيكم عبدالله بن السلام (دوی ورته وويل چې اوس خو په موږ کې حاضر نه دی) لكن خيرنا وابن خيرنا وسيدنا وابن سيدنا واعلمنا وابن اعلمنا، عليه الصلوة والسلام چې تاسې ماته وواياست چې که عبدالله بن السلام ايمان راوړي قالوا اعاذه الله من ذالک (خدای دې پناه ورکړي عبدالله چې ايمان به راوړي) قال عليه الصلوة والسلام اخرج اليهم فخرج فقال اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمداً عبده ورسوله، عبدالله رض زياته کړه يا معشر اليهود واتقوا الله واقبلوا ماجائكم به (يعني محمد ﷺ من دين الاسلام) فوالله انكم لتعلمون انه لرسول الله حقًا تجدونه مكتوبًا في التورات عندكم اسمه وصفته (ای مولده ومهجره) عبدالله رض زياته کړه فاني اشهد انه لرسول الله واومن واصدقه واعرفه فقالت اليهود انت اشرنا وابن اشرنا او ډېر نور بهتانونه يې پر وويل، نو عبدالله بن السلام رض و عليه الصلوة والسلام ته وويل هذا الذي يا رسول الله الم اخبركم انهم قوم بهت اهل غدر وكذب وفجور فاظهر الاسلام على رؤس الاشهاد واسلام اهل بيت وامنت عمته ابنة الحارث فحسن اسلامها.

**درویش وايي:** چي دا ؤ تفصيل د ايمان د عبدالله بن السلامؓ او تفصيل د هغه آیت و شهد شاهد من بني اسرائيل الآية بقدر الوسع والطاقة لعبده الذليل الجهول محمد عبيدالله الايوبي غفرله الباري.

فَآمَنَ وَاسْتَكْبَرْتُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ ﴿١٠﴾

نو يو ايمان راوړی (يعني عبدالله بن سلامؓ) او تاسي كبر مختاره كړی د ايمان راوړو څخه يا معشر اليهود، په تحقيق خدایؑ هدايت موصله الى المطلوب نه كوي هغه كسانو ته چي پر ظلم باندي ثابت قدم وي.

**پوښتنه:** افعال د شرط اعني كان من عندالله وكفرتم به وشهد شاهد من بني اسرائيل فامن واستكبرتم كلها مجزوم (يعني يقيني واقع كېده) وقوعها فما معنى د ان فيها وهي تستعمل فيما يشک في وقوعها.

**ځواب:** ان كلمة الواو في الجمل كلها للجمع واستعمل كلمة الشک وهي ان فيها للتوبيخ وايراد المجزوم الوقوع موقع الشک الدلالة انه لايجوز عند العقل السليم الكفر مع كونه من عندالله واستكبار مع اهل العلم يعني عبدالله بن سلام واهل بيته وايمانه واما قوله تعالى ان الله لا يهدي القوم الظالمين فجملة مستانفة.

**درویش وايي:** چي د مسروقؒ د سوال جواب كمامر الكلبيؒ داسي وركړی دی چي سورة الحم كه څه هم مكي دی لكن آيه د ايمان د عبدالله بن سلامؓ مدني دی، اما په امر د رسول اللهﷺ په مكي سورتو كي ايښوول سوی دی، زما په عقيده سابق جواب كمامر ادق دی او د الكلبي جواب اسهل دی والله اعلم.

وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلَّذِينَ آمَنُوا لَوْ كَانَ خَيْرًا مَّا سَبَقُونَا إِلَيْهِ ۚ

او ويل به كافرانو لغاية استكبارهم، عطف على وقال الذين كفروا للحق الآية "للذين آمنوا" اى في حقهم وشانهم "لوكان" يعني دين محمدﷺ يعني كه دين د محمد (ﷺ) خير وای يعني من عندالله، نو مؤمنانو به وړاندي والى نه وای كړی تر موږ د مخه دده و دين ته، اخرج ابن جرير عن قتادةؒ قال، قال ناس من المشركين نحن اعز ونحن خير فلو كان يعني دين محمد ما سبقنا اليه فلان وفلان يعنون فقراء المؤمنين فنزلت هذه الآية، واخرج ابن المنذر عن عون بن ابي شداد قال كانت لعمر بن الخطابؓ

امة اسلمت قبله يقال لها زنين فكان عمر يضربها على اسلامها تا چي بيرته يې كفر ته رد كړي، وكان كفار قريش يقولون لو كان خيرًا كه واى دين محمد خير ما سبقنا اليه زنين، فانزل الله هذه الآية واخرج ابن سعد في الطبقات نحوه وعن الضحاك والحسن، البغوي بناء على نزول الآية السابقة في عبد الله بن سلام انه قال الذين كفروا من اليهود للذين آمنوا من اليهود يعني عبد الله بن السلام واصحابه يعني ابناء عمه و اهل بيته لو كان دين محمد خيرًا ما سبقونا اليه يعني عبد الله بن السلام واصحابه.

## وَإِذْ لَمْ يَهْتَدُوا بِهِ فَسَيَقُولُونَ هَٰذَا إِفْكٌ قَدِيمٌ ﴿١١﴾

هغه وخت چي دوى هدايت نه كړى پيدا په قرآن سره كما اهتدوا به اهل الايمان نو دوى ژر دى چي و وايي چي دا قرآن درواغ دى قديم يعني اختلق له ځانه جوړ كړى دى دا قرآن اهل زمان سابق يا محمد له هغو څخه زده كړى دى.

**سوال:** كلمة د فاء يې ولي راوړه؟

**ځواب:** لپاره د دلالت پر دې چي دا قول يعني يقولون آه سبب دى د ظهور څخه د ضلال او غباوت د دوى كقولهم في باب القرآن اساطير الاولين.

## وَمِنْ قَبْلِهِ كِتَابُ مُوسَىٰ إِمَامًا وَرَحْمَةً

او د مخه تر نزول د قرآن د موسى كتاب يعني تورات چي خلكو اقتداء پسي كوله "ورحمة" او رحمت و د خداى له خوا پر خلكو تا چي دوى فلاح پيدا كړي و خير ته د دارينو.

## وَهَٰذَا كِتَابٌ مُصَدِّقٌ لِسَانًا عَرَبِيًّا لِيُنْذِرَ الَّذِينَ ظَلَمُوا

او دا كتاب اى القرآن الكريم كتاب دى د خداى له خوا څخه تصديق كونكى دى د كتاب د موسى، او يا معنى داده چي تصديق كونكى دى د محمد ﷺ په سبب د اعجاز پر دواړه تقدير صفت د كتاب دى "لسانًا عربيًّا" په لغت د عربو، دا حال دى له ضمير څخه د كتاب په مصدق كي، لكون المبعوث اليهم اولا اقوام العرب وانما قلنا اولا لكون القرآن هدى للناس جميعًا كما جاء في موضع آخر: هدًى للناس "لينذر" اكثره قاريان يې په ياء د غيبت وايي، والضمير اما راجع الى الكتاب او يا الله يا رسول، او بعض قاريان يې په تاء د خطاب وايي اى لتنذر يا

محمد" "الذين ظلموا" چي ظلم يې پر خپلو ځانو کړی وي بالكفر والمعاصي.
**فائده:** حرف جر متعلق دی په مفهوم پوري د هذا کتاب ای انزل لتنذر.

وَبُشْرٰى لِلْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۲﴾

"وبشرى" مصدر دی فعل محذوف ای لتبشر بشرى بقرينة قوله لتنذر "للمحسنين" چي عملونه په احسان سره د خدای کوي كما جاء في الحديث الصحيح الذي رواه البخاري الاحسان ان تعبد الله كانك تراه الحديث.

**فائده:** ظالمان يوازي په مشركانو پوري خاص نه دي بلكې د جملې څخه د ظالمانو يهودان دي چي عزير ابن الله بولي، او نصارى دي چي عيسى ابن الله بولي، او دوی دواړو ډلو تغيير ورکړی دی و ذکر ته د محمد ﷺ او دده و نعوتو ته، په تورات او په انجيل کي د حرفو الكلم عن مواضعه فيكون النبي ﷺ نذيرًا لهؤلاء الطوائف وبشيرًا للذين آمنوا من هؤلاء بجميع الانبياء والكتب المنزلة، او هدايت يې پيدا کړی وي الى الصراط المستقيم.

إِنَّ الَّذِيْنَ قَالُوْا رَبُّنَا اللّٰهُ ثُمَّ اسْتَقَامُوْا فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿۱۳﴾

**پوه سه:** چي په دې آيت کي خدای جمع کړې ده بين التوحيد الذي هو خلاصة العلم واعظم العقائد الاسلامية ومدار جميع الحسنات العملية وبين الاستقامة في الدين التي هي منتهى الاعمال و كلمة ثم للدلالة على تراخي العمل من العلم.

"فلا خوف عليهم" نو هيڅ بېره نسته پر دوی يعني بعد الموت، دا قيد فقير وايه لان الايمان في الحيوة بين الخوف والرجاء، ودرحيوة الدنيا هر چند بخدا نزديكتر ميشود خوف زياده تر ميگردد، لكن بعد الموت د لحوق څخه د هر مكروه درامن ميگردد، كريمه: يَا أَيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ ﴿۲۷﴾ ارْجِعِيْ إِلٰى رَبِّكِ رَاضِيَةً مَّرْضِيَّةً ﴿۲۸﴾ فَادْخُلِيْ فِيْ عِبَادِيْ ﴿۲۹﴾ وَادْخُلِيْ جَنَّتِيْ ﴿۳۰﴾

"ولاهم يحزنون" او نه به دوی غم کوي پر فوات د محبوب په ژوند کي.

**فائده:** كلمه د فاء يعني په فلا خوف آه لتضمن اسم ان يعني الذين قالوا آه معنى لره د شرط.

أُولَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلْجَنَّةِ خَٰلِدِينَ فِيهَا جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴿۱۴﴾

دغه مذكورين كسان ملازمين د جنت دي چي هميشه به وي په جنت كي يعني لايخرجون منها ولايذوقون الموت الا الموتة الاولى، ولا يهرمون او نه يې په مرور د ازمنة غير متناهية و قوة او شباب يې تغيير خوري، ونعيم الجنان لا ممنوعة ولا مقطوعة ابد الابدين، اللهم اجعلنا منهم آمين.

**فائده:** خالدين آه حال دى له ضمير مستتر په اصحاب كي عامل معنى د اشارة ده په اسم الاشاره كي يعني اؤلئك كما في قوله تعالى هذا بعلي شيخًا.

"جزاء بما كانوا يعملون" دا تهوله جزاء او ثواب دى د هغو چي دوى په دنيا كي كړي وه.

**بوه سه:** چي كلمه د ما موصوله ده عائد يې محذوف دى اى يعملونه وذالك لان الدنيا مزرعة الآخيرة.

وَوَصَّيْنَا ٱلْإِنسَٰنَ بِوَٰلِدَيْهِ إِحْسَٰنًا

موږ وصيت كړى دى وانسان ته يعني امر مو كړى دى، مفسرين وايي چي حرف التعريف په الانسان كي لپاره د عهد دى، والمراد به ابو بكر الصديق ﷺ، روى عن ابن عباس رض ان الآية نزلت في ابى بكر رض وهو المروي عن علي رض چي دده مور او پلار دواړه مسلمانان وه او د هيڅ مهاجر مور او پلار دواړه پر اسلام نه دي سره جمع سوي، او بعض مفسرين وايي چي كلمة د لام دي په الانسان كي لپاره د جنس وي كه څه هم نازل په ابوبكر رض كي دى لكن دا خبره د وروسته سياق سره د آيت مناسب نه ده چنانچه وروسته به يې موږ درته وكړو ان شاء الله تعالى "بوالديه" متعلق بمحذوف اى ان يحسن بوالديه وهما ابو قحافة عثمان بن عمر چي د ابوبكر رض پلار ؤ، وام الخير بنت الخيبر بن صخر چي د ابوبكر رض مور وه "احسانًا" كوفي قراء پر وزن د افعال وايي نو نصب مبني دى پر دې چي مفعول مطلق د تحسنوا دى او باقي قاريان حسنًا له باب څخه د مجرد فهو بدل اشتمال دى له بوالديه منصوب محمول دى پر محل د بوالديه ولې چي بو الديه مجرور دى لفظًا.

# حَمَلَتْهُ أُمُّهُ كُرْهًا وَّوَضَعَتْهُ كُرْهًا

چي په حمل کي د مور ؤ ذات کره فهو حال من حملته من ضمير حملت چي امه دی او حملاً ذاكره فهو مصدر په معنی د مشتقة دی "ووضعته كرهًا" چي دا لنګېدل هم ذات كره دی.

**پوه سه**: چي دا دوې جملې معترضه دي لپاره د تعليل د امر بالاحسان، وفيه اشارة الی مزید استحقاق الام الاحسان، قال رسول اللهﷺ (في سؤال من سئل من اصل چي زه د چا سره صله رحمي وکړم؟) صل امک ثم امک ثم امک ثم اباک ثم ادناک فادناک. يا صله رحمي کوئ د نژدې قریب او د نژدې قریب لکه ورور، اکا وغيرهم.

# وَحَمْلُهُ وَفِصٰلُهُ ثَلٰثُوْنَ شَهْرًا

او حمل د ولد يعني په رحم کي د مور او فصال په لغت کي د تي څخه پرې کولو ته وايي، لکن مراد دلته څني رضاع ده يعني تی ورکول دي، تسمية الملزوم باسم اللازم "ثلثون شهرًا" دېرش مياشتي دي.

**پوه سه**: چي حمله و فصاله په تقدير د مضاف مبتداء ده او ثلثون شهرًا يې خبر دی، والتقدير مدة (دا مضاف محذوف دی) ای مدة حمله وفصاله مجموعتين (۳۰) مياشتي.

**فائده**: دا جمله د شدت مشقت د مور دی چي دېرش مياشتي چي ډېره طويله مده ده مور د خپل عيال په تکليف مبتلاء ده.

**مسئله**: په دې آيت سره علماء د امت دليل وايي چي اقل مده د حمل شپږ مياشتي ده، ولي چي په بل ځای کي خدای پاک وايي "وفصاله في عامين" دوه کاله چي څلورويشت مياشتي ده له دېرش څخه کمي کړې شپږ مياشتي کېږي، وعلى هذا يعني چي اقل د حمل شپږ مياشتي ده اتفق الائمة، قتاده په خپل سند سره وايي چي په خلافت کي د عمرؓ يوه ښځه چا ده ته راوستل چي پر شپږ مياشتي لنګه سوې وه، عمرؓ د اصحاب کرامو سره مشوره وکړه چي پر دې ښځي رجم سته يعني چي زنا يې کړې ده، او څرنګه عليؓ ورته وويل لا رجم عليها، دليل يې په دې سره ووايه چي خدایؓ وحمله وفصاله ثلثون شهرًا، وقال وفصاله في عامين، نو دوه کاله چي (۲۴)

میاشتي دي د (۳۰) میاشتو څخه کم حمل ته شپږ میاشتي پاتېږي، نو عمر بنځه نه کړه رجم، راوي وایي چي ثم بلغنا چي ولدت آخر بستة اشهر.

**درویش وایي:** چي په اکثره مدة الحمل کي اختلاف دی د ائمة الدین، په نېز د امام اعظم دوه کاله ده او د امام مالک څخه دېر روایتونه دي، څلور کاله پنځه کاله اووه کاله، او محمد بن ادریس الشافعي او بل روایت لکه مذهب د ابي حنیفه دلیل د مذهب د ابی حنیفه قول د عائشه دی چي لایبقی الولد في بطن امه اکثر من ستتین، نه پاتېږي ولد په نس یعني په رحم کي د مور بالاتر دوه کاله الحدیث.

**پوښتنه:** دا خو قول ددوی دی د رسول الله ﷺ خو نه دی، نو استدلال څرنګه په صحیح کېږي؟

**ځواب:** مقادیر غیر عقلیه محمول دي پر سماع د رسول الله ﷺ.

**حَتَّىٰٓ إِذَا بَلَغَ أَشُدَّهُۥ وَبَلَغَ أَرۡبَعِينَ سَنَةً**

تر څو چي دی ورسېدی یعني زماني ته د کامل عقل.

**پوه سه:** چي حتی متعلق دی په فعل محذوف سره چي معطوف دی پر وضعت تقدیره وربیاه حتی آه، او وبلغ عطف دی پر بلغ.

**فائده:** ابوبکر ﷺ صحبت کړی دی د نبي کریم ﷺ چي ابوبکر د اتلسو کالو ؤ دا زمانه د بلوغ الاشد ده او رسول الله ﷺ په دغه وخت کي د شلو کالو ؤ او دا صحبت ېې په تجارت کي ؤ شام ته ؤ چي په دغه وخت کي علیه الصلوة والسلام نبي نه ؤ. وروسته چي ابوبکر د څلوېښتو کالو سو نو علیه الصلوة والسلام د (۴۲) سو او نبي سو آمن آبو بکر بعثه، او ابوبکر خواست وکړی خدای ته او داسي یې وویل.

**قَالَ رَبِّ أَوۡزِعۡنِيٓ أَنۡ أَشۡكُرَ نِعۡمَتَكَ ٱلَّتِيٓ أَنۡعَمۡتَ عَلَيَّ وَعَلَىٰ وَٰلِدَيَّ**

ماته الهام وکړې (او بعض مفسرین وایي چي معنی د وضع کف او منع ده یعني ما داسي وګرځوې چي د کفران څخه د نعمت ځان منع کړم) چي زه شکر ووایم ستا د نعمت چي پر ما دي کړی دی او زما پر مور او پلار دي کړی دی چي اعلی د ټولو نعمتو هدایت دی و اسلام ته او نور نعمتونه هم چي تا ماته او زما والدینو ته ورکړي دي.

وَ اَنْ اَعْمَلَ صَالِحًا تَرْضٰىهُ وَ اَصْلِحْ لِیْ فِیْ ذُرِّیَّتِیْ ۚ

"وان اعمل آه" عطف دی پر ان اشکر یعني چي زه داسي عمل صالح وکړم چي ته په راضي کېږې.

**فائده:** صالحًا يې نکره راوړی لپاره د تعظيم قال ابن عباس رضي الله عنه چي د ابوبکر رضي الله عنه دغه خواست خدای تعالی قبول کړی دی چنانچه ده نهه (۹) داسي مريان چي مؤمنان به وه او مالکانو به دوی ته پر ايمان سخت عذابونه ورکول، ولي چي مالکان بې مشرکان وه، نو ابوبکر رضي الله عنه به دغه مريان رانيول د مالکانو څخه د هغو او ازاد به يې کړه منهم بلال الحبشي رضي الله عنه چي تر ټولو سخت ترين عذاب يې ورکاوه، او داسي هيڅ د خير کار نهٔ چي ابوبکر رضي الله عنه دي د خدای جل جلاله په توفيق سره په هغه کي لويه برخه نه درلوده، او دا دعاء يې هم وکړه.

"واصلح لي في ذريتي" او صالح کسان راکړې ماته زما په اولاد کي. زما توبه ده تاته له کفر څخه وعن کل ما لايرضی الله جل سلطانه، او زه له مخلصانو څخه يم په عمل کي، مظهري رحمه الله وايي چي د حتی اذا بلغ څخه تر اخيره پوري دليل ددې دی چي کلمه د لام تعريف په الانسان کي لپاره د عهد دی.

**درويش وايي:** چي د ابوبکر رضي الله عنه دا دعاء هم خدای تعالی قبوله کړې ده، ولي دده ټوله اولاد مؤمنان وه، نو ابوبکر رضي الله عنه اسلام د مور او پلار او دده اولاد ټوله ولا نعمة عظمی من ذالک.

**فائده:** ابو قحافه رضي الله عنه چي د ابوبکر رضي الله عنه پلار وُ و زمانې ته د صحبت د رسول الله صلی الله علیه وسلم رسېدلی دی وابنه ابوبکر وابن ابی بکر عبدالرحمن بن ابی بکر وابن عبدالرحمن ابو عتيق رضي الله عنهم ولم يکن تلک النعم باجمعها لاحد من الصحابة رضي الله عنهم.

اِنِّیْ تُبْتُ اِلَیْكَ وَ اِنِّیْ مِنَ الْمُسْلِمِیْنَ ﴿۱۵﴾

زما توبه ته تاته له کفر څخه وعن کل ما لايرضی الله عزوجل، او زه له مخلصانو څخه يم په عمل کي، مظهري رحمه الله وايي چي د حتی اذا بلغ څخه تر اخيره پوري دليل دی ددې چي کلمه د لام تعريف په الانسان کي لپاره د عهد ده.

**پوښتنه:** په يو روايت کي خو داسي راغلي دي چي ابو قحابه رضي الله عنه په ورځ کي د

فتح مکې مسلمان سو، او په دې وخت کې ابوبکرؓ د شپېتو کالو ؤ، او نزول ددې آیت قبل الهجرة ؤ لان السورة مکية حين بلغ ابوبکرؓ اربعين سنة (۴۰) كان قحافة كافراً، فکیف یقول ابوبکرؓ انعمت علي وعلى والدي؟

**ځواب:** صحیح روایت دادی چې ابوبکرؓ چې ایمان راوړی د اته دېرش (۳۸) کالو ؤ واسلم بعده ابويه سنتين چې د ابوبکرؓ عمر څلوېښت کاله وګرځېدی فصح قوله تعالى وبلغ اربعين سنة، قال رب اوزعني الى اخير الآية چې په دې آیت کې دا کلمات راغلي دي ''انعمت علي وعلى والدي الخ''، او بل ځواب دا هم دی چې پر تقدیر ددې چې نزول د آیت په مکه کې ؤ او اسلام د ابی قحافة وروسته تر فتح د مکې ؤ چې وصیت بالاحسان للوالدين الكافرين هم روا دی کما جاء في اول الآية ووصينا الانسان بوالديه حسناً کما جاء في سورة العنكبوت ووصينا الانسان بوالديه حسناً وان جاهداک لتشرک بي ما لیس به علم فلا تطعمهما (نو چې دوی یعني الوالدين كوشش کوي پر زوی چې ته خدای ته شریک ونسه نو خو دوی کافران دي) نو پر دې تقدیر مراد د انعمت علي وعلى والدي ما يعم نعمة الدين والدنيا، نو پر ابوبکرؓ خو نعمت د دین او دنیا دواړه ؤ او پر والدینو یې یوازې نعمت د دنیا ؤ.

**احتمال:** که الف و لام په الانسان کې لپاره د جنس وي مراد په دې ایت کې دادی ''انه اذا بلغ الانسان مبلغ الرجال شكر الله تعالى على كمال جسده ثم اذا بلغ اربعين سنة شكر الله على كمال عقله'' ولې چې کمال العقل في الاغلب بعد بلوغ (۴۰) سنة وهذا هو السر چې اکثر د انبیاؤ علیهم السلام ته نبوت ورکړه سوی دی والله أعلم بالصواب وعنده علم ما في الكتاب.

**درویش وایي:** اګرچه روح البیان خپله رایه په دې باره کې چې دا آیت خاص په ابوبکرؓ پوري دی صراحةً یې نه دی ذکر کړی لکن په قول د حسین کاشفيؒ چې مصنف د تفسیر حسیني دی چې هغه قدیم تفسیر دی په فارسي ژباړه را نقل کړی دی داسي فهمېږي چې د روح البیان هم دغه رایه ده چې دا آیت په ابوبکر الصدیقؓ پوري خاص دی، کاشفيؒ وایي: اکثر مفسرين برآنند که این آیت خاص است بابی بکر الصدیقؓ الى اخیره کما مر قریبًا، او علامه بغدادي سید محمود آلوسيؒ په روح المعاني کې په ابتداء کې ددې آیت د تفسیر یعني ووصينا الانسان آه داسې عبارت

راوړی دی، نزلت کما اخرج ابن عساکر من طريق الکلبي عن ابی صالح عن ابن عباس رضي في ابی بکر الصديق رض الی قوله تعالی: وعد الصدق الذي کانوا يوعدون. وروسته علامه بغدادي دا قصه په تفصيل سره ښيرلې ده تقريبًا په درو صفحو کي يعني ددې ترپايه پوري مع النقض والابرام وروايات حسنه.

**درويش وايي:** چي د قيلوله په وخت کي د ورځي د پنجشنبې (٢٧) شهر شعبان المبارک رئيت فيما يرى النائم کان قائلاً يقول... بيت:

الحمد لمن قدر خيرًا و خبالاً والشکر لمن خلق حسنًا و جمالاً

يعني تقدير د خير چي ټولو انواعو ته د خير شامل دی من الايمان والطاعة والصحة والغنی، او تقدير د خبال يې کړی دی چي ټولو اضدادو ته د خير شامل دی من الکفر والعصيان والمرض والفقر وغير ذالک، نو په نيم بيت فقير تبرک وکړی په تقديم د لفظ خيرًا "والشکر لمن خلق حسنًا و جمالاً" دا نيم بيت ټوله د تبرک وړ دی لان لفظ د حسن او جمال ظاهري او باطني حسن و جمال ته شامل دی کما لايخفی، دا جمله معترضه وه اوس بيرته د تفسير پر لور.

أُولَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ نَتَقَبَّلُ عَنۡهُمۡ أَحۡسَنَ مَا عَمِلُواْ

دغه کسان هغه کسان دي چي مونږ ددوی ښه قبلوو هغه ډېر ښه د عملو ددوی.

**پوه سه:** چي که مراد له انسان ښه په اول کي د ايت جنس انسان وي، نو "أولئک" اشاره و ټولو موصوفين بالصفات المتقدمة ظاهره ده، او که مراد ځني ابوبکر رضي الله عنه وي فالمشار اليه هو ابوبکر الصديق رضي الله عنه ومن مثله في الصفات المذکورة، ذکر د ابوبکر رض د عموم په صورت کي داخل دی علی سبيل الکناية وهو ابلغ من الصريح کما عرف في کتب علم البيان.

**فائده:** تخصيص د احسن چي يې وکړی ددې لپاره چي مباح خو هم حسن دی لکه خوراک، څښناک، لباس و غير ذالک لکن لايثاب عليه. کلمه د ما مصدريه ده يعني هغه ډېر ښه د عملو ددوی، او که ما موصوله وي نو عائد و موصول ته محذوف دی ای ما عملوه.

وَنَتَجَاوَزُ عَن سَيِّـَٔاتِهِمۡ فِيٓ أَصۡحَٰبِ ٱلۡجَنَّةِۖ

او مونږ تجاوز او عفو کوو د ګناهو ددوی يعني عذاب نه ورکوو پر يو شي د

سیئاتو ددوی "في اصحٰب الجنة" خبر بعد الخبر د اولئک دی او یا حال دی له ضمیر مجرور څخه في سیئاتهم کي ای کائنون في اعدادهم او مثابین او معدودین في اصحاب الجنة.

وَعۡدَ الصِّدۡقِ الَّذِیۡ کَانُوۡا یُوۡعَدُوۡنَ

("وعد الصدق" ای وعدت وعد الصدق، داسي مصدر ته مؤکد لنفسه وایي، ولي چي تتقبل او تتجاوز وعده ده) هغه وعد الصدق ده چي ددوی سره یې وعده کړه کېده په دنیا کي یعني په کتابو کي د خدای او یا پر ژبه د رسولانو د خدای یعني جزاء د انسان مذکور ده.

وَالَّذِیۡ قَالَ لِوَالِدَیۡهِ اُفٍّ لَّکُمَاۤ

او هغه څوک چي وه یې ویل مور او پلار ته چي نصیحت یې ورته کاوه چي ایمان راوړه پر توحید د خدای "اف لکما" دا کلمه د کراهیت ده چي په وخت کي د دل تنګی له کار څخه یا له ګفتار څخه ویل کېږي.

**یوه سه:** چي والذي مبتداء ده خبر یې اولئک دی.

**سوال:** والذي خو مفرد دی او اولئک خو جمع دی؟

**ځواب:** د الذي مراد جنس دی فیکون جمعًا معنی.

اَتَعِدٰنِنِیۡۤ اَنۡ اُخۡرَجَ وَقَدۡ خَلَتِ الۡقُرُوۡنُ مِنۡ قَبۡلِیۡ

او تاسي زما سره وعده کوئ (همزه د انکار او توبیخ دی تعلیل د تافیف دی) چي زه به را وځم له قبر څخه ژوندی بعد الموت یعني د بعث بعد الموت څخه منکر ؤ، او حال دا دی چي ډېر قرنونه (یو قرن سل کاله دی) تر ما دمخه تېر سوي دي د مړو چي یو هم نه دی ژوندی سوی.

وَهُمَا یَسۡتَغِیۡثٰنِ اللّٰهَ وَیۡلَکَ اٰمِنۡ

او هغه دواړه یعني مور او پلار یې طلب د کومک کوي د خدای چي تا ته توفیق د ایمان درکړي، او یا معنی داده الغیاث بالله منک پناه د خدای غواړو ستا څخه یعني ستا د انکار د بعث بعد الموت څخه "ویلک" هلاکت دی تا لره

(مصدر د فعل محذوف دی ای هلکت هلاکًا والجملة مقدرة بالقول ای یقولان ویلک) "امن" ایمان راوړه پر خدای په توحید سره او په بعث بعد الموت سره.

**فائده:** جمله د و هما آه حال عن والدیه.

إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ فَيَقُولُ مَا هَٰذَا إِلَّا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ

په تحقیق وعده د خدای په بعث بعد الموت سره حق ده، دا جمله تعلیل ده د بالامر بالایمان سره، نو وویل ولد کافر و والدینو ته نه دی دا وعد بالبعث مگر دروغ د پخوانیو خلکو. بخاري په خپل سند سره وایي: چي معاویه مروان بن الحکم عامل گرځولی ؤ پر حجاز، نو مروان خطبه وویل نو د یزید بن معاویه ذکر یې وکړی د دې لپاره چي خلک بیعت وکړي د یزید بن معاویه سره وروسته تر مرگ د معاویه نو عبدالرحمن بن ابوبکر یوه خبره وکړه (یعني د یزید نا اهلیت یې بیان کړی) نو مروان خپلو عسکرو ته وویل چي عبد الرحمن ونسئ، نو عبدالرحمن د عائشې چي دده خور وه په کور ننوتی، نو عسکرو دومره جرأت نسوای کولای چي د عائشې له کوره دې را وباسي، مروان وویل چي عبد الرحمن هغه سړی دی چي خدای دده په باره کي دا آیت نازل کړی دی "والذي قال لوالدیه اف لکما اتعد انني الآیة" نو عائشې من وراء الحجاب وویل: ما نزل فینا شیئًا من القرآن الا ان انزل عذري في القرآن (چي پر دې باندي تهمت د زنی مع صفوان بن المعطل منافقینو لگولی ؤ چي قصه یې اوړده ده او مخته په تفسیر کي مفصلاً ذکر سوه) راوي وایي چي عبدالرحمن بن ابی بکر ته درد ورغلی پر خبره د مروان چي وروسته تر معاویه به دده زوی یزید خلیفه او امیر المؤمنین وي چي دا خو خوی د هرقلانو دی یعني د رومیانو چي سلطنت یې په میراث و زوی ته پاتېږي ثم وثم (یعني یرث الابناء ملک الاباء) او د اسلام خو دا طریقه نه ده بلکي وروسته تر مرگ د خلیفه به اهل الحل والعقد نوی خلیفه ټاکي، الاترى چي امیر المؤمنین عمر چي ابو لؤلؤ المجوسي چي د یو صحابي مریی ؤ د لمانځه د شروع په وخت کي په خنجر وواهه چي قصه یې اوږده ده، وروسته تر لمانځه چي عمر ته خپل د مرگ یقین سو، نو خپل زوی یعني عبدالله بن عمر یې مسلمانانو ته نه کړی معرفي په خلافت سره، بلکي امر د خلافت یې د شپږو صحابه ؤ و مشورې ته وسپاره چي هغوی بیا عثمان وروسته تر ډېرو مشورو او بحثو خلیفه وټاکی.

**درویش وایي:** چي ابن ابی حاتم له سدي څخه روایت کړی دی او هغه له ابن عباس څخه چي دا آیت نازل دی په عبدالرحمن بن ابی بکر کي وقال مثل قول مروان قال نزلت في عبدالرحمن بن ابی بکر قبل اسلامه ثم اسلم وحسن اسلامه.
مظهري وایي چي قیل دا آیت په عبدالرحمن بن ابی بکر کي نازل سوی دی چي پلار او مور به دی رابللی و اسلام ته ده به اباء کوله او داسي به یې ویل چي تاسي ماته راژوندي کړئ عبدالله بن جدعان او عامر بن کعب او مشائخ د قریشو چي له هغو څخه پوښتنه وکړم ستاسي د خبرو انتهی.
**درویش وایي:** چي سبحان الله هذا بهتان عظیم، ددې قول منشاء قول د مروان بن الحکم ده او قول د مروان مبني پر عناد ؤ له خاندان سره د ابوبکر او شاهد قول د عائشې دی چي دمخه تېر سو چي دې انکار وکړی له دې څخه انیکون هذه الآیة في عبدالرحمن بن ابی بکر، او حافظ ابن الحجر په شرح کي د بخاري وایي ونفي عائشة اصح اسنادًا و اولی بالقبول انتهی، وقال البغوي والصحیح انها (دا آیت نزلت في کافر عاق لوالدیه)

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ حَقَّ عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ فِي أُمَمٍ

ای وجب وثبت بانهم اهل النار.
**بوه سه:** چي مشار الیه په اولئک سره چي په اخیر د تېر سوي آیت یې د اسي وویل ما هذا الا اساطیر الاولین. له دې آیت څخه دا معلومه سوه چي سابق آیت په شان کي د عبدالرحمن بن ابی بکر نه دی نازل لانه من افاضل المؤمنین.
"في امم" جمع د امت ده، مراد څني امم کافرة دي کلمة د في په معنی د مع ده

قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِهِم مِّنَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ ۖ إِنَّهُمْ كَانُوا خَاسِرِينَ ﴿١٨﴾

چي تېر سوي دي تر دوی دمخه "من الجن والانس" بیان د امم دی ای من کفرة الجن والانس. په تحقیق دوی له خاسرین څخه وه. یعني په لوی خسران او تاوان کي واقع کسان وه.
**درویش وایي:** چي جن یې تر انس دمخه کړی لا لشرفهم بل لان المقام مقام الاهانة، او جمله د قد خلت صفت د امم ده.

وَلِكُلٍّ دَرَجَٰتٌ مِّمَّا عَمِلُوا۟ ۖ

او د هر يوه لپاره درجې لوړي او کښته له جزاء څخه د هغه عمل د خير چي دوی کړی وي په دنيا کي، يا يې ترجمه داده: من اجل جزاء ما عملوا، قال ابن عباس رض چي مراد دادی چي وي صحابي چي سبقت کړی و اسلام ته فهو افضل ممن يخلف عنه ولو بساعة، وقال مقاتل رح چي هر يوه لره فضائل دي بسبب اعمالهم، نو خدای ج جزاء ورکوي پوره جزاء د اعمالو ددوی، او بعض مفسرين وايي: ولكل من الفريقين من المؤمنين والكافرين درجات ومراتب عندالله يوم القيامة فيجازيهم عليها مثلاً د اصحاب کرامو ﷺ مرتبه لوړه ده تر درجې د تابعينو او ددوی درجه لوړه ده تر تبع تابعينو و هكذا، وكذا مراتب الكفرة فمرتبة المشركين لوړه ده په كفر كي تر يهودو او نصاری ؤ.

**يوه سه:** چي په قول د ابن زيد رح درجات د كافرانو كښته ځي په دوږخ كي او درجات د مؤمنانو لوړي ځي په جنت كي.

وَلِيُوَفِّيَهُمْ أَعْمَٰلَهُمْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ۝

او چي پوره ورکړي خدای ج (مظهري رح وايي چي دا جمله معطوف ده پر علت د فعل محذوف، والتقدير فعلنا ذالک او فعل الله ذالک لحكم ومصالح وليوفيهم) "اعمالهم" ای جزاء ما عملوا في الدنيا، او پر دوی ظلم نه كول كېږي يعني د خدای ﷻ له خوا بنقص ثواب او زيادة عذاب مما يستحقونه باعمالهم.

وَيَوْمَ يُعْرَضُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ عَلَى ٱلنَّارِ

(عامل د يوم اذكر دی) يعني ذكر كړه و قوم ته خپل يا محمد ﷺ هغه ورځ چي پيش كړه سي هغه كسان چي په دنيا كي يې كفر كاوه پر اور باندي يعني د دوږخ يعني د عذاب لپاره ای يعذبون بها، روح البيان وايي چي عرض محمول دی پر تعذيب مجازًا مثل قولهم عرض الاسارى على السيف ای قتلوا. نو بناء پر دغه تفسير هغه سوال نه وارد يږي چي معروض عليه خو بايد اهل شعور وي والنار ليست اهل الشعور واهل الشعور هم الكفرة دي، وكذا في المحاورة المذكورة اهل الشعور خو سيف نه ده بلكي مقتولين دي. او بعض مفسرين د دفع ددې سوال لپاره وايي چي اصل د كلام داسي ؤ يعرض النار عليهم، نو عبارت يې واړاوه و مذكور عبارت ته مبالغةً كما في قولهم عرضت الناقة على الحوض اذا اصله عرضت الحوض على الناقة فافهم.

اَذۡهَبۡتُمۡ طَیِّبٰتِکُمۡ فِیۡ حَیَاتِکُمُ الدُّنۡیَا وَ اسۡتَمۡتَعۡتُمۡ بِهَا ۚ

تاسي وړی دی (ټوله مفسرين وايي چي د اذهبتم سره يقال مقدر دی) "طيباتكم" ای لذائذ كم هغه خواهشات نفسانيه په ژوند كي د دنيا يعني د خدای عزوجل له خوا تاسي ته مقدر وه، په هغو ټولو سره تاسي نفع واخسته (نو د هغو مقدره لذائذو څخه تاسي ته هيڅ شی نه دی پاته)

فَالۡیَوۡمَ تُجۡزَوۡنَ عَذَابَ الۡهُوۡنِ

نه ورځ يعني ورځ د قيامت (كلمه د فاء لپاره د سبب ده يعني په سبب د هغه چي ټوله لذائذ تاسي ته په حيوة الدنيا كي ورسيده) تاسي ته جزاء يعني عذاب د اهانت او سپكاوي او ذلت دركول كيږي.

بِمَا کُنۡتُمۡ تَسۡتَکۡبِرُوۡنَ فِی الۡاَرۡضِ بِغَیۡرِ الۡحَقِّ وَ بِمَا کُنۡتُمۡ تَفۡسُقُوۡنَ ﴿۲۰﴾

په سبب ددې چي تاسي واست (په دنيا كي) كبر مو كاوه په مځكه كي بېله حقه چي ايمان مو پر محمد ﷺ نه راوړی چي دا ستاسي عصيان قلبي ؤ او په سبب ددې تاسي فسق كاوه په مځكه كي بترک المأمورات الشرعية كالصلوة وغيرها، او راتګ مو كاوه په منهياتو سره لكه زنى وغيره، وهذا ذنب الجوارح.

**نكته:** استكبار يې دمخه كړی تر فسق لان ذنب القلب اعظم تاثيرا من ذنب الجوارح.

**درويش وايي:** چي استكبار قلبي سبب دی د عصيان الجوارح تاسي نه وينئ چي ابليس عليه اللعنة اولاً كبر مختاره كړی حين امر بالسجود لآدمؑ، وقال انا خير منه وروسته يې عصيان الجوارح پر بناء كړی وهو ترک السجود لآدمؑ، بغويؒ وايي چي خدای پاک توبيخ د كافرانو وكړی چي تاسي ته تمتع په دنيا كي دركړه سوه، نو له دې كبله رسول اللهﷺ واصحابه الكرامؓ پرهېز كاوه د لذائذو څخه د دنيا او اكتفاء يې كول بما يكفي من ادنى شيئ رجاء الثواب في الآخرة، بخاري او مسلمؒ په خپلو كتابين صحيحين كي له عمرؓ څخه روايت كړی دی چي زه ورغلم و رسول اللهﷺ ته (يعني چي دی په لوړ اوطاق كي ؤ چي مشربة يې باله د ازواجو مطهراتوؓ څخه يې يوه مياشت ګوښه نشيني مختاره كړه چي دویؓ له دهؓ څخه طلب د ډېري نفقې او د استراحت د ژوند طلب كړی ؤ) فاذا هو مضطجع (دی مبارک پروت ؤ) على رمال

حصر ليس بينه و بينه فراش (نهٔ په مابين کي دده د مبارک بدن او د تارو د بوريا هيڅ فراش يعني پر بوريا باندي هيڅ شی نهٔ اوار) قد اثر الرمال بجنبه (چي لرګو د بوريا دده په بغل کي تاثير کړی ؤ يعني تغمې يې پکښي پيدا کړي وې او عليه الصلوة والسلام تکيه کړې وه پر يو بالښت د څرمنې او په مابين کي د بالښت ليف د خورما وې يعني خاشې د خورما) قلت يا رسول الله ﷺ ته دعاء وکړه و خپل امت ته چي خدای ﷻ فراخي پر جوړه کړي او سره ددې چي پر فارسيانو او روميانو خدای ډېره فراخي جوړه کړې ده، وهم لايعبدون الله، قال او في هذا انت يا ابن الخطاب؟ (ته په دې خبره پسي راغلی وې ای ابن خطابه؟) اولئک قوم عجلت لهم طيباتهم د روميانو او د فارسيانو هغه کسان چي چي دوی ته يې برخه د لذائذو په دې دنيا کي ورکړې ده، وفي رواية اما ترضی ان تکون لهم الدنيا ولنا الآخرة؟ (ته نه يې راضي چي دوی لره دنيا وي يعني نعيم د دنيا وي او موږ لره نعم آخرت وي) په بخاري او مسلم کي د عائشې ؓ روايت دی چي: ما شبع آل محمد ﷺ من خبز الشعير يومين متتابعين (يعني نه دي ماړه سوي کور والا د محمد ﷺ د ډوډی څخه د اوربشو دوې ورځي پر له پسې) حتی قبض رسول الله ﷺ (تر څو چي رسول الله ﷺ وفات کېدی) وروی البخاري عن ابی سعيد المقبري ؒ عن ابی هريرة ؓ چي ابو هريره ؓ تېر بدی پر يوه قوم چي د دوی پر سترخوان پسه پروت ؤ چي په تناره کي يې پوخ کړی ؤ چي مصلية يې بولي، او بعض وايي چي مصلية کباب کړي پسه ته وايي، نو هغو و ابو هريره ؓ ته دعوت ورکړی يعني چي راسه زموږ سره دا غوښي وخوره، فأبی ان يأکل ده منع ورته وکړه او داسي يې ورته وويل: خرج النبي ﷺ من الدنيا ولم يشبع من خبز يعني يومين متتابعين کما مر في حديث مسلم و بخاري قريبًا، وعن عائشة ؓ کان يأتی علينا شهر (پر موږ به تېره سوه پوره يوه مياشت) ماتوقد فيه نار (چي په دې مياشت زموږ په کورو کي اور نه دی بل سوی تعني د اور د پخېدو شی نه دی پيدا سوی) وما هو الا الماء والتمر (يعني نهٔ طعام زموږ مګر اوبه او خورما وه) غير ان جزی الله النساء من الانصار خيرًا ربما اهدين شيئًا من اللبن، وروی احمد والترمذي وابن ماجه عن ابن عباس ؓ قال کان رسول الله ﷺ يبيت الليالي المتتابعة طاويا هو واهله (و رسول الله ﷺ شپې به يې تېرولې پر له پسې چي هيڅ شی به يې نهٔ خوړلی ده او اهل دده) لايجدون

عشاء (د ماښام ډوډۍ به يې نه درلوده) وكان اكثر خبزهم الشعير (او اكثره ډوډۍ ددوی به له اوربشو څخه وه چي هغه به هم ايام متتابعه نه پيدا کېدل) لقد اخفت في الله (زه ډېرول کړه سوی يم يعني د کفارو د مکې له خوا په لار کي د خدای يعني تبليغ د توحيد د خدای) وما يخاف احد (او نه دی ډېرول کړه سوی هيڅ څوک يعني ما غوندي) ولقد اذيت (او ماته راكړه سوی دی اذيت يعني د قريشو له خوا) في الله وما يؤذی احد يعني مثلي ولقد اتت علي ثلاثين بين ليلة ويوم (لام جواب د قسم محذوف دی ای والله په تحقيق راغلی پر ما دېرش په مابين کي د شپې او ورځي) ومالي ولبلال طعام يأكله ذو كبد (او نه ؤ ما لره او بلال لره دو مره طعام چي وه يې خوري ذو كبد (کبد هينې ته وايي) يعني يو انسان) الا شيئ يواريه ابط بلال (مګر دو مره قدر طعام چي هغه به پټ کړي بغل د بلال يعني د بلال رض په بغل کي به څه طعام ؤ.

**درويش وايي**: والله اعلم من ای كان ذالک الطعام د غنمو ډوډۍ او که د اوربشو ټيکی، ترمذي وايي چي عليه الصلوة والسلام تلی د مکې څخه ومعه بلال رض، وروی البخاري عن انس رض انه مشی (ده ورورل الی النبي ﷺ بخبز شعير اوربشينه ډوډۍ) و اهالة سنخة (او يو څه موو غوړي چي هغه يې هم بوی تغير خوړلی ؤ)

**درويش وايي**: چي داسي خورک د ډېري لوږي له کبله کېږي او په اوسنی زمانه کي به يې څوک ونه خوري الا ماشاء الله من محبوس في ايدي الكفرة، لکه په دې وخت کي امريکايان په افغانستان کي يعني سنه (١٤٣٠-١٤٣١-١٤٣٢) حضرت انس رض وايي: چي والله ګرو ايښې وه نبي ﷺ خپله زغره (چي په جنګو کي د اغوستلو قميص ؤ چي په هغه وخت کي هر چاته ډېر محترم ؤ) په مدينه کي و يوه يهودي ته او د هغه څخه يې څه مقدار اوربشي اخستي وې د کور لپاره، او بخاري له انس رض څخه روايت کړی دی چي ما له عليه الصلوة والسلام څخه اورېدلي دي چي ده وويل: چي نه دی ماښام کړی عند آل محمد (ﷺ) صاع بر (يوه کاسه د غنمو) ولا صاع حب (او نه يوه کاسه د نورو دانو لکه اوربشي، جوار وغيرهما، او حال دا ؤ چي دده مبارک نهه (٩) ازواج مطهراتي رضي الله عنهن وې، وروی الترمذي عن ابی طلحة رض چي موږ شکايت وکړی و رسول الله ﷺ ته د لوږي، فرفعنا عن بطوننا عن حجر حجر (نو موږ هر يوه د خپلو نسو څخه هر يوه يوه ډېره) فرفع رسول الله ﷺ عن بطنه

عن حجرين (نو رسول کريمﷺ د خپل نس مبارک څخه ښکاره کړې دوې ډبرې.
**پوښتنه:** د ډبرو تړل پر نس باندي څه فائده لوږي ته رسوي؟
**ځواب:** چونکه معده چي د خوړولو ځای خالي وي د معدې مشين کرمېږي او خواره غواړي او د ډبره چونکه مشين د معدې سړوي د نورو خوړو خواهش يې في الجملة په کمېږي، پر موټر باندي يې قياس کړئ چي اوبه يې کمي سي گرمېږي اوبه غواړي ورنه مشين يې جامېږي فتدبر. ترمذي وايي: هذا حديث غريب.
**پوهسه:** چي د غريب معنی دا نه ده چي حديث صحيح نه دی، بلکې راويان يې کم دي، مسلم له عبد الرحمنؓ څخه روايت کړی دی چي درې کسه و عبد الله بن عمرؓ ته راغله زه هم هوړې وم نو دوی وويل يا ابا محمد چي د عبد الله بن عمرؓ کنيت ؤ، والله ما نقدر علی شيئ ولا نفقة ولا دابة و لا متاع، نو عبد الله بن عمرؓ دوی ته وويل: ما شئتم؟ ستاسي څرنگه خوښه ده، که مو خوښه وي رجعتا الينا فاعطيناکم مايسر الله لکم (ماته به راسئ هغه څه به مو پر درکړو چي خدای تاسي ته اساني جوړه کړې يعني تاسي ته اسانه وگرځوئ) وان شئتم ذکرتم امرکم الی السلطان (او که مو خوښه وي زه به ذکر کړم ستاسي حال او مسکنت وسلطان ته چي هغه به د بيت المال د لاري څخه کومک درسره وکړي) وان شئتم صبرتم (او که ستاسي خوښه وي پر دغه مسکنت صبر وکړئ) (فاني سمعت رسول اللهﷺ يقول ان فقراء المهاجرين يسبقون الاغنياء يوم القيامة الی الجنة باربعين خريفًا (۴۰ کاله) قالوا فانا نصبر ولا نسئل شيئًا يعني لامنک ولا من السلطان ولاغيره لان نعيم الآخيرة خير وابقی.
وروی احمد عن معاذ بن جبلؓ چي رسول اللهﷺ دی استاوه و يمن ته يعني د والي په توګه، اياک و التنعم (چي پرهيز کوه د ډېر نعمت خوړلو يا اغوستلو څخه) فان عباد الله ليسوا بالمتنعمين (ولي خاص بندگان د خدای متنعمين نه وي، ولنعم ماقيل:- بر فلک برتر بود اسرار او شيئًا لله شيئًا لله کار او
او بيهقيؒ له عليؓ څخه روايت کړی دی قال قال رسول اللهﷺ من رضی باليسير من الرزق (يعني په لږ رزق سره راضي وي رضی الله تعالی عنه بالقليل من العمل (ای الطاعة) بغويؒ له عبد الرحمن بن عوفؓ څخه روايت کړی دی چي ده ته چي روژه يې وه د روژمات پر وخت کور والاؤ يو ښه طعام راوړی، ده چي دې موزون طعام ته وکتل داسي يې وويل: قتل مصعب بن عميرؓ وهو خير مني (چي په يوه ليک

داره جامه کي يې، وپيچي چي برده يې هم بولي، په امر د عليه الصلوة والسلام نو چي سر به يې ورپټ کړی پښې به يې ښکاره پاتې سوې او که به يې پر پښو ورواچاوه سر به يې لڅ پاتې سو، اخير يې پر سر ورواچاوه او پر پښو يې د اذخر وابنه ورواچول) راوي وايي چي زما خيال دی چي داسي يې هم وويل: قتل حمزة وهو خير مني) ثم بسط لنا من الدنيا (وروسته تر هغو پراخي جوړه سوه پر موږ د دنيا) او قال اعطنا الدنيا وقد خشينا ان تکون حسناتنا عجلت لنا (او زه بېرېږم چي زموږ د نېکو عملو ثواب به خدایٔ په دې دنيا کي راکړي) ثم جعل يبکی حتی ترک الطعام (نو يې په ژړا شروع وکړه هغه موږ ته طعام يې پرېښو) البته روژه به يې په او يو ماته کړې وي.

له جابر بن عبدالله ﷺ څخه روايت دی چي عمر بن الخطاب غوښي وليدلې معلقا في يدي فقال: ما هذا يا جابر؟ قلت اشتهيت لحما فاشتريته (نو ده ماته وويل چي دا څه شی دي ستا په لاس کي يا جابر؟ نو ماته ورته وويل چي غوښو ته مي هوا وسوه نو دا مي رانيولې يعني چي کور ته به يې پخې کړم او وه يې خورم) فقال عمر يا جابر کلما اشتهيت اشتريت اما تخاف هذه الآية (له دې اية څخه نه بېرېږې "اذهبتم طيباتکم في حياتکم الدنيا" او په بل روايت کي د جابر راغلي دی چي عمر بن الخطاب ماته وويل: اما يحب احدکم ان يطوي بطنه لجاره وابن عمه (دا د يوه ستاسي نه ده خوښه چي خپل نس خالي او وږی پرېږدي د همسايه لپاره او د اکا د زوی لپاره يعني هغه چي وږی وي هغو ته يې ورکوي) او روايت کړی دی رزين د زيد بن اسلم څخه چي يوه ورځ عمر ﷺ وږی و او به يې وغوښتلې، نو يو خادم يا بل چا او به ورته راوړې چي عسل به ورسره گډ کړي. نو عمر وويل دا خو طيب او به دي لکني اسمع الله عزوجل نعيي (عيب يې ووايه) علی قوم شهواتهم (د شهوت شيان) فقال اذهبتم طيباتکم في حياتکم الدنيا واستمتعتم بها. فاخاف ان تکون حسناتنا عجلت لنا فلم يشربه) هغه او به يې ونه څښلې.

**درويش وايي:** چي د دې آيت له سببه چي اصحابو کرامو طيبات نه خوړل او نه يې څښل او سره د دې چي دوی ښه پوهېدل چي دا آيت د کفارو په باره کي نازل سوی دی بيا هم د اصحابو دومره خوف او بېره وه چي که موږ طيبات په دنيا کي استعمال کړو موږ ته به هم وويل سي اذهبتم طيباتکم الآية.

**نکته:** قرب د خدای ﷻ چي هر څومره ډېرېږي خوف الهي هغو نه ورسره ډېرېږي

کما یدل علیه الاحادیث المذکورة في هذا الباب.

**درویش وايي:** ومثل هذه الروایات المذکور کثیرة فی هذا الباب ترکناها لحال الطول.

## وَاذْكُرْ اَخَا عَادٍ ۭ اِذْ اَنْذَرَ قَوْمَهٗ بِالْاَحْقَافِ

او ذکر کړه یا محمد (ﷺ) و اهل مکه ته قوي سړی د قوم عاد چي هغه هود ﷺ و، هغه چي ویې بېروی قوم خپل (چي د عاد په نامه یادېدل) په احقاف کي.

**پوه سه:** چي کلمه د با په معنی د في ده ای في الاحقاف، ابن عباس رضي الله عنه وايي چي احقاف په مابین کي د عمان او مهرة واقع دی، او مقاتل رحمه الله وايي چي منازل د عاد په یمن کي وه في حضرموت بموضع یقال له مهرة چي تنسب الیها الابل المهریة، روح البیان وايي چي احقاف رېګستان بود نزدیک حضرموت ولایت یمن جمع حقف وهو رمل مستطیل مرتفع فیه انحناء، وکانوا من قبیلة ارم وقال قتادة ذکرلنا ان عاداً یوه قبیله وه په یمن کي کانوا اهل رمل (رېګستان) مشرفین علی البحر لوړ وه پر دریاب بارض یقال لها یشجر.

**درویش وايي:** چي د ټولو تفاسیرو د احقاف مآل یو دی چي په پښتو ژباړه رېګنه مځکه ده لکه غرونه، لوی لوی غونډی پکښې وي چي دا رېګستان اوږد کوږ و او دریاب ته نژدې و، او اهل احقاف لکه پرنده خلګ په دوبي یو ځای په پسرلي بل ځای او په ژمي بل ځای اوسېدل لکن په ژمي خپل کورو ته راتله، وعن علي رضي الله عنه واد بین وادي الاحقاف وادي حضرموت چی برهوت یې هم بولی.

## وَقَدْ خَلَتِ النُّذُرُ مِنْۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهٖٓ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّا اللّٰهَ ۭ اِنِّىْٓ اَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ ۝

او په تحقیق تېر سوي دي بېرونکي یعني رسولان د مخه تر هود علیه السلام لکه نوح علیه السلام وغیره او وروسته تر هود علیه السلام لکه صالح، لوط ابراهیم وغیرهم علیهم السلام، دا چي تاسي عبادت مه کوئ د غیر د خدای ج "اني اخاف آه" زه بېرېږم پر تاسي (که عبادت ته د غیر الله دوام ورکړئ) له عذابه د لوی ورځي یعني عظیم بلا ئه که څه هم عظیم صفت د یوم دی.

اعراب: جمله د وقد خلت آه حال ده له فاعل څخه د انذر، جمله "ان لا تعبدوا آه" مفسره ده د انذر، جمله "اني اخاف آه" علت ده د لاتعبدوا الا الله "عذاب یوم عظیم" ته وصف بحال المتعلق وايي نحو زید کریم ابوه.

قَالُوٓا۟ أَجِئْتَنَا لِتَأْفِكَنَا عَنْ ءَالِهَتِنَا فَأْتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ إِن كُنتَ مِنَ ٱلصَّٰدِقِينَ ﴿٢٢﴾

قوم يې ورته وويل آيا ته راغلی يې موږ ته (الاستفهام للتقرير) چې موږ مصروف کړې يعني واموړوې له عبادت څخه د خدايانو زموږ يعني چې بتان دي، نو ته موږ ته راوله هغه عذاب چې زموږ سره يې وعده کوې که موږ د بتانو عبادت پرې نږدو، که ته يې د رشتيا ويونکو د جملې څخه.

قَالَ إِنَّمَا ٱلْعِلْمُ عِندَ ٱللَّهِ وَأُبَلِّغُكُم مَّآ أُرْسِلْتُ بِهِۦ وَلَٰكِنِّىٓ أَرَىٰكُمْ قَوْمًا تَجْهَلُونَ ﴿٢٣﴾

هود ؑ ورته وويل چې نه دی علم د عذاب مستقبل چې مقدر دی مګر په نيز د خدای ؑ دی، هود ؑ په دې کې اشاره ودې ته وکړه چې بالفعل که عذاب واقع نه سي دا ددې سببه نه دی چې زه کاذب يم په دعوی کې د رسالت لانه لامدخل لي في العذاب بلکې زه ''وابلغتکم ما ارسلت'' زه تاسي ته تبليغ کوم د هغه شي چې زه په استول سوی يم من التوحيد والاحکام او اخبار په دې سره چې نزول د عذاب به پر تاسي راسي که تاسي ايمان رانه وړی ''ولکني اراکم آه'' لکن زه تاسي وينم داسي قوم چې نه پوهيږي په دې چې معبود بالحق او قادر مطلق خدای ؑ دی او رسولان صرف منذرين دي او مبلغين دي لا معذبين يعني تعذيب ورکونکی څني مراد دی او عذاب ورکونکی خدای ؑ دی متی شاء.

**درويش وايي:** چې علم پوهان د نړۍ وايي چې جهل دوه قسمه دی، يو جهل مرکب بولي هغه دادی چې يو سړی پر غلط مذهب او دين وي يعني په هغه ناخبره وي لکن پر جهل علم نه لري، دده يقين وي چې زه پر حق مذهب او دين يم کفار و ددينا هر قسم کافر چې وي که مشرک وي او که مجوسي او که دهري او که يهودي او که نصراني وغير ذالک او ټول فرق د ضلال لکه معتزله، شيعه، کراميه، روافض، خوارج الی غيرها مما اخبر به المخبر الصادق ﷺ ستفترق امتي علی (۷۳) فرقة کلهم في النار الا الناجية الی اخير الحديث. ټول په جهل مرکب مبتلا دي، ولنعم ما قيل في بيان الجهل المرکب:

آن کس که نداند وبداند که بداند — درجهل مرکب ابد الدهر بماند

او بل جهل بسيط دی چې پر واقع علم نه لري او پر خپل جهل علم لري، ولنعم ما قيل في بيانه:

آن کس که نداند وبداند که نداند — او اسپ خود از گنبد فيروز جهاند

**پوه سه:** چې پر هر سړي لازمه ده چې واجبات د دين اسلامي به ټول ه پېژني تا چې
اداء يې کړي کما امر بها، او دغه هم لازمه ده چې منهيات شرعيه به هم ټول ه پېژني
تا چې ځان ځني وساتي، په روح البيان کې راغلي دي چې يو عابد صالح سړی ؤ لکن
قليل العلم بالاوامر والمنهيات خانه نشين ؤ او مريدان يې درلوده نکاح يې نه وه
کړې په دې سبب چې د خدای له عبادته سړی باسي، نفقه غواړي الى غير ذالک
اخير شهوت ډېر زور پر وکړی يوه خره يې رانيول چې که يو وخت قضاء شهوت ته
مجبور سي پر دې خره به يې کوي، دا خره مريدانو ډېره ښه ساتل، يوه ورځ د دې
صالح سړي زيارت ته يو عالم ورغلی دده په کاروبار کي يې فکر وواهه چې دی چې
په کور کې يو ازې ژوند کوي او ځان يې عبادت ته د خدای فارغه کړی دی، نو دا خره
دده په کور کې څه کوي؟ نو يې په سرای کي د خرې د ساتلو پوښتنه ځني وکړه، عابد
جاهل ورته وويل چې له زنی څخه مې په دې ځان ساتلی دی چې شهوت غلبه
راباندي وکړي، عالم ورته وويل چې دا خو هم حرام کار دی ولي چې رسول کريم ﷺ
له دې څخه نهي کړي دي، عابد ډېر وژړل او وه يې ويل چې نه وم خبر توبه يې وکښه
او پر ما مضیٰ يې ډېره ډېر وژړل، سمدستي يې مريدانو ته وويل چې ماته ماينه
راپيدا کړئ، هغو يوه ښځه په نکاح ور وغوښتل انتهى بحاصله.

فَلَمَّا رَاَوْهُ عَارِضًا مُّسْتَقْبِلَ اَوْدِيَتِهِمْ ۙ قَالُوْا هٰذَا عَارِضٌ مُّمْطِرُنَا ؕ

نو چې دوی وليدی عذاب (الضمير راجع الى ما تعدنا وهو العذاب) په
صورت کي د وريځي چې ښکاره سوه په عرض کي د اسمان چې روانه وه د دوی د
شپلې پر خوا، بعض روايات داسي راغلي دي چې تر دې دمخه پر دوی دوه کاله
باران بند ؤ ابتلاء لهم بالعذاب لعلهم يؤمنوا، او بعض روايات وايي چې پر دوی
باندي اته ورځي او اووه شپې سخته ګرمي خدای پاک مسلطه کړه چې د باندي خو
څه کوې په خونو کي دننه سېلاب د خولو يې پر بدنو روان ؤ، دوی خوشحاله سوه
او داسي يې وويل "قالوا هذا عارض ممطرنا" يو و بل ته يې استبشاراً وويل چې
هغه ده وريځ راغله چې پر موږ به باران وکړي (يعني قحط به دفع سي يا هغه
ګرمي. هود ورته وويل چې عارض ممطرنا نه ده لکه تاسي چې ګمان کوئ)

بَلْ هُوَ مَا اسْتَعْجَلْتُمْ بِهٖ ۭ رِيْحٌ فِيْهَا عَذَابٌ اَلِيْمٌ

بلکې هغه عذاب دی چې تاسي یې له هود څخه د ژر راتګ طلب کاوه، دا یو داسي باد دی چې په دې کې عذاب دی دردونکی "ریح" خبر لمبتداء محذوف ای هي ریح "فیها عذاب الیم" صفت د ریح دی "ریح" مؤنث سماعي دی.

تُدَمِّرُ كُلَّ شَيْءٍ بِاَمْرِ رَبِّهَا

چې هلاکوي هر شی یعني من انفسهم و من اموالهم من المواشي والزروع والبساتین وغیرها، یعني چې دا باد پر هغه شي تېرسي "بامر ربها" یعني طبعي کار د باد نه دی بلکې دا چار چلند په امر د خدای دی.

تاریخ وایي: چې ښځه یا کجاوه به یې د اسمان پر خوا دومره پورته کړه چې د سړي به خیال سو چې مچخ دی، راوي وایي چې اول چې دوی پوه سوه چې عذاب دی داؤ چې د عاد هغه کسان چې خارج به وه د وطن څخه ددوی یا هغه مالونه یعني مواشي ددوی باد ټوله پورته کړي وه په مابین کې د اسمان او د مځکې پر کور خلګو چې دا ولیدل په خونو ننوتل او دروازې یې په ځان پسي بندي کړې، باد به ورغلی دروازې به یې ورماتي کړې دوی به یې راویستل هوا ته به یې پورته کړل، بیا باد خدای پاک امر کړی چې ددوی پر ټولو بدنو رېګ راوارووي، نو باد هم هغسي وکړه چې ددوی بدنونه اووه شپې اته ورځي تر رېګو لاندي وه، بیرته خدای پاک باد امر کړی چې ددوی اجساد لغ کړي چې ورانسته او بد بوی یې سوی وه بیا خدای پاک باد امر کړی چې دا ټوله دریاب ته وغورځوه.

فَاَصْبَحُوْا لَا يُرٰٓى اِلَّا مَسٰكِنُهُمْ ۭ كَذٰلِكَ نَجْزِي الْقَوْمَ الْمُجْرِمِيْنَ

نو دوی وګرځېدل یعني قوم عاد چې نه معلومېدل بیله کورو ددوی، داغه رنګه موږ جزاء ورکوو هغه قوم ته چې مجرم وي، یعني الکافر المتمرد الباغي علی الله ورسوله "فاصبحوا" عطف دی پر قال الله "کذالک" ای جزاء مثل هذا الجزاء.

**پوښتنه:** پر هود په قرار د تاریخ لږو کسانو ایمان راوړی ؤ نو هغه په دې دوران کې چېري وه؟

**ځواب:** چي باد را نه ؤرا الوتی خدای پاک هود ؑ امر کړی چي د مؤمنانو لپاره يوه خطيره جوړه کړه او دی و مؤمنان په هغه خطيره کي کښېنئ باد کار نه په لري، خطيره د لرګو او وښوو څخه مرکب د بوال ته وايي لکه د پسو ګاش، او بعض وايي چي صرف خط يې پر راو ګرځاوه دا باد پر مؤمنانو او هود ؑ لکه باد صبا ښه سوړ او نرم تېرېدی، او خدای پاک و هود ؑ ته د قوم تر هلاک وروسته يو سل او پنځوس کاله عمر و کړی.

**درويش وايي:** چي مظهري تفصيلاً او روح البيان هم د عائشې ﷺ څخه روايت کړی دی چي وريځ يا باد به سو د رسول الله ﷺ مخ مبارک به تغيير محسوس کړی يعني لکه يو سړی چي وېرېږي، بغوي ؒ وايي چي عائشې ﷺ و عليه الصلوة والسلام ته وويل يا رسول الله خلک چي وريځ ويني خوشحالي کوي په اميد د دې چي اورښت به وسي او ته چي وريځ وينې عرف في وجهک الکراهة، مطلب د دې دا ؤ چي سبب د تغيير الوجه او د کراهت سبب ځان ته معلوم کړي، فقال ﷺ يا عائشة ما يؤمنوني انيکون فيه عذاب قد عذب قوم بالريح، او دې قوم چي عذاب وليدی فقالوا هذا عارض ممطرنا، او بل حديث د سيدتنا عائشة ﷺ راغلی دی چي هغه وخت چي باد تند سو، قال اللهم اني اسئلک خيرها وخير ما ارسلت به (يعني المطر) واعوذ بک من شرها وشر ما فيها وشر ما ارسلت به (يعني لقوم هود) چي باران به شروع سو د عليه الصلوة والسلام به کرب او بېقراري ولاړه او رنګ مبارک به يې پر خپل حال سو.

**درويش وايي:** چي دا حديث بخاري او مسلم هم روايت کړی دی، وروی مثله بادنی اختلاف الفاظه ابو داؤد، النسائي، ابن ماجه، والشافعي، وروی عن عباس ؓ مثله، وکذالک رواه البيهقي.

## وَلَقَدْ مَكَّنّٰهُمْ فِيْمَآ اِنْ مَّكَّنّٰكُمْ فِيْهِ

لام مؤطئه د قسم دی، موږ لوی قدرت ورکړی ؤ عاديانو ته په اجسامو کي او په اموالو کي.

**پوښتنه:** چي کلمه د ما موصوله ده يا موصوفه ده او کلمه د ان نافيه ده.

**پوښتنه:** کلمه د ما يې د نفي لپاره نه راوړه؟

خواب: تاچي تكرار د يوه لفظ د ما لازم نسي، والمعنى في الذي (چي ما موصوله سي) او في شيئ (که ما موصوفه سي) والمراد من الذي او شيئ هو القوة، او مال چي تاسي ته يا اهل مکه هغو نه تمکين نه دی درکړه سوی.

والحاصل: چي هغه عاديان موږ په باد سره هلاک کړه، نو ستاسي هلاک يا اهل مكه تر هغو اسانه دی ظاهرًا وان كانا دواړه متساويان بالنسبة الى قدرة خالق القوي والقدر، مقصد دادی چي تاسي اهل مكه بايد د هلاک څخه د عاديانو عبرت واخلئ او ايمان راوړئ بمحمد ﷺ.. بيت:

پند گیر از مصائب دیگران ..... تا نگیرند دیگران زتو پند

وَجَعَلْنَا لَهُمْ سَمْعًا وَّأَبْصَارًا وَّأَفْـِٔدَةً

موږ کړ څولي وه يعني خلقنالهم "سمع" چونکه مصدر دی پر قليل او كثير يې اطلاق كېږي، فلا يرد ان الخلق الكثير لايكون له سمعًا واحدًا وهذا قول المفسرين بمعنى اسماعًا "وابصارًا" سترګي "وافئدة" جمع د فواد ده يعني قلوبًا تاچي وپېژني په هغو زړو دغه نعم الهية او ذليل و وايي پر خالق د هغو شيانو او شكر يې بالايمان بالتوحيد ووايي او قول ته د هود غاړه كښېږدي.

فَمَآ أَغْنَىٰ عَنْهُمْ سَمْعُهُمْ وَلَآ أَبْصَارُهُمْ وَلَآ أَفْـِٔدَتُهُم مِّن شَيْءٍ

پس فائده ونه رسول دوی ته سمع ددوی او نه سترګو ددوی او نه زړو ددوی هيڅ فائده (كلمه د من زائده ده لپاره د استغراق د نفي ای شيئًا من النفع بشيئ من الاشياء المذكورة)

إِذْ كَانُوا۟ يَجْحَدُونَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُوا۟ بِهِۦ يَسْتَهْزِءُونَ ﴿٢٦﴾

ولي چي دوی وه چي د آياتو څخه د خدای چي معجزات د هود وې جحد كاوه "وحاق" ای نزل پر دوی هغه شی چي دوی په هغه سره پسخند واهه چي اتيان د عذاب دی ان لم يؤمنوا په خوله د هود النبي ﷺ.

وَلَقَدْ أَهْلَكْنَا مَا حَوْلَكُم مِّنَ ٱلْقُرَىٰ وَصَرَّفْنَا ٱلْـَٔايَٰتِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴿٢٧﴾

او په تحقيق موږ هلاک کړی شاوخوا ستاسي يا اهل مكة "من القرى" ای من

اهل القرى لکه حجر د ثمود او مئكه د سدوم چي د قرى ؤ د قوم لوط وه. او موږ مکرر راوړی دی د دلائلو او بيناتو يعني په بيان د قصص د قرى مهلكه په قرآن کريم کي. لعل په معنى د لام کی دی ای لکی يرجعوا اهل مكة عن كفرهم.

**پوښتنه:** د مخه يې اهل مكه مخاطب کړه په ما حولکم کي او د لعلهم ضمير او يرجعون چي هم مراد ځني اهل مكه دي غائب يې راوړی فائده يې څه ده؟

**ځواب:** دا له محسناتو څخه د عربي لسان دی چي په علم المعاني کي دې ته التفات وايي چي شپږ قسمه دی يعني د تکلم و خطاب ته، يا غيبت ته د خطاب غيبت يا تکلم ته د غيبت څخه و خطاب ته يا تکلم چي مثالونه د ټولو په قرآن کريم کي موجود دي او اهل د علم المعاني ټوله بيان کړي دي فافهم.

فَلَوْلَا نَصَرَهُمُ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ قُرْبَانًا اٰلِهَةً ۭ

نو ولي مرسته نه کوي ددوی سره او نه منع کوي من عذاب الله اذا وقع (بحذف المفعول ای هم) ماسوی له خدای څخه "آلهة" ای الهة يتقربون بها الى الله حيث قالوا هؤلاء شفعائنا عند الله.

**پوښتنه:** چي اول مفعول د اتخذوا الضمير الراجع الى الموصول دی کما قلنا بحذف المفعول، دوهم مفعول قربانا دی او الهة بدل يا عطف بيان دی.

بَلْ ضَلُّوْا عَنْهُمْ ۚ وَذٰلِكَ اِفْكُهُمْ وَمَا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ۝

بلکي غائب سوه له دوی څخه (عن نصرهم عند نزول العذاب او دوی کفارو ته ممتنع سوه مرسته غوښتل د ضال څخه چي مراد ځني بتان دي چي اوس ورک دي) دغه يعني اتخاذ د هغه شيانو چي دا يه شان وي چي په نېز د حاجت و استمداد ته ورک وي يعني بتان، دوی دروغ وايي چي دا زموږ شفعاء دي عند الله "وماكانوا" کلمه د ما مصدريه ده ای افتراهم انها الهة.

**پوښتنه:** چي ابن ابی شيبة له ابن مسعود څخه روايت کړی دی چي عليه الصلوة والسلام د سهار په لمانځه کي په بطن النخلة (چي د يو ځای نوم دی) قرآن وايه چي پېريان ورته راغله فلما سمعوه قالوا (يعني يو و بل ته) انصتوا چي معنی د صه ده او دا جنيان نهه کسه وه چي مشر يې زربعة ؤ، نو دا آيت نازل سو.

وَإِذْ صَرَفْنَآ إِلَيْكَ نَفَرًا مِّنَ الْجِنِّ يَسْتَمِعُونَ الْقُرْآنَ ۚ فَلَمَّا حَضَرُوهُ قَالُوٓا أَنصِتُوا ۖ

او چي مائل کړه موږ و تا ته څو نفره له جنیانو څخه (ابن عباس رضي الله عنه يې اووه کسه بولي) چي غوږ يې نيولی ؤ قرآن ته، نو چي دوی حاضر سوه قرآن ته يا رسول ته نو وويل بعضهم لبعض ساکت سئ چي دا قرآن واورو.

**فائده:** نفر تر لسو کم کسانو ته وايي او جمع يې انفار ده، جمله "يستمعون آه" حال ده له انفروا څخه.

فَلَمَّا قُضِيَ وَلَّوْا إِلَىٰ قَوْمِهِم مُّنذِرِينَ ﴿٢٩﴾

نو چي څه وخت د قرآن اورېدل ختم سوه (يعني د عليه الصلوة والسلام لمونځ پای ته ورسېدی، نو دوی ايمان راوړی او د عليه الصلوة والسلام سره يې ملاقات وکړی عليه الصلوة والسلام دوی امر کړه چي قوم ولاړسي تبليغ د ايمان ورته وکړي، وذالک قوله ﷺ) دوی راهي سوه و خپل قوم ته چي هغه له عذاب څخه د خدای بېرول او داسي يې قوم ته وويل:.

قَالُوا يَا قَوْمَنَا إِنَّا سَمِعْنَا كِتَابًا أُنزِلَ مِن بَعْدِ مُوسَىٰ

دوی وويل ای زموږ قومه موږ واورېدی يو کتاب (يعني بعض د هغه) چي نازل سوی وروسته تر موسیٰ ؑ، عطاء ؒ وايي چي دوی چي تخصيص وکړی د موسیٰ ؑ ولي چي د دوی دين يهوديت ؤ، او بعض مفسران وايي چي تخصيص د موسیٰ ؑ چي يې وکړی له دې سببه لان نزول التورات متفق عليه بين اليهود والنصاری بخلاف عيسیٰ ؑ والانجيل فان اليهود ينكرونهما.

مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ يَهْدِي إِلَى الْحَقِّ وَإِلَىٰ طَرِيقٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٣٠﴾

چي تصديق کونکی دی د هغه کتاب چي تر ده د مخه دی، چي هدايت کونکی دی و حق ته چي توحيد او نور عقائد حقه دي، او هغې لاري ته چي سمه ده من الشرائع والاحکام.

**پوهسه:** چي مصدقًا حال دی له فاعل څخه د انزل يا صفت ثاني د کتابًا دی.

يٰقَوْمَنَآ اَجِيْبُوْا دَاعِيَ اللّٰهِ وَاٰمِنُوْا بِهٖ يَغْفِرْ لَكُمْ مِّنْ ذُنُوْبِكُمْ

اى قومه زمونږ قبلونه وكړئ د قول د داعي الى الله والاسلام چي محمد ﷺ دى او ايمان راوړئ پر داعي الله خداى به وبخښي (يغفر مجزوم دى جواب د امر دى) بعض ستاسي ګنهونه (چي مظالم على الغير نه وي ولي چي حقوق الناس په ايمان نه بخښل كيږي بالاجماع)

وَيُجِرْكُمْ مِّنْ عَذَابٍ اَلِيْمٍ ۝

او تاسي ته به نجات دركړي د عذاب درد وركونكي څخه چي عذاب النار دى راوي وايي چي ددې نهه كسانو د جن په قوم كي اوويا (۷۰) كسو اسلام قبول كړى، او دا اوويا كسه ورسول الله ﷺ ته راغله په بطحاء كي د مديني په شپله كي يې د رسول الله ﷺ سره وكتل فقرء عليه القرآن فامرهم (يعني په بعض كارو سره) ونهاهم له بعض كارو څخه.

**مسئله**: له دې آيت څخه دا معلومه سوه چي رسول الله ﷺ مبعوث ؤ جن او انس دواړو ته او هيڅ نبي تر عليه الصلوة والسلام دمخه و انس او جن ته نه دى راغلى.

**سوال**: سليمان عليه السلام خو هم پر انس او جن امر درلودى؟

**ځواب**: سليمان عليه السلام د دين د تبليغ لپاره و جن ته مبعوث نه ؤ بلكي د تسخير له لاري ؤ، او په فتح الرحمن كي وايي چي عليه الصلوة والسلام مبعوث و ملكو ته نه ؤ، صرح به البيهقي في الباب الرابع من شعب الايمان، وفي تفسير الامام الرازي" والبرهان النسفي" حكايت الاجماع على ذالک، قال ابن حامد من اصحاب الامام احمد" ومذهب العلماء اخراج الملائكة عن التكليف والوعد والوعيد وهم معصومون كالانبياء عليهم السلام الا من استثنى كابليس وهاروت و ماروت على القول بانهم كانوا من الملائكة انتهى.

**درويش وايي**: چي بعض تحقيقات به په دې باره كي په تفسير كي د سورة الجن به راسي ان شاء الله تعالى.

**درويش وايي**: چي فقير تخمينًا څلوېښت كاله دمخه په عصمت كي د انبياء على نبينا وعليهم الصلوة والسلام يوه رساله تصنيف كړې د هغه وخت چي په

قندهار کي د يو عالم په خپل جامع مسجد کي دا خبره د جمعې په خطبو کي كرات و مرات تر خوله وتلې وه چي انبیاء عليهم السلام نه قبل النبوة او نه بعد النبوة د كبيره ګنو څخه معصوم وه، علماؤ د قندهار که څه هم هغه عالم په محکمه کي د قاضي د مرافعې په دلائلو سره ملامت کړی او ده هم خپله ملامتيا ومنله او توبه يې وکښل لکن علماؤ د قندهار و فقير ته وويل چي دا عالم په باور نه دی څو ورځي وروسته که يې په محاکمو د افغانستان کي قدرت پیدا کړی بیرته به دا خبره را وګرځوي، نو ته یوه رساله تصنیف کړه یعني په عصمت کي د انبیاء عليهم السلام موږ به ټوله دستخطونه او تقریظونه پر وکړو، دا بار پر فقير درونـد ؤ او فقيـر پـه درس د مدرسې هم بې اندازې مصروفو لکن د علماؤ د قندهار چي بعض يې زما همزولي وه او بعض تر ما مشران وه د هغو غوښتنه مې هم نسواي رد ولای، نو مې د خدای جل جلاله توفیق او د روحانيت څخه د رسول الله ﷺ مي طلب د مرستي وکړی، او نوم د رسالي مي ''کشف الغطاء عن عصمت الانبياء'' وضع کړی، او ډېر کتابونه، رسالي او فتاوی وي مي د خپل مذهب او د نورو مذهبو مطالعه کړې، نو په توفيق د خدای په لنډه موده کي رساله پای ته ورسېدل او علماؤ ته عرض سوه، د قندهار علماؤ همه وهمه چا تقريظ او چا امضاء پر وکړه، او د نېکه بخته په دغه وخت کي مشائخ د طریقت د هرات هم په قندهار کي موجود وه هغو هم امضاوي یا تقریظ پر وکړی، نو هغه رساله چهاپ سوه او په څو کلو کي كالعنقاء في جو السماء وګرځېده، اخیرًا مو دوباره پیدا کړه بیا چهاپ سوه چي اوس په کتب پروشانو کي د کوټي په اساني دستياب کېږي (دا وه جمله معترضه په تفسير کي)

وَمَنْ لَّا يُجِبْ دَاعِيَ اللّٰهِ فَلَيْسَ بِمُعْجِزٍ فِي الْأَرْضِ

او څوک چي قبلونه ونه کړي د دعوت د بلونکي و خدای ته چي رسول الله ﷺ في الوقت ؤ وان كان الحكم عامًا نو نه دی هغه څوک عاجزه کونکی یعني د خدای په ځمکه کي یعني که خدای اراده د تعذيب د هغه وکړي هغه دي خدای عاجزه کړي.

وَلَيْسَ لَهٗ مِنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَآءُ ۚ اُولٰٓئِكَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ۝

او نسته هغه لره ما سوی له خدایه دوستان چي له عذابه د خدای دې خلاص

کړي (دا جمله حال ده له فاعل څخه د ليس بمعجز) دغه کسان دي په لويه ګمراهي کې، ولې چې هدايت محصور دی په اتباع الرسول د هر زماني چې وي.

اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ الَّذِیْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَلَمْ يَعْیَ بِخَلْقِهِنَّ

آيا علم نه لري دوی (الهمزة للانکار يعني لري يې لان نفي النفي اثبات والواو للعطف على مقدر تقديره اينکرون هؤلاء الكفار عن البعث بعد الموت ولم يروا ولم يعتقدوا، والمراد كفار مكة لكن الحكم عام، ولې د لويې وچې د هندوان ټوله پر هم دغه عقيده دي او نور هم په نړۍ کې مشرکان په دغه عقيده موجود دي) دا چې الله پيدا کړي دي اسمانونه او مځکه او نه دی ستړی سوی او نه عاجزه سوی دی د دوی په پيدا کولو کې، ولې چې قدرت د ذات دده عزوجل مقتضی ده، وما هو مقتضى الذات لايتغير ولا ينقص بالايجاد ابد الآبدين.

بِقٰدِرٍ عَلٰۤى اَنْ يُّحْیِۦَ الْمَوْتٰى ؕ بَلٰۤى اِنَّهٗ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ قَدِيْرٌ ۝

او الله عزوجل قادر دی پر دې باندې چې ژوندي کړي مړي يوم البعث. هو په تحقيق هغه پر هر شي قادر دی "بقادر" مظهري وايي چې با زائده ده واسم الفاعل في محل النصب على انه مفعول ثاني "بلى آه" جواب د نفي دی انه تعليل د هغه دی.

وَيَوْمَ يُعْرَضُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا عَلَى النَّارِ ؕ اَلَيْسَ هٰذَا بِالْحَقِّ ؕ قَالُوْا بَلٰى وَرَبِّنَا ؕ

**پوه سه:** چې يوم منصوب دی په اضمار د قول تقديره يقال لهم يوم آه هغه ورځ چې پېشول کېږي کافران يعني منکر د بعث بعد الموت څخه پر اور يعني دوږخ دوی ته به وويل سي "اليس هذا" اى العذاب بالنار وليست اشارة الى النار مؤنث سماعًا يعني چې تاسې په دنيا کې انکار څني کاوه "بالحق" صحيح او واقع شی "قالوا بلى" کفار په جواب کې ووايي چې هو حق دی "وربنا" زموږ دي قسم په رب سره زموږ وي.

**تنبيه:** دوی رب په وحدانيت سره وپېژندی او اقرار يې وکړی لكن لاينفعهم المعرفة والاقرار به في تلك الدار عند معاينته وانما النافع لهم هو الاقرار بربوبيته تعالى في الدنيا وقدرته تعالى.

قَالَ فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنتُمْ تَكْفُرُونَ

"قال" په معنی د يقول دی (وجه يې: دا قول خو په مستقبل کي دی چي ورځ ده، او قال ماضي ده وجه التعبير بالماضي ليقن وقوعه کالماضي) خدای ورته وايي يا ملائکه په امر د خدای، نو وڅکئ عذاب ليس من ذوق الفم بل بمعنی ورئ اوس، نو کلمه د فاء يې ددې لپاره راوړه چي حق والی د عذاب بالنار سره د انکار ددوی په دنيا کي سبب دی د ذوق "بما کنتم تکفرون" په سبب د کفر ستاسي په دنيا کي.

**پوه سه:** چي معنی د امر يعني فذوقوا اهانة او سپکاوی او توبيخ دی ددوی.

فَاصْبِرْ كَمَا صَبَرَ أُولُوا الْعَزْمِ مِنَ الرُّسُلِ

الفاء للسببية يعني ته په دې پوه سوې چي دوی ته به عذاب النار په اخرت کي رسيږي، نو ته صبر وکړه يا محمد (ﷺ) يعني ددوی له انتقام څخه غم مه کوه "کما صبر" مفعول مطلق دی د فاصبر ای صبرًا مثل صبر "اولی العزم" چي لرونکي وه د صبر او ثبات او جد "من الرسل" يعني تر تا دمخه وه ولي ته هم د جملي څخه د هغو يې.

**درويش وايي:** چي په اولو العزم کي رسولانو اختلاف دی ابن زيد وايي چي هر رسول صاحب د عزم او او حزم او رای وکمال عقل دی.

**پوه سه:** چي رسول دلته په معنی د مطلق نبي دی لا المعنی المصطلح چي رسول هغه دی چي صاحب د کتاب او شريعت متجدده وي او نبي عام دی لان ذالک الاصطلاح لايتم کما في کتب العقائد ولي چي رسولان (۳۱۳) دي او کتابونه (۱۰۴) دي الايتکلف کما اختاره المولی شمس الدين الخيالي في حاشية شرح العقائد النسفي، او بعض مفسران وايي چي انبياء عليهم السلام ټول اولوا العزم دي الا يونس بن متی العجلة منه علی قومه العذاب حتی خرج منهم ورکب في الفلک وقصته طويلة مذکورة في موضعه من القرآن يعني سورة يونس، ځکه وعليه الصلوة والسلام ته خدای امر ورکړی ولاتکن کصاحب الحوت ای في العجلة، او بعض آدم عليه السلام ورسره ملګری کوي لقوله تعالی في قصة اکل آدم من الشجرة الممنوعة ولم نجد له عزمًا، او بعض مفسرين عدد معين اولوا العزم بولي په عدد کي هم اختلاف کثير دی وعند

الفقير القول الاول اى قول ابن زيدؒ هو الاولى والاليق بحال الانبياء علیہم السلام.

وَلَا تَسْتَعْجِلْ لَّهُمْ ۚ كَاَنَّهُمْ يَوْمَ يَرَوْنَ مَا يُوْعَدُوْنَ ۙ

ته تلوار مه کوه په طلب کي د نزول د عذاب پر قريشو فانه نازل بهم في وقته الموعود، دا نهي د دې لپاره خداى پاک عليه الصلوة والسلام ته وکړې چي دى مبارک د ډېرو مخالفاتو څخه د قوم زړه يې تنګ سوى ؤ، نو زړه يې دا غوښته چي ژر عذاب پر نازل سي، فامر من الله عزوجل بالصبر وترک الاستعجال واخبر في الآية الماضية و الآتية بقرب نزول العذاب عليهم حيث قال "كانهم يوم يرون مايوعدون" ګويا دوى هغه ورځ چي دوى ويني هغه چي ددوى سره وعده کړه کېږي يعني من العذاب في الآخرة.

**سوال:** تاسي د دې آيت په شان نزول کي وويل چي په دې آيت کي خداى عزوجل و عليه الصلوة والسلام ته وعده د قرب د نزول عذاب ورکړه او سره د دې چي عذاب الآخرة ډېر وروسته دى؟

**ځواب:** ماهو آتٍ فهو قريب وما مضى فهو بعيد فافهم.

لَمْ يَلْبَثُوْۤا اِلَّا سَاعَةً مِّنْ نَّهَارٍ ؕ بَلٰغٌ ۚ فَهَلْ يُهْلَكُ اِلَّا الْقَوْمُ الْفٰسِقُوْنَ ۟

موږ درنګ نه دى کړى يعني في الدنيا الا ساعة من نهار.

**سوال:** رائي کوتاه وګڼل زمانه د لبث د دوى په دنيا کي او سره د دې چي بعض کافران سل کاله بعض دوه سوه کاله بعض څلور سوه کاله عمر درلودلى ؤ؟

**ځواب:** له ډېر خوف څخه د عذاب د يوم القيامة عمر د دنيا هر څه چي ؤ دوى ته کوتاه معلوم سو، حتى چي د يوه ساعت د ورځي اطلاق يې پر وکړى، او بل ځواب دادى چي ما مضى که څه هم طويل وي داسي ګڼل کان لم يکن.

**پوه سه:** چي جمله د کانهم په ځاى کي د علت د عدم الاستعجال راغلې ده في طلب تعذيب الکفار

"بلاغ" اى دغه چي تاته نصيحت په وکړه سو يا د غه سورة احقاف يا قرآن و ما فيه من البيان بلاغ من الله اليکم اى کفاية لکم يا تبليغ الرسول.

**فائده:** بلاغ چي يې نکره راوړى لپاره د تعظيم.

"فهل يهلک" الاستفهام للانكار اى لايهلک بالعذاب اذا اتى، مګر هغه قوم چي له طاعت څخه د خدای عزوجل سرکښه وي، قال الزجاج تأويله مع رحمة الله العظيمة وفضله العامة الا القوم الفاسقون، بعض مفسرين وايي چي مافي القرآن آية ارجى لرحمة الله من هذه الآية للمؤمنين، ولي يې استثناء يوازي د فاسقانو وکړه يعني کافران او مؤمنان خو بحمد الله فاسقان نه دي.

**درويش وايي:** چي بحمد الله وحسن توفيقه لهذا العبد الضعيف له تفسير څخه د سورة الاحقاف پر يوولس (۱۱) بجې د ورځي د جمعې پر دوولس (۱۲) تاريخ د رمضان المبارکة سنه (۱۴۳۲ هـ) فارغ سوم، تر دې وروسته تفسير د سورة محمد (ﷺ) شروع کېږي ان شاء الله تعالى، اللهم وفقني لماتحب وترضى.

تفسير ايوبي حنفي د نصيراحمد احمدي لخوا سکين او pdf سو. د دعا محتاج احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

شهر رمضان الذي انزل فيه القرآن هدى للناس

سورة محمد مدنية وهي ثمان وثلثون اية وفي اربعة ركوعات

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَضَلَّ اَعْمَالَهُمْ ①

هغه كسان چي كفريې مختاره كړى وي او منع كوي نور خلك له دخول څخه په اسلام كي، او يا معنى داده چي منع كوي له دخول څخه په اسلام كي (نو پر اول تقدير صدوا متعدي دى مفعول يې محذوف دى اى الناس او پر دوهم تقدير لازمي دى اى المنع من الاسلام) قال في الكشف چي ثاني احتمال اظهر دى لان الصد عن سبيل الله هو الاعراض عما جاء به النبي ﷺ.

**درويش وايي:** چي مظهري" دا نه ده بيان كړې چي دا سورة مكي او كه مدني دى چي په نورو سورتونو كي دا بيان ده كاوه، علامه بغدادي" په روح المعاني كي وايي چي په نيز د اكثرين دا سورت مدني دى او استثناء د بعض آيتو يې نه ده څني كړې، وعن ابن عباس رض وقتادة انها مدنية الا قوله تعالى "وكاين من قرية الى اخيره" دليل يې دا وايي چي رسول الله ﷺ چي د هجرت په نيت و مدينې ته له غاره څخه د غره چي دى د كفارو له لاس پكښي پټ ؤ راووتى او كعبې شريفي ته يې وكتل داسي يې وويل والله انت احب بلاد الله الى الله وانت احب بلاد الي (يعني ماته) او كه چېري ستا اهل زه نه واى ايستلى يعني و هجرت ته يې نه واى مجبوره كړى لم اخرج منك فانزل الله تعالى هذه الآية، نو دا آيت په اصطلاح مكي بولي بناءً على ان ما نزل في طريق المدينة قبل ان يبلغها النبي ﷺ اعني ما نزل في سفر الهجرة من المكة في الاصطلاح.

**فائده:** ضمير مستتر په "اضل اعمالهم" كي راجع و خداى ﷻ ته دى يعني خداى ج ضائع كړه اعمال ددوى.

**پوه سه:** چي مراد څني اعمال حسنه ددوى دي لكه صلة الرحم وفك العاني واطعام الضيف الى غير ذالك، ولي چي دا كارونه دوى لوجه الله نه كول لكفرهم به تعالى، نو دې عملو لره ثواب په اخرت كي نسته البته په دنيا كي يې خداى ج عوض وركوي فضلاً من الله عزوجل.

وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَآمَنُوا بِمَا نُزِّلَ عَلَىٰ مُحَمَّدٍ

او هغه کسان چي ايمان يې راوړی وي او اعمال صالحه هم کوي او ايمان يې راوړی وي پر هغه کتاب چي نازل کړه سوی دی پر محمد ﷺ.

**فائده:** تخصيص د منزل عليه چي يې وکړی په مايجب الايمان به تعظيمًا له، او بل تنبيه يې وکړه پر دې چي ايمان نه پوره کېږي بېله ايمانه پر رسول الله ﷺ لان الايمان به ﷺ اصل وشامل لجميع مايجب في الايمان من الاعتقاديات كما لايخفى.

وَهُوَ الْحَقُّ مِن رَّبِّهِمْ ۙ كَفَّرَ عَنْهُمْ سَيِّئَاتِهِمْ وَأَصْلَحَ بَالَهُمْ ۝٢

"وهو الحق من ربهم" دا جمله حال ده له ما نزل څخه او دغه ما نزل على محمد ﷺ دی له جانب څخه د خدای ﷻ، او خدای به وبخښي دوی ته ګنهونه په سبب د ايمان او اعمال صالحه ؤ "واصلح بالهم" او خدای به يې ښه کړي په دنيا کي بالنصر على الاعداء، وتوفيق الطاعة والحفظ من المعاصي وتسلط الشيطان، خدای به غلبه ورکړي پر سلطان الى غير ذالک من النعيم الدنيوية او په اخرت کي به خدای ﷻ دار الخلود جنت ورکړي او نعيم مقيم هوري ورضوان الله اكبر من كل ذالک، او ابن عباس رض د نعمت دنيوي تفسير په عصمت سره کړی دی ايام حيوتهم، او له ابن عباس رض څخه روايت دی چي "الذين كفروا وصدوا عن سبيل الله" هم مشركوا اهل مكة والذين آمنوا الخ انصار المدينة رض.

**فائده:** مبتداء چي خبر يې معرف باللام وي يفيد الحصر يعني حقيت په ده کي حصروي كما عرف في النحو، بعض مفسرين وايي چي حقيت د قرآن دادی چي ناسخ د ټولو کتابو دی او دی بيا نه نسخ کېږي ابدًا.

**درويش وايي:** چي ابن عباس رض اشد د انواع د كفرة ؤ ذكر کړی دی او اكمل د انواع د الذين آمنوا وعملوا الصالحات يې ذكر کړی دی، حصر يې غرض نه دی فلا يرد عليه ما اورده بعض المفسرين ان اللفظ يعني الذين كفروا والذين آمنوا عام دی فافهم.

ذَٰلِكَ بِأَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا اتَّبَعُوا الْبَاطِلَ

(ذالک) په تأويل د مفرد ای المذكور يعني دا اضلال د كفارو او اصلاح د مؤمنانو، وهذا التأويل په اشاره و ډېرو شيانو ته په لفظ مفرد د اسم الاشارة شائع

ذائع، وهكذا حال الضمير المفرد الراجع الى الاشياء الكثيرة في بعض المواضع) (بان) په دې سبب چې كافرانو متابعت كړې دى د باطل يعني د شيطان (باطل د شيطان د نومانو څخه يو نوم دى)

وَاَنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّبَعُوا الْحَقَّ مِنْ رَّبِّهِمْ ۚ كَذٰلِكَ يَضْرِبُ اللّٰهُ لِلنَّاسِ اَمْثَالَهُمْ ۝

او په تحقيق هغه كسانو چې ايمان يې راوړى دى متابعت يې د حق نازل كړى دى د خداى له خوا چې قرآن كريم دى "كذالك" اى ضربًا مثل ذالك بيانوي خداى د خلكو ته (نو ضمير راجع دى ناس ته او يا ضمير راجع دى و مذكورينو ته د دواړو ډلو، فاللام ح ء للاجل فالمعنى يضرب لاجل الناس يعني چې دوى عبرت څني واخلي امثال الفريقين حيث جعل الله اتباع الباطل مثلاً لعمل الكفار والاضلال مثلاً لخيبتهم واتباع الحق مثلاً للمؤمنين وتكفير السيئات مثلاً لفوزهم.

فَاِذَا لَقِيْتُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَضَرْبَ الرِّقَابِ ط

پس چې تاسي ملاقي وګرځئ ايها المؤمنين د هغه كسانو سره چې كفر يې كاوه.

**پوهه:** چې ملاقات په اصطلاح د علم المغازي جنګ ته وايي "فضرب الرقاب" مفعول مطلق دى د فعل محذوف والاصل فاضربوا الرقاب ضربًا، بيا يې فعل څني حذف كړى او مصدر يې په ځاى كي وړو ودراوه مضافًا الى المفعول اى الرقاب لپاره د تاكيد والاختصار به اى المفعول مراد دى قتل دى يعني وژنئ يې، دلالت پر دې چې كه ممكنه وه پر رقبه يې په توره واهه چې ژوندي نه سي پاته غالبًا بخلاف سائر الجراحات ولي د هغو سره د ژوند امكان سته كما لايخفى.

حَتّٰٓى اِذَآ اَثْخَنْتُمُوْهُمْ فَشُدُّوا الْوَثَاقَ ۙ

يعني تر هغه پوري چې ډېر مو پكښي ووژل، د اثخان معنى غلطت دى اى اغلظتم في قتلهم "فشدو الوثاق" يعني قتل يې بند كړئ او بنديان كوئ ياست او لاسونه او پښې يې وروتړئ په تناؤ حتى چې ونه تښتي، والوثاق بفتح الواو وكسرها هغه تناؤ ته وايي چې سړى په ترل كيږي.

فَاِمَّا مَنًّا بَعْدُ وَاِمَّا فِدَآءً

منا او فداء دواړه مفعول مطلق د فعل محذوف دي اى وروسته تر بندي كولو

او شد الوثاق اما تمنون عليهم منا يعني احسان به ورسره وکړی مفت به یې اله کړی او تفدون فداء په مال سره یا په یو بندي د مسلمانانو يعني په فدیه ورکولو سره بې خوشي کړی.

**پوه سه:** چي البغوي وايي چي علماء ددې آيت په حکم خلاف سره لري بعض وايي چي دا آيت منسوخ بقوله تعالى: اقتلوا المشركين حيث وجد تموهم. ودې قول ته ذهاب کړی دی، قتادة، الضحاک، السدي و ابن جريج رحمهم الله وهو قول الاوزاعي وبه قال ابو حنيفة في رواية، لكن مظهري يې منسوخ نه بولي. ولي چي مړيان کړځول د بنديانو کافرانو روا دی باجماع الائمة او ژوندي يې پرېښول چي د مسلمانانو اهل ذمه وګرځي په نېز د ابو حنيفة او امام مالک او بعض علماء وايي چي دا آيت محکم دی يعني منسوخ نه دی بلکې ددې آيت معنی داده چي امير المؤمنين ته اختيار دی په هغه رجالو کي د بنديانو کافرانو چي ذوی العقول او بنديان سي (۱) که يې وژني (۲) کي يې مړيان کوي (۳) او يا که احسان ورسره کوي بلا عوض يې خوشي کړي (۴) که فديه مالي ځني اخلي جبرًا (۵) او يا د مسلمانانو بنديانو چي د دوی په قيد وي تبادله کوي، دا د ابن عمر مذهب دی او د حسن او عطاء و اکثر الصحابة، والعلماء وهو قول الثوري والشافعي واحمد واسحاق، قال ابن عباس چي خدای چي مسلمانانو ته قدرت تامه عامه ورکړي انزل الله عزوجل في الاساري فاما منا بعد و اما نداء وهذا هو الاصح والمختار لانه عمل به رسول الله ﷺ والخلفاء بعده.

**درویش وايي:** وهذا التخيير بين الخصال الاربع په قول د روح البيان ثابت عند الشافعي، ومنسوخ عندنا بقوله تعالى فاقتلوا المشركين حيث وجد تموهم.

**درویش وايي:** چي په مسئله کي د بنديانو د کافرانو اختلافات د مذاهبو او قيل وقال د مفسرين هم ډېر دي و اصل موضع هذه کتب الفقهاء لكل مذهب لهذا په دې ما ذکرنا د تفسير په بيان کي کفايت دی بعض مفسرين د مذهب مراعات.

حَتَّىٰ تَضَعَ الْحَرْبُ أَوْزَارَهَا

(ای اهل الحرب ای المجاهدین) يعني درانه شيان چي مراد ځني اسلحه ده حرب ده، د تضع الحرب معنی داده چي جنګ قطع سي بالكلية حتی چي نسي پاته يا مسلم

يا مسالم، او بعض مفسرين وايي چي مراد له اوزارو څخه ګنهونه دي حربيان يعني مشركان خپل ګناهونه کنبېږدي چي د شرک او کفر څخه توبه وکاږي ويؤمنوا بالله ورسوله. وقيل چي ستاسي حرب او قتال اى مسلمانانو اوزار د مشرکانو او قبح افعال د دوى څني و غورځوي بان يسلموا، والحاصل اثخنوا المشركين بالقتل والاسر (په بندي کولو سره حتى يدخل اهل الملل المختلفة الكافرة من اليهود والنصارى وغيرها كلها في الاسلام مخافة ان يفعل بهم ما فعلوا بالمشركين.

**فائده**: خداى پاک وګرځول انقطاع د حرب پاى او فرض الضرب او الشد او المن او الفداء او للمجموع يعني هذه الاحكام تكون جارية حتى لايوجد حرب مع المشركين ويكون الدين كله لله ويزول شوكتهم بالكلية.

**پوه سه**: چي ټوله ملل چي په اسلام کي داخلېږي او کفر، شرک او دهريت چي د مځکي دمخه څخه ټولېږي هغه به هغه وخت معرض ته د وجود راځي چي عيسىٰ بن مريم له اسمان څخه راکښته سي، له عمران بن حصين ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وويل همېشه به يوه طائفه پر دين حق جنګېږي چي غالبه به وي پر من خالفهم وحاربهم حتى يقاتل اخرهم المسيح الدجال، رواه ابو داؤد.

ذَٰلِكَ ۛ وَلَوْ يَشَاءُ اللَّهُ لَانتَصَرَ مِنْهُمْ وَلَٰكِن لِّيَبْلُوَ بَعْضَكُم بِبَعْضٍ ۗ

(ذالک، خبر د مبتداء محذوف دى اى الامر في الكفار ذالک المذكور يا مبتداء ده خبر يې محذوف دى اى ذالک ثابت واقع او يا مفعول د فعل محذوف دى اى افعلوا بهم اى الكفرة ذالک المذكور من الار الابعة) که د خداى اراده سي د انتقام د دغو کفارو څخه بېله تعب او سترېيا ستاسي په جهاد کي د دوى سره هغه انتقام خداى اخستاى سواى چي ټوله يې هلاک کړي واى په يو آفت سماوي يا ارضي كما وقع لغيرهم "ولكن" يعني امركم بالقتال والجهاد معهم "ليبلوا بعضكم ببعض" تاچي امتحان وکړي د بعض ستاسي په بل بعض سره يعني امتحان د مؤمنانو په کافرانو سره بان يكلفوا شدائد الجهاد من الخوف والجوع وتحمل الجراحات الى غير ذالک، نو دوى به مستحق د ثواب وګرځي په ورځ د قيامت بالتنعيم المقيم في الجنة و فوق ذالک رضى الرحمن ورؤيته تعالى بلا كيف، او د کافرانو امتحان به وکړل سي په مؤمنين سره چي عقاب عاجل په دنيا

کي د مؤمنانو له خوا او وینې حتی بعض د دوی به له کفر څخه توبه وکاږي او اخوان المؤمنين به وګرځي بعد ان کانوا اعداء لهم، او بعض د کفارو چي په اسلام داخل نه سي مستحق د عقاب بالنار وګرځي په ورځ د قيامت.

**پوه سه:** چي دا بيان ؤ د حکمت الهي په امر سره د مؤمنانو بالقتال مع الکفار مع قدرة الله على الاستيصال لهم بدون التجشم للمؤمنين بالقتال.

وَالَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَلَن يُضِلَّ أَعْمَالَهُمْ ④

هغه کسان چي ووژل سي په لاره کي د خدای ج چي جهاد دی او جام نوشين د شهادت نوش کړي.

**پوه سه:** چي جمله "فلن يضل اعمالهم" خبر د موصول ده چي الذين ؤ چي متضمن معنى لره د شرط، نو ځکه يې په خبر کي فاء الجزاء راوړه، والمعنى مو بډ نه باطلوو اعمال حسنه ددوی چي اعلى تر ټولو يې شهادت في سبيل الله ؤ په هغه معاصيو سره چي قبلاً يې کړي وي بلکې سيئات قبليه يې وربخښو او د حسناتو بدله يې ورکوو، له انس رض څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل چي شهداء دري قسمه دي (۱) هغه مؤمن چي ځان يې ايستلی وي او مال (لکه د سواري آس او آلات د حرب) په نيت د ثواب في سبيل الله يريد ان يقاتل ويقتل ويکثر سواد المسلمين (په ځان سره ډېروي جماعت د مسلمانانو) فان مات (په خدايي مرګ په دغه جهاد کي) او قتل (يا ووژل سي په دغه جنګ کي) غفرت له ذنوبه کلها، واجير من عذاب القبر (او پناه ورکړه کېږي د عذاب څخه د قبر) ويؤمن من الفزع الاکبر (او امان ورکړه کېږي د لويي ډېري چي په ورځ د قيامت اهل محشر پکښي واقع کېږي) ويزوج من الحور العين (او دده سره جوت وي حور عين (جمع د حورا ده يعني ډېري حوري) چي رنګونه يې سپين وي زړه ته مائل او عين جمع د عينا ده چي غټي سترګي يې وي په طول کي) ويحل حلة الکرامة (او په ده اغوستل کېږي کالي د کرامت او عزت لکه په دې دنيا کي په زوم سره کوي) ويوضع على رأسه تاج الوقار (يعني تاج د عزت) (۲) دوهم قسم هغه مجاهد دی چي خرج بنفسه وماله محتسبًا (په نيت د ثواب نه د غنيمت) او اراده يې دا وي چي زه دي کفار ووژنم او زه دي نه ووژل کېږم (په دې کي غرض دا وي چي ډېر کافران مره کړم) فان

مات او قتل كان ركبتيه مع ابراهيم خليل الرحمن يكن يدى الله (په حضور كي د خداى بلا كيف) في مقعد صدق عند مليک مقتدر (۳) رجل خرج بنفسه وماله محتسبًا يريد ان يقتل (چي كافران زه مړه كړم) ويقتل (او بيا زه يې ووژل سم) فان قتل او مات جاء يوم القيامة شاهرًا سيفه (توره يې له تېكي كښلې وي) واضعة على عاتقه (او ايښي يې وي پر اوږه) والناس جاثون على الركب (او خلک ناست وي پر زنګنو، يعني على هيئة التشهد لضيق المجلس نو دا قسم مجاهدين خلګو ته ووايي يو څه لار نه راكوئ موږ ته (فانا بدلنا دمائنا واموالنا) خلک لار ورکړي دوى ورسي پر منبرانو د نور كښېني تحت العرش ينظرون كيف يقف بين الناس يعني د هغو سيل كوو ولي دوى لره خو حساب نسته لايجدون الم الموت ولايفتنون في البرزخ او امتحان نه ځني اخستل كېږي په برزخ يعني په قبر كي لايفزعهم الصيحة، نه يې بېروي صيحه د اسرافيل ولايهمهم الحسان د حسبان په قصه كي نه وي او نه بېرېږي ولا الميزان ولا الصراط ولا يسئلون الا اعطوا ولايشفعون في شيئ الا شفعوا (شفاعت د يو چا نه كوي مګر شفاعت قبلېږي) ويعطون من الجنة ما احبوا، والله اعلم. روايت خو يې مظهري كړى دى لكن نه يې يو كتاب ته د حديثو نسبت كړى دى او نه يې تر انس ﷺ پوري سند ذكر كړى دى.

سَيَهْدِيهِمْ وَيُصْلِحُ بَالَهُمْ ۝٥

خداى به هدايت ورته وكړي (اما في الدنيا فالى صراط مستقيم وفي الآخرة للدرجات العلى) او ښه به وګرځوي حال ددوى في الدارين، اما في الدنيا فمن لم يقتل نوم به يې درج كړل سي په قتلى ؤ كي تغليبًا، او يا له دې سببه چي دغه نا وژل سوي خلک خرجوا للقتال او په دې سره راضي وه چي قتل سي او ثواب د مقتولينو خداى وركړي واما في الآخرة هغه مجاهد كه ووژل سي او كه ونه وژل سي ګنهونه يې تېوله خداى وربخښي حسنات يې تېوله، خداى ﷻ له دوى څخه راضي وي، د خواصو څخه د شهداؤ دى چي هر څوک چي جنت ته ورسي بيا يې دنيا ته تلل زړه نه غواړي كه دنيا ومافيها وركوي الا الشهيد فانه يتمنى الخروج الى الدنيا مرارًا ليقتل في سبيل الله كما قتل اولاً.

**فائده:** په حديث شريف كي راغلي دي "يغفر للشهيد كل شيئ (يعني من

حقوق الله) الا الدين) روح البيان وايي چي مراد له دَين څخه كل ما كان من حقوق العباد كالغصب واخذ المال بالباطل لكه سرقة وقتل العمد والجراحة وغيرها كالغيبة والنميمة (د يو چا شيطانت و بل ته) او په چا پسخند وهل فان هذه الحقوق لابد في كلها من استيفائها الى مستحقها.

وَيُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ عَرَّفَهَا لَهُمْ ۝

او دوى يعني شهداء في سبيل الله به داخل سي و جنت ته چي خداى تعريف او بيان د منازلو و دوى ته بيان كړي دي حتى چي هر جنتي خپل استوګن ځاى ته ولاړ سي من غير استدلال داسي به هر يو خپل جنت ته ور روان وي لكه چي د دوى د استوګني ځاى له هغه وخت څخه چي پيدا سوي وه، وهذا قول اكثر المفسرين، ويدل عليه ما روى عن ابى هريرة رضي الله عنه قال كان رسول الله ﷺ والذي بعثني بالحق ما انتم في الدنيا باعرف بازواجكم ومساكنكم من اهل الجنة بازواجهم ومساكنهم، رواه ابن جبير والطبراني وغيرهما، ومعنى الحديث ظاهر، پښتو ژباړي ته ضرورت نه لري.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِن تَنصُرُوا اللَّهَ يَنصُرْكُمْ وَيُثَبِّتْ أَقْدَامَكُمْ ۝

اى هغه كسانو چي ايمان يې راوړى دى كه نصرت د دين د خداى وكړئ او مرسته د رسول د خداى وكړئ خداى به تاسي ته نصرت در كړي پر دښمنانو ستاسي او محكمه به كړي پښې ستاسي چي حقوق الله او د جهاد في سبيل الله حقوق تر تولو كما هو حقها پر ځاى كړئ.

**يوه سه:** چي ټينګول د پښو كنايه ده د صبر او ثبات په دغو ځايو كي.

وَالَّذِينَ كَفَرُوا فَتَعْسًا لَّهُمْ وَأَضَلَّ أَعْمَالَهُمْ ۝

ابن عباس رضي الله عنه وايي بعدًا لهم يعني عن رحمت الله، وقال الضحاك خيبة ناكامي ده دوى لره، قال الفراء نصب على المصدر لفعل واجب الحذف اى سماعًا اى تعسوا تعسًا آه لكن په هر صورت دا ښېرا ده، قاموس ډېري معناوي د تعسًا بيان كړي دي حيث قال التعس الهلاك والعثار پښه ښوويدل يا نوک وهل والسقوط غوځاريدو ته وايي، والشر والبعد والانحطاط "واضل اعمالهم" ګمراه او باطل سوه عملونه د دوى، ولي د دوى عملونه في طاعة الشيطان.

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَرِهُوْا مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاَحْبَطَ اَعْمَالَهُمْ ۝

دغه تعس او اضلال په سبب ددئ دیٔ چي دوی مکروه بالله (يعني سحر وغيره) وباله القرآن الكريم ولي په هغه كي توحيد د خدایٔ سته چي ددوی د شرک سره منافي دی او داسي تكاليف لكه لمونځونه وغيره چي دوی الفت نه ورسره درلودی او حرمت د داسي شيانو لكه زنا مثلاً چي ددوی د اشتها سره برابره وه.

"فاحبط اعمالهم" نو خدای عزوجل هغه عملونه ددوی چي په ظاهره به حسنه وه لكه اطعام الطعام و فك الايسر وصلة الرحم ټول لغوه كړي او بې ثوابه كړي يې دي ولي چي احباط د لوازمو څخه د كفر دي.

**پوه سه:** چي احبط اعمالهم او اضل اعمالهم په معنى كي سره يو دي نو لپاره د تاكيد د اياس دوی يې مكرر راوړه.

اَفَلَمْ يَسِيْرُوْا فِى الْاَرْضِ

آيا تګ او سفر نه كوي اهل مكه په ځمكه كي يعني په اطراف بعيده ؤ كي د ځمكي، الاستفهام للانكار والفاء للعطف على مقدر تقديره الم يخرجوا يعني من مكة فلم يسروا في الارض.

**درويش وايي:** چي دا قاعده مطرد (جاري) ده في جميع القرآن العزيز يعني چي وروسته تر همزه د استفهام حرف عطف راسي يا واو يا فا يا ثم نو حرف عطف به چي دلته فاء د عطف پر مقدر وي كما مر تقديره في هذا المقام ددې قانون سر دا دی چي همزه د استفهام صدرات غواړي په خپله جمله كي اجماعًا للنحاة نو كلمه د عطف هره كلمه چي وي پر ما قبل د حرف استفهام خو عطف نسي كېدای لفواة صدارت الاستفهام نو ضرورةً معطوف عليه د حرف عطف به مقدر وي بيا به صدارت د استفهام پر ځای پاتېږي. فاحفظ هذه الفائدة ينفعك في جميع القرآن العزيز.

فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ط

نو دوی به وګوري په نظر عبرت ("فينظروا" دا جمله جواب د نفي ده) چي څنګه سوی دی اخير كار د هغه كسانو چي تر دوی دمخه وه يعني المنكرين لتوحيد الملك العزيز وتكذيب المرسل الكريم ﷺ

دَمَّرَ اللّٰهُ عَلَيۡهِمۡ‌ ۖ وَلِلۡكٰفِرِيۡنَ اَمۡثَالُهَا ۝

"دمر الله عليهم" هلاک بالاستيصال يعني پر انفس د ددوی او پر اهل او اولاد او اموالو د دوی يې هلاکت راوستی الله ﷻ "وللكافرين" او د كفارو لپاره اى للكفار مكة.

**سوال:** ذكر د اهل مكه خو په ضمير كي د يسيروا تېر سو نو د اسم ظاهر راوړل يې څه فائده لري يعني و للكافرين امثالها؟

**ځواب:** فائده يې په تصريح او حكم كي ده په كفر سره د دوی.

**پوښتنه:** مؤنث ضمير د امثالها كوم لفظ ته راجع دی؟

**ځواب:** مرجع يې مذكور حكمًا دی يعني العاقبة او العقوبة او الهكة چي د تدمير څخه وفهمېدی.

**نكته:** د كفارو د مكې په باره كي داسي عبارت وويل سو امثالها، ولي پر كفارو د مكې په بركت د عليه الصلوة والسلام عذاب بالاستيصال خدای ﷻ نه دی راوستلی فافهم هذا صانح عزيز.

ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ مَوۡلَى الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا

دغه نصرت د مؤمنانو سره كول او قهر پر كافرانو په سبب دد ې دی چي خدای عزوجل متولي او دوست او ناصر دی د مؤمنانو، نو له دوی څخه هيڅ نوع نصر نه سپموي او تائيد يې كوي او توفيق وركوي او هر قسم دښمن له دوی څخه دفع كوي حتى له خطراتو څخه د شيطان يې هم ساتي، قال الله تعالى في جواب ابليس لاغوينهم اجمعين، ان عبادي ليس لک عليهم بسلطان.

وَاَنَّ الۡكٰفِرِيۡنَ لَا مَوۡلٰى لَهُمۡ ۝

او هغه كسان چي كافران دي دوی لره مولى نسته يعني داسي مولى چي د دوی څخه دي دفع د ضرر وكړي يا جلب د نفع لان وليهم الشيطان وهو ليس بذالک المنصب.

اِنَّ اللّٰهَ يُدۡخِلُ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جَنّٰتٍ تَجۡرِىۡ مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ‌ ؕ

په تحقيق خدای داخلوي هغه كسان چي ايمان يې راوړی دوي او اعمال صالحه يې هم كړي وي قولاً و عملاً يعني ورځ د قيامت و جنتو ته داسي جنتونه

چي بهيږي به لاندې تر درختو د هغو ولې يعني څلور (۱) من ماء غير آسن (چي بد بويه او بېخونده او يا تروې به نه وي) (۲) من عسل مصفي (چي د مچمچيو د مومو څخه به خلاص وي لکه دد ې دنيا په عسلو کي چي سته) (۳) شراب لا غول فيها (د سر درد به نه وي پکښې) ولاهم عنها ينزفون (نه به هم د وی له هغه څښلو څخه هوش او عقل دلاسو ورکوي لکه دغه راوړي خاصې چي په شرابو کي د دنيا سته (۴) نهر من لبن لا يتغير طعمه (داسي شيدې چي په طول مکث سره يې خوند بدلېږي. اللهم اجعلنا منهم بمحض فضلك وكرمك... گفته شده:

به بها نه مى بخشد و ببهانه مى بخشد

وَالَّذِينَ كَفَرُوا يَتَمَتَّعُونَ وَيَأْكُلُونَ كَمَا تَأْكُلُ الْأَنْعَامُ

او هغه کسان چي کفر يې اختيار کړی وي په نعمتو د دنيا نفع اخلي اياما قليلة مدة اعمارهم، او خورک کوي لکه څهارپايان يعني حريصين على الاكل غافلين عن المنعم الحقيقي او شکر يې هم نه وايي او د عقوبت بعد الموت غافل او منکر وي.

**فائده:** كما تأكل صفت د مصدر محذوف دی او ما مصدريه دی ای كلا كأكل الانعام.

وَالنَّارُ مَثْوًى لَّهُمْ

او اوور يعني دوږخ کور او ځای د او سېدو دوی دی يعني ابداً.

**د اميد وړ فائده:** امام قشيري قدس سره وايي چي ارجی آيت په قرآن کي دغه آيت دی (يعني ډېر د اميد وړ آيت دی) وجه يې دا ويلې ده چي خدای پاک په دې آيت کي داسي ويلي دي "ان الله مولى الذين آمنوا" داسي يې نه دي ويلي چي مولى الزهاد يا داسي الله مولى اصحاب الاوراد يا الله مولى العباد مؤمن که څه هم عاصي وي په الذين آمنوا کي خو داخل دي انتهى.

**درويش وايي:** چي ومن عجائب قدرة الله تعالى ما روى چي زيد بن ثابت رضي الله عنه د يو سړي سره له مکې څخه طائف ته ووتی او زيد رضي الله عنه په دې نه ؤ خبر چي دا سړی منافق دی چي غرمه سوه په يوه خرابه سرای ننوتل د استراحت او قيلولې لپاره چي دواړه په خوب بيده سوه منافق خو ظاهراً ځان پر خوب واچاوه او زيد رضي الله عنه حقيقةً ستړی هم ؤ په درياب کي د خوب غرق سو، د منافق سره يوه مرانده موجوده وه چي زيد رضي الله عنه ځان سره بنور او منافق يې ينبي او لاسونه وروتړل او چاړه يا چاقو يې پر راوکښی چي ذبح يې کړي، زيد رضي الله عنه دا قدر

دعاء وکړه يا رحمن اعني زما سره مرسته وکړه منافق د ډباندي څخه واوريدل چي يو ځوک وايي ويحک لاتقتله (هلاکت دي وي تاته چي قتل يې نه کړې) منافق د سراي دباندي ووتی چي بيګانه سړی دباندي ولاړ نه وي شاو خوا يې وکتل ځوک نه ؤ بيا و قتل ته اماده سو بيا هغه ناره واوريده ثم وثم. دريم وار د آس سپور راغلی توره ور څخه د منافق سر يې قلم کړی د زيد ﷺ لاس ونه او پښې يې ورخلاص کړه، او زيد ﷺ ته يې وويل چي جبرئيل ؑيم زه په اووم اسمان کي وم چي ته دعاء وکړه خدای پاک پر ما امر وکړی چي ادرک عبدي او دا آيت يې ووايه الله ولي الذين آمنوا، نو غائب سو.

وَكَأَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ هِيَ أَشَدُّ قُوَّةً مِّنْ قَرْيَتِكَ الَّتِي أَخْرَجَتْكَ

او ډېري قريې اى اهل قرية (مضاف چي اهل ؤ حذف يې کړی حکم يې پر مضاف اليه جاري کړی چي هلاک دی) "اشد قوة" صفت د قرية دی تانيث د ضمير يې په اعتبار د لفظ د قرية که څه هم مراد ځني اهل دی چي هغه قريه يعني اهل د هغې قريې ډېر سخت وه از روی قوت تمييز د نسبت څخه د اشد و هي ته.
"من قريتک" ستا تر قريې هغه قريه چي ته يې ځني وايستلې.
**پوښتنه:** کفارو د مکې خو عليه الصلوة والسلام ته نه ويل چي ته له مکې څخه ووځه؟
**ځواب:** دا اسناد د اخراج و اهل مکه ته من قبيل النسبت الى السبب دی يعني سبب د وتلو د عليه الصلوة والسلام له مکې څخه سبب يې ازار شديده د کفارو د مکې ؤ ده ته، نو ګويا دوی وايستی، نو دا وتل د عليه الصلوة والسلام له مکې څخه اضطرارًا وه، کما يدل عليه الحديث المروي عن ابن عباس ؓ دی وايي چي عليه الصلوة والسلام چي له مکې څخه ووتی پر طرف د غار د جبل ثور مخ يې مکې ته راواړاوی او داسي يې وويل: انت احب بلاد الله الى الله واحب بلاد الله الي (ته يا مکه هغه ډېر ګران ښار على الله عزوجل تر ټولو ښارو او احب بلاد الله هم يې و ماته) ولو ان المشرکين لم يخرجوني لم اخرج منک وفي رواية وقد بکى رسول الله ﷺ.

أَهْلَكْنَاهُمْ فَلَا نَاصِرَ لَهُمْ ۝

موږ هلاک کړه هغه (چونک مراد له قرية څخه اهل قرية دي نو ځکه يې ضمير د جمع مذکر ورته راجع کړی) ددوی کومکي نه سو پيدا (دا حکايت دی د حالت ماضيه، فلا يرد ان صيغة اسم الفاعل للحال او الاستقبال)

أَفَمَنْ كَانَ عَلَىٰ بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّهِ كَمَنْ زُيِّنَ لَهُ سُوءُ عَمَلِهِ وَاتَّبَعُوا أَهْوَاءَهُمْ

الاستفهام للانكار والفاء للعطف على مقدر تقديره ايستوي المؤمن الذي مولاه هو الله والكافر الذي لا مولاله "على بينة من ربه" اى على يقين مستند الى حجة من عند ربه اى القرآن او ما يعمه من الحجج العقلية كالنبي ﷺ والمؤمنون، دا مثال دى د من كان على حجة من الله.

**پوه سه:** چي د استفهام انكاري معنى داده چي مذكوره دوي ډلي سره برابري نه دي.

**درويش وايي:** چي اوس خداى ﷻ بيان د عاقبت او ثواب د اولي ډلي كوي يعني من كان على بينة من ربه.

مَثَلُ الْجَنَّةِ الَّتِي وُعِدَ الْمُتَّقُونَ

**پوه سه:** چي ضمير راجع و موصول ته دى چي التي محذوف دى، والتقدير وعدبها المتقون لكه قانون نحوي چي دى چي په صله عائد و موصول ته لازم دي ومعنى المثل الصفة العجيبة يعني صفت عجيبه د جنت چي د متقينو سره وعده كړه سوى دى اى من جانب الله القادر المقتدر "مثل آه" مبتداء ده خبر يې محذوف دى اى مثل ما وعد المتقون فيما يتلى عليكم فيما بعد، چي دادى:

فِيهَا أَنْهَارٌ مِّن مَّاءٍ غَيْرِ آسِنٍ وَأَنْهَارٌ مِّن لَّبَنٍ لَّمْ يَتَغَيَّرْ طَعْمُهُ

چي په هغه جنت كي به ولې وي د اوبو چي متغير به نه وي نه يې خوند او نه يې بوى كما يتغير مياه الدنيا بطول المكث "ماء صفت دى د انهار" او ولې به وي د شيدو چي خوند ته به يې هيڅ تغيير نه وي رسېدلى چي يا ترشي سوي وي يا خيدك سوي وي لكه البان د دنيا.

وَأَنْهَارٌ مِّنْ خَمْرٍ لَّذَّةٍ لِّلشَّارِبِينَ

او ولې به وي د شرابو "لذة" اى لذيذة جدًا.

**پوه سه:** چي لذة تانيث د لذ دى نو توصيف يې حقيقة دى، او يا لذة مصدر دى حمل يې مبالغة دى نحو زيد عدل او يا صفت دى په تقدير د مضاف اى ذات لذة "للشاربين" د څښونكو لپاره، يعني دا به بد بويه نه وي لكه شراب د دنيا چي

نهايت بدبويه وي، او نه د سر درد او نه نشه چي خمار ېږي بولي پکښې وي، بخلاف شراب الدنيا فانها كريهة عند الشرب جدًا ويعقبها خمار وسكر وذهاب العقل.

**درويش وايي:** چي د شرابي چي خمار ېږي په سر سي دومره مغلوب العقل سي چي په تاريخ كي راغلي دي چي يو سړی چي شراب يې څېښلي وه چي نشه يې په سر سوه نو بولو ونيوی راغلی پر بولو كښېنستی لاسونه يې دواړه بولو ته ونيول چي غبرګه به يې د ګه سوه بولي به يې پر مخ واچولې او داسي به يې ويل سبحان الذي من جعل الماء طهورًا.

**پوښتنه:** شراب چي ظاهرًا دومره بد دي او كراهة الذوق عند الشرب وغير ذالک ورسره دي نو ولي يې خلک څېښي؟

**ځواب:** د خلكو خوند په دا نشه كي دی دا نشه دوی په هر قيمت رانسي چي بعض ډاكټر ګولی هم دغه د نشې فائده كوي تر شرابو بدتر شی او بدبويه وي په هره معنی د بدن لپاره ضرر تام دي چي هغه ته هيروئن وايي، د دغي نشې لپاره دود كشوي، نو پر دې هيروئني چي څو ورځي تېري سي د انسانيت له نوع څخه خارج سي نه اودس كوي او نه لمونځ او نه نور طهارت البدن كوي.

وَأَنْهَٰرٌ مِّنْ عَسَلٍ مُّصَفًّى

او ويالې به وي د عسلو چي بعض پښتانه يې شهد بولي چي پاک به وي له فضلاتو څخه د مچمچيو او شمع هم نه وي پكښې بخلاف عسل الدنيا، له معاوية بن حيدة څخه روايت دی وايي سمعت رسول الله ﷺ چي ده مبارک وويل چي په جنت كي يو درياب د اوبو سته او يو د عسلو او يو د شيدو او يو د شرابو، نو له دغو دريابونو څخه دغه څلور ويالې راجلا كېږي او په هر جنت كي بهېږي، ابن المبارک او البيهقي په سند د مسروق څخه روايت كړی دی چي ويالې بهېږي چي يو پې او بلي خوا ته تجاوز نه كوي په قدرت د خدای.

**درويش وايي:** چي دا خرق العادة دی مربوط په قدرت دی مخصوص بالجنة دی او د قسم د ما لا عين رئت دی، وعن انس رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ لعلكم تظنون ان انهار الجنة اخدود في الارض (شايد تاسي به ګمان كوئ چي ويالې د جنت به لښتي او غارونه لري په مځكه كي يعني لكه په دنيا كي) لا والله انها سابحة على

وجه الارض (داسي نه دي بلکې قسم په خدای دی چي بهيږي پر مخ د مځکي) حافتاه خيام اللؤلؤ (پر دواړو غاړو ددې اوبو خېمې د ملغلرو وي او ختې د هغو لښتيو او ويالو مشک ازفر دي (يو اعلی قسم د مشکو نوم دی) وعن ابی هريرة قال قال رسول الله ﷺ سيحان وجيحان والفرات والنيل من انهار الجنة، رواه مسلم فقير وايي: چي منتهی ددې لويو رودو په علم کې د بشر نسته والله اعلم.

﴿وَلَهُمْ فِيهَا مِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ وَمَغْفِرَةٌ مِّن رَّبِّهِمْ﴾

دوی لره په جنت کې د هر قسم مېوې سته، د ابن عباس څخه روايت ده وويل ما في الدنيا ثمرة (ای في مجموع الدنيا) يوه مېوه که خوږه وي (لکه انګور انار وغيرها) ولا مرة او نه ترخه الا هي في الجنة حتی الحنظل (مړه غونې چي ډېره ترخه ده) رواه ابن ابی حاتم.

**سوال:** حنظل خو ترخه ده نو په جنت کې يې څه فائده ده؟

**ځواب:** صرف هيئت يې د حنظل دی په واقع کې اعلی ډول خوږه ده، رواه ابن المنذر في تفسيرها، ويدل علی ما قلنا في باب الحنظل الحديث المروي عن ابن عباس ليس في الدنيا مما في الجنة الا الاسماء، رواه ابن جبير وابن ابی حاتم وغيرهما.

**درويش وايي:** چي د ابن عباس د حديث معنی داده چي والله اعلم چي شراکت د مېوو د دنيا او د جنت صرف په نامه کې يعني په جنت کې په نامه د انګورو مېوه سته او په رنګ د انګورو مېوه سته لکن په خوند کې او په غټ والي کې او په وابنکي او دانو کې فرق عظيم سته وکذا ما علی شکل الحنظل وعلی هذا فقس الثمار الاخر في الجنة وهذا انموذج من قدرته تعالی شانه وعن ثوبان انه سمع رسول الله ﷺ لاينزع رجل من اهل الجنة من ثمرها (ای الجنة) الا اعيد في مکانها مثلها، ترجمه: نه شکوي يو سړی د اهل جنت يوه مېوه د جنت مګر په هغه ځای کې مثل د هغې پيدا کېږي مثلاً انار يې له يوې درختې څخه وشکاوه هر هغه سمد ستې مثل د هغه انار پيدا کېږي وعلی هذا فقس سائر ثمار الجنة.

"ومغفرة من ربهم" او بخشش عام دی د خدای له خوا فهو تعالی راض عنهم ابدًا سره د احسان په جنتو او د جنتو په مېوو وغيرها.

كَمَنْ هُوَ خَالِدٌ فِي النَّارِ

آيا هغه څوک چې خالد وي في الجنة داسي کېدای سي لکه هغه څوک چې خالد او همېشه وي په اور کي؟ والجواب: لا نو د اعراب د لاري كمن هو خبر دی د مبتداء محذوفي، تقديره: امن هو خالد في هذه الجنة لکه حال چې ذکر سو او موعود د رب کریم دی کمن هو خالد في النار التي لايطفاء لهيبسها ابدًا ولا يكف اسيرها (نه خلاصېږي بندي يې قال الله تعالى والنار مثوى لهم)

وَسُقُوا مَآءً حَمِيمًا فَقَطَّعَ أَمْعَآءَهُمْ ﴿١٥﴾

او دوی چې تږی سي ايشېدلي اوبه ورکول کېږي. ورټوک ټوک کړي کلمې ددوی لفرط الحرارة او ترد بره يې ووزي، ابن المنذر د ابن جريج څخه روايت کړی دی چې مؤمنان او منافقان جمع د نبي ﷺ سره ناست وه نو عليه الصلوة والسلام مؤمنانو به دده خبري اورېدلې او پياد کي به يې ساتلې او منفقانو به هم اورېدلې نه يې په دماغ کي ساتلې او نه به په پوهېدل تهاوتًا وبغضًا چې د عليه الصلوة والسلام څخه به د وارې ډلي راووتلې نو منافقانو به له مسلمانانو څخه پوښتنه کوله ماذا قال آنفًا چې ده دا اوس څه ویل فنزلت هذه الآية.

**پوه سه:** چې ''سقوا'' عطف دی على ''خالد'' نظرًا الى لفظه من چې مفرد دی وجمع سقوا الى معنى من لانه جمع معنًى.

وَمِنْهُمْ مَنْ يَسْتَمِعُ إِلَيْكَ

او بعض له منافقانو څخه هغه کسان دي چې تاته يې په ظاهره غوږ نيولی وي يعني ستا و خبرو ته.

حَتَّىٰ إِذَا خَرَجُوا مِنْ عِنْدِكَ قَالُوا

**پوه سه:** چې ضمير د يستمع مفرد راوړی نظر و لفظ ته د من او ضمير د خرجوا چې جمع يې راوړی نظر و معنی ته د من ولي چې منافقين خو ډېر کسان وه.

لِلَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ مَاذَا قَالَ آنِفًا

دوی يعني منافقانو به هغه کسانو ته ويل چې خدای علم ورکړی ؤ، ای المؤمنين،

ما استفهامي دی او ذا په معنی د الذي والمعنی ما الذي "قال" ای محمد (ﷺ) آنفًا يعني دا اوس، مشتق من انف الشيئ لما تقدمه قريبًا اصلاً مستعار ای د انف په معنی د اجابة يعني پزه پښتانه يې داسي ترجمه کوي تر پزه لاندي.

**دروېش وايي:** چي دا پوښتنه يې غالبًا په زړو کي استهزاءً کوله او په ظاهره استعلامًا کوله تاچي نفاق يې ظاهر نه سي.

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ طَبَعَ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ وَاتَّبَعُوا أَهْوَاءَهُمْ ﴿١٦﴾

دا هغه کسان دي چي خدای پر زړو مهر د غفلت او کفر ورلګولی دی نو له دې کبله د خبرو د عليه الصلوة والسلام سپکاوی کوي. دوی متابعت د خپلو خېشو خواهشاتو کوی دوی په خبرو د عليه الصلوة والسلام پسخند واهه.

وَالَّذِينَ اهْتَدَوْا زَادَهُمْ هُدًى وَآتَاهُمْ تَقْوَاهُمْ ﴿١٧﴾

او هغو کسانو چي هدايت پيدا کړی وُ په خبرو سره د رسول اللهﷺ زيات کړی دوی ته خدای په خبرو سره د رسول اللهﷺ "هدی" نور علم او بصيرت او په احکامو د دين خبرتيا او خدای دوی ته ورکړی توفيق د عمل لما امرهم رسول اللهﷺ به، او سعيد بن جبير وايي اتاهم ثواب تقواهم او يا دا معنی چي په تبليغ د رسول اللهﷺ دوی ته ښکاره سوه هغه لار چي دوی له اور څخه په ورځ د اخرت وساتي.

فَهَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا السَّاعَةَ أَن تَأْتِيَهُم بَغْتَةً ۖ فَقَدْ جَاءَ أَشْرَاطُهَا ۚ

"فهل ينظرون" استفهام لپاره د انکار دی يعني اهل مکه چي ايمان نه راوړي انتظار نه کوي. مګر ورځ د قيامت چي دوی ته راسي "بغتة" نابيره په پښتو، ناګاه په فارسي اچانک په اردو، والمعنی ان الساعة اتية لامحالة بغتة فهم لاينظرون الا الساعة، په تحقيق چي علامات د ساعت ښکاره سوي نو په ساعت حتمًا راځي لکن وقت اتيانها بالتعيين في علم الباري عزوجل (۱) منها شق القمر قال الله تعالی اقتربت الساعة والشق القمر (۲) ومنها الدخان قال الله تعالی يوم تأتي السماء بدخان مبين (۳) ومنها مبعث النبيﷺ کما روی مسلم وابن ماجة عن سهل بن سعدؓ رئيت النبيﷺ قال باصبعيه (ای اشار) هکذا (ای ضمها) بالوسطی والتي تلی الابهام (يعني المسبحة) وقال بعثت انا والساعة کهاتين، له انسؓ څخه

روايت دی چې ده وويل زه به داسې حديث درته ووايم چې هغه حديث به هيڅ څوک تاسې ته نه ووايي ماسوی له ما څخه چې ما اورېدلي دي له رسول اللهﷺ څخه چې ده وويل ان من اشراط الساعة ان يرفع العلم (يعني څوک به عمل نه په کوي) ويكثر الجهل، ويكثر الزنى ويكثر شرب الخمر ويقل الرجال (په جنګو د تسلط د کافرانو پر ممالکو د مسلمانانو) کما هو الآن جار في افغانستان، وتكثر النساء حتى يكون لخمسين امرئة قيم واحد (چې دوی ته نفقه وغيرها برابروي بادنی قرابة معه) وعن ابی هريرةؓ بينما رسول اللهﷺ يحدث اذ جائه اعرابي فقال متى الساعة؟ قالﷺ اذا اضيعت الامانة فانتظر الساعة قال كيف اضاعتها؟ قال اذا وسد الامر الى غير اهله فانتظر الساعة، رواه البخاري لعل المراد والله اعلم چې رياست او سلطنت د مسلمانانو او دغه رنګه وزارت او نوري نوري لويي عهدې د ملک اسلامي د نااهل ظالمانو تابعينو د کافرانو په لاس ورسي.

**درويش وايي**: هو العصر الحاضر موجود في اكثر الممالك الاسلامية كما لايخفى، وفي حديث طويل عن ابی هريرةؓ چې امانت به خلک غنيمت بولي يعني چې يو امانت شی ورته کېښوول سي، داسي به يې بولي لکه غنيمت يعني چې بيا يې سړی طلب څني وکړي نه يې ورکوي، په دې کي قرض هم داخل دی او نور پور نه هم داخل دي والله اعلم (۲) والزكوة مغرمًا، زکوة به داسي ورته ښکاري لکه ناحقه تاوان (۳) او طالبان به طلب د علم کوي لغير الدين بلکې د يو امامت يا قضاء الى غير ذالک د پيدا کېدو لپاره به وي (۴) او سړی به د ماينې اطاعت کوي او مور به څني بېزاره وي (۵) اشنای به ځان ته رانژدې کوي پلار به له ځانه لېرې کوي (۶) او اوازونه به په مسجدو کي شروع وي يعني مجلسونه لکه د صحراء په مساجدو کي (۷) او رئيس د قوم به هغه فاسق ددوی وي (۸) وکان زعيم القوم ارزلهم او ملک د قوم به هغه ډېر رزيل ددوی وي (۹) واكرم الرجل مخافة شره او عزت به ورکړه کېږي يو سړي ته د بيري دده له شره (۱۰) وظهرت القينات والمعازف او ښکاره به ويل کېږي غزلي او سرود زونه لکه په راديو ګانو کي بلکې تر هغه لوړ ټيپونه بلکې تر هغه لوړ لخه سينما چې نر او ښځي به لغ جماع سره کوي پکښې معلومېږي به، او ډش، بلکې لويه آله د غزلو او د زنی

کولو وخت او ځای پکښې تاکل کیږي چې د هري ښځي او نر په جېبو کي سته چې موبائل يې بولي او ساز و صحبت هم په اعلى درجه کي وجود پکښې لري (۱۱) وشربت الخمور او شراب په ډکه پيمانه څښل کيږي صرف د نامه په بدلولو (۱۲) ولعن اخير هذه الامة اولها لکه شيعه په باب کي د ابوبکر او عمر او عثمان ﷺ يا روافض يا خوارج الى غير ذالک، انتهى باختصار کثير.

فَاَنّٰى لَهُمْ اِذَا جَآءَتْهُمْ ذِكْرٰىهُمْ

نو چېري د کفارو لره په سر کي اهل مکه ؤ پند اخستل چې قيامت راسي، ولي چې قيامت چې راسي پند اخستل فائده نه کوي .. سعدي ؒ:

تو پيش از عقوبت درعفو کوب ..... که سودى نه دارد فغان زير چوب
نـرود مـــرغ سوئى دانه فراز ..... چو بـيند مـــرغ ديگر اندر بند

فَاعْلَمْ اَنَّهٗ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاسْتَغْفِرْ لِذَنْۢبِكَ

نو ته پوه سه (انه اى الشان) نسته هيڅ يو معبود ماسوى له الله څخه، کلمة الفاء للسببية اى اذا علمت سعادة المؤمنين وشقاوة الکافرين، فاثبت يا محمد على ما انت عليه من العلم بوحدانية المعبود بالحق او تکميل د نفوسو د خلکو کوه باصلاح اقوالها واحوالها واعمالها بتبليغک المتين لان تلک الاصلاح نافعة يوم القيامة ليس الا.

**سوال:** رسول کريم ﷺ خو معصوم دى له ګناه څخه ما معنى هذا الامر بالاستغفار؟

**ځواب:** بعض مفسرين وايي چې هضمًا لنفسه دى، بعض مفسرين وايي اظهارًا للتقصير في بعض العبادات لا لمغفرة المعصية، بعض مفسرين وايي چې دا امر نسبت و عظمت و جلال ته د خداى دى او يا لپاره د اقتداء د امت دى، بعض مفسرين وايي بحذف المضاف دى اى واستغفر لذنب امتک.

**درويش وايي:** چې احسن د توجيهاتو داده په نيز د فقير چې استغفار في نفسه عبادت دى لکه سرى چې لا اله الا الله مکررروي فکان الامر بالاستغفار امر بالعبادة، او عليه الصلوة والسلام ددې امر الهي ايتان هم کاوه حيث قال عليه

الصلوة والسلام چي په مقتضی د امکان راځي زما پر نفس باندي غفلت واني استغفر الله في اليوم مائة مرة.

وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ

او د مؤمنين او د مؤمناتو لپاره ای استغفر لذنوبهم بالدعاء لهم، البغوي وايي چي دا اکرام من الله لهذه الامة حيث امر نبيهم ﷺ ان يستغفر لذنبهم لعدم العصمة لهم من الذنوب وهو ﷺ هو الشفيع المجاب فيهم... سعدي وايي:

عطايي شفاعت چنانش دهند	كه امت تمامی ز دوزخ رهند

**نكته**: په دې كي تحريض او باعثه كول دي د مؤمنين او مؤمنات پر استغفار باندي لوجود بعض الذنوب فيهم.

**فائده**: وفي اعادة الجار وحذف المضاف ای لذنوب المؤمنين آه اشعار بانهم لكثرة ذنوبهم وفرط احتياجهم الى الاستغفار كانهم جنس آخر.

وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مُتَقَلَّبَكُمْ وَمَثْوٰىكُمْ ﴿١٩﴾

او خدای خبر دی په مصرفياتو كي ستاسي او انتشاد كي ستاسي په اعمالو كي د دنيا.

**درويش وايي**: چي دا خطاب عام دی مؤمنانو او كافرانو ته، بدليل قوله ومثواكم لان معناه مصيركم في الآخرة الى الجنة او النار، او مقاتل او ابن جرير وايي منصرفكم لاشتغال كم بالنهار ومأواكم الى مضاجعكم بالليل للاستراحته او لاجتماعهم بالاحبة، او عكرمه وايي متقلبكم من اصلاب الاباء الى ارحام الامهات بنقل النطفة الى رحمها ومثواكم مقامكم في الارض وروسته تر تېرېدو د تطولات د نطفه او علقه او مضغه وكسوة العظام مجمًا ونفخ الروح فيكم حتى حان وقت خروجكم من بطن الام الى الارض، والحاصل انه تعالى عليم بجميع احوالكم.

وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَوْلَا نُزِّلَتْ سُوْرَةٌ ۚ فَاِذَآ اُنْزِلَتْ سُوْرَةٌ مُّحْكَمَةٌ

او وايي هغه كسان (لپاره د حرص پر جهاد) يعني چي موږ امر كړی په جهاد سره في سبيل الله چي نازل كړل سي يو سورت چي محكم وي لايحتمل وجهًا الا وجوب القتال.

وَذُكِرَ فِيْهَا الْقِتَالُ

او ذکر کړل سي قتال د کفارو سره، قتادہ وايي چي هر سورت چي په هغه کي جهاد ذکر سي هغه محکم دی یعني نسخ نه قبلوي ولي آية القتال نسخ کړه تولہ ماقبل ذالک من طلب الصلح من الکفار یا غور مالی وغیر ذالک او پر آية القتال نسخ نه راځي الی یوم القیامة حتی یقاتل اخیر هذه الامة مع الدجال.

**پوه سه:** چي هر سورت چي په هغه کي به امر بالجهاد و هغه سورت سخت تر سورت ؤ پر منافقانو.

رَاَيْتَ الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ يَّنْظُرُوْنَ اِلَيْكَ

ته به وینې هغه کسان چي په زړو کي یې ضعف او بزدلي او نفاق وي، تا ته به ګوري د جبن او د خوف القتال له کبله.

نَظَرَ الْمَغْشِيِّ عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ ۭ فَاَوْلٰى لَهُمْ ۝

لکه نظر د هغه چا چي پر هغه بیهوشي د مرګ له سببه راسي (یعني زکندن یې وي) نو ښایي دوی لره.

طَاعَةٌ وَّقَوْلٌ مَّعْرُوْفٌ ۣ

فرمانبرداري د خدای او د رسول د خدای یعني چي جهاد ته چمتو سي "وقول معروف" یعني ښه دی دوی لره قول معروف في الشرع چي سمعنا و اطعنا ای سمعنا قولک واطعنا امرک.

فَاِذَا عَزَمَ الْاَمْرُ ۣ فَلَوْ صَدَقُوا اللّٰهَ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ ۝

چي ټینګ قصد وکي امر د جهاد.

**پوه سه:** چي دا اسناد مجازي دی والاصل جد وعزم اصحاب الامر چي مجاهدین دي "فلو صدقوا الله" که دوی رښتیا کي هغه تمنی د نزول د سورة چي په هغه کي د قتال امر وي، نو دا به خیر وي دوی لره ولي چي اطاعت د خدای او د رسول په حاصل کړي او تمنی د دوی په ذکر کي د قتال جامه د صدق واغوندي.

فَهَلْ عَسَيْتُمْ إِنْ تَوَلَّيْتُمْ أَنْ تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ وَتُقَطِّعُوا أَرْحَامَكُمْ ﴿٢٢﴾

آيا بنايي يعني توقع کېږي چي جبن والاؤ که چېري تاسي اعراض وکړئ له متابعت څخه د رسول اللهﷺ (په جهاد کي) چي تاسي به فساد کوئ (يعني بالکفر والمعاصي لاجل مزيد مخالفة الرسول) او وسيلې رحمي به قطع کړئ د خپل اقرباؤ سره چي مؤمنين مجاهدين دي في سبيل الله.

**يوه سه:** چي ان سره د جملې چي دی پر داخل دی فاعل د عسيتم دی والاستفهام لپاره د انکار دی چي بايد ستاسي څخه توقع د فساد ونه کړل سي بالکفر والمعاصي، وقطع الارحام مع المؤمنين المجاهدين في سبيل الله.

**درويش وايي:** چي مظهري ”په منهية کي ددې آيت تفسير داسي ليکلی دی چي پښتو ژباړه يې داده: له بريده رضی الله عنه څخه روايت دی چي زه ناست وم په مجلس کي د امير المؤمنين عمر رضی الله عنه چي دده تر غوږه لويه ناره سوه، نو عمر رضی الله عنه خپل مربي يرفاء ته وويل: انظر ما هذا الصوت، ته وګوره چي دغه د څه شي لپاره ناره وه، يرفاء چي ولاړی معلومات يې وکړی نو عمر رضی الله عنه ته يې داسي حال راوړی چي دا يوه مينځه ده کم سينه د قريشو چي د هغې مور خرڅول کېږي دا لور چي کم سينه ده پسي ژاړي، نو عمر رضی الله عنه يرفاء ته وويل چي ادع المهاجرين والانصار، يو ګړی چي کېدی حجره يا سرای د عمر رضی الله عنه ډک سو، عمر رضی الله عنه حمد و ثناء پر خدای جل جلاله وويل، بيا يې وويل اما بعد: فهل تعلمون فيما جاء محمدﷺ القطعية؟ قالوا لا (آيا وه په هغه دين کي چي محمدﷺ تاسي ته راتګ په کړی قطع د صلة الرحم؟ حاضرينو وويل يا، نو عمر رضی الله عنه هغه تېر سوی آيت فهل عسيتم تر پايه پوري تلاوت کړی ثم قال چي تر دې لويه قطع د صله به چېري وي چي څوک رانسي مور د يوې نجلی او هغه پسي ژاړي؟ په تاسي کي اوس خدای فراخي جوړه کړې ده نو څه ضرورت لرئ وداسي بيع او شراء ته، بيا يې حکم جاري کړی کتابةً چي داسي بيع او شراء دي څوک نه کوي فانها قطية رحم لايحل انتهى قول المظهري“.

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ لَعَنَهُمُ اللَّهُ فَأَصَمَّهُمْ وَأَعْمَىٰ أَبْصَارَهُمْ ﴿٢٣﴾

دغه مفسدين في الارض او قاطعين الارحام چي خدای دوی د خپل رحمت

څخه لېري کړې دی لـه اورېدو څخه کاڼه کړي دي او سترګي یې له لیدو څخه د معجزاتو ورړندې کړي دي.

أَفَلَا يَتَدَبَّرُونَ الْقُرْآنَ أَمْ عَلَىٰ قُلُوبٍ أَقْفَالُهَا ﴿٢٤﴾

آیا دوی فکر نه وهي په قرآن کي چي صفحه صفحه یې مطالعه کړي او مواعظ د قرآن او زواجر د قرآن په غور فکر پکښي ووهي نو دوی ته به حق ښکاره سوی وای والاستفهام للتوبیخ والانکار علی فعلهم القبیح والفاء للعطف علی مقدر تقدیره ایغفلون فلا یتدبرون آه "ام علی قلوب اقفالها" که یې پر زړو باندي قلفان زړولي دي.

**پوه سه**: چي زړونه خو قلفان نه لري لکن په ایت مبارک کي زړونه د دوی مشابه کړه د خزانو سره د نقودو، دې ته په علم بیان کي استعاره بالکنایة وایي د خزانو سره خو قلفان مناسب بلکې لازم دي هغه په ثابت کړه د دوی زړو ته چي دا قلفان د زړو د افعالو معهوده وُ د قسم نه دي چي اجسام معروفه دي بلکې دا قلفان مناسب د زړو سره دي چي معنوي شیان دي یعني غفلت عن مواعظ القرآن وعدم التفکر فیها والاتعاض بمواعظها یعني ګویا د اهل جنس قلفان دي چي دا دې قلفانو سره سره د دوی د زړو سره استعداد او قابلیت د اتعاظ بمواعظ القرآن مسلوب بالکلیة دی که څه هم دوی فکرهم ووهي فرضًا.

**فائده**: قلوب یې نکره راوړه لان المراد قلوب بعض الکفرة لکه په طور د مثال د ابی جهل زړه د ابی بن خلف زړه د ولید بن مغیره زړه و امثالهم، ولي بعض د قلوب وروسته خدای په کلمې د کلمه توحید خلاص کړه، د بغوي په روایت چي رسول اللهﷺ چي دا آیت ووایه افلا یتدبرون القرآن ام علی قلوب اقفالها. نو یو ځوان د اهل الیمن ناست وُ و یې ویل علی قلوب اقفالها حتی یکون الله یفتحها چي خدای به یې خلاص کړي یا به یې لېري کړي نو اسلام یې راوړی عمر په دغه مجلس کي موجود وُ د دې ځوان خبري د ېر خوند ورکړی، حتی چي عمر چي خلیفه سو نو زړه یې غوښته چي هغه ځوان پیدا کړي او پر یو لوړ مقام یې عامل وګرځوي پو ښتنه چي یې وکړه خلګو ورته وویل چي هغه ځوان وفات سو.

إِنَّ الَّذِينَ ارْتَدُّوا عَلَىٰ أَدْبَارِهِم

په تحقيق هغه کسان چي رد سوه د شا وخوا ته يعني خپل په پخواني دين وګرځېدل چي کفر ؤ.

**پوه سه:** چي مراد له دي کسانو څخه کفار د اهل کتابو يعني اليهود چي د مخه تر نبوت د عليه الصلوة والسلام به علماؤ د دوی نعوت د نبي اخير الزمان چي په تورات کي ضبط وه او دوی به مشرکينو ته بيانول او ځانونه پر هغه د ايمان لپاره چمتو کړي وه. فلما جائهم ما عرفوا كفروا به فلعنة الله على الكافرين كما في موضع آخر من القرآن، وفي موضع آخر يعرفونه (يعني محمد ﷺ كما يعرفون ابنائهم) وفي موضع آخر اشتروا الضلالة بالهدى، وفي موضع آخر في شانهم اشتروا به ثمنا قليلاً الى غير ذالک اخير الامر هغو يهودانو د ايمان راوړو څخه انکار وکړی او اياتو د تورات يې تغير او تبديل ورکړی، او الضحاک او السعدي او ابن عباس؄ چي مراد په دې آيت کي منافقان دي.

مِّن بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْهُدَى ۙ الشَّيْطَانُ سَوَّلَ لَهُمْ وَأَمْلَىٰ لَهُمْ ﴿٢٥﴾

وروسته تر دې چي دوی ته هدايت يعني راه راست ښکاره سوه يعني اهل کتابو ته په ذريعه د تورات او منافقانو ته په ليدلو د معجزاتو د قرآن کريم، شيطان و هغو ته کفر او کبائر اسانه کړه مثلاً اهل کتابو ته يې دا وسوسه ور اچول چي ستاسي نيکه ګان خو انبياء تېر سوي، پر هر تقدير ستاسي شفاعت به کوي ولو مع الانکار من نبوة محمد ﷺ او منافقانو ته يې وسوسه ور اچول چي د ځان د ساتني لپاره هر څه خديعه او چم روا دی..... بيت:

بر زبانت يا صمد پيدا ودردل يا صنم — اى بباطن كافر ظاهر مسلمانى چه سود

"واملى لهم" او و دوی ته يې د طول مهلت ورکړی دی او د شهوات ميل او محبت يې په زړو کي ور اچولی دی، دا جمله عطف ده پر "سول" او تولـه يعني د شيطان د ابتدا ثيت سره خبر دي ان الذين

ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا لِلَّذِينَ كَرِهُوا مَا نَزَّلَ اللَّهُ سَنُطِيعُكُمْ فِي بَعْضِ الْأَمْرِ

"ذالک" دا تسويل د شيطان دوی لره او امهال د خدای دوی ته "بانهم" ای

بسبب انهم چي دوی به ويل و هغو كسانو ته چي د هغو بد ايسېدی هغه قرآن چي خدای نازل كړی دی يعني يهودانو چي انكاريږي كاوه له نبوت څخه د عليه الصلوة والسلام او د ما انزل الله من القرآن وروسته تر دې چي يهودانو ته نعوت دده له تورات څخه دوی ته معلوم سوي وه، نو يا به منافقينو يا يهودانو يوې ډلي ته ددوی مشركانو وويل "سنطيعكم في بعض الامر" ژر دی چي اطاعت ستاسي وكړو په بعض كارنامو كي ستاسي كالقعود عن الجهاد او الموافقة لهم في الخروج معهم ان خرجوا، يا به كومک ستاسي كوو پر عداوت د محمد ﷺ.

وَاللّٰهُ يَعْلَمُ إِسْرَارَهُمْ

او خدای خبر دی په اسرارو ددوی (كه يې په كسر د همزه چي مصدر سي) يا په پټو حالاتو ددوی (كه په فتح د همزه وويل سي چي جمع د سر سي يعني پټ حال) چي هغه دغه خبري دي چي دمخه آيتو كي خدای افشاء كړې.

فَكَيْفَ إِذَا تَوَفَّتْهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ يَضْرِبُوْنَ وُجُوْهَهُمْ وَأَدْبَارَهُمْ

نو څه حال به وي ددوی (استفهام د تعجب دی او كلمه د فاء لپاره د سببيت ده، يعني په راتلونكي وخت كي به دوی څه حيلې كوي) يعني چي دوی ته راسي ملكي د زكندن يعني عزرائيل واتباعه "يضربون" حال دی له ملائكة څخه يعني په داسي حال كي چي ملكي به يې وهي په سندانو د اوسپنې، او مخان ددوی به وهي او شاوي ددوی.

ذٰلِكَ بِأَنَّهُمُ اتَّبَعُوْا مَآ أَسْخَطَ اللّٰهَ

دغه وفات ددوی پر دغسي بد حالت كما لايخفى په سبب ددې چي دوی متابعت كاوه د هغه شي چي سبب د غضب د خدای به ؤ، قال ابن عباس رض چي هغه شی چي موجب د خدای د غضب ؤ پټول وه د يهودانو هغه آيتونه چي نعوت د عليه الصلوة والسلام يكنبي وه والكفر بمحمد ﷺ انتهى.

**درويش وايي:** چي په منافقينو كي نفاق او په مشركينو كي شرک او تعاون يو د بل سره كول پر عداوت د عليه الصلوة والسلام وابطال دين الاسلام. ما دا ضميمه و حديث ته د ابن عباس رض ورضم كړه له دې سببه چي په آيت كي مذكور پر

په حالت وفات او ضرب الوجوه والادبار د مذكوره كفارو د ټولو حال بيان سي،
اما ابن عباسؓ مشت نمونه خروار ذكر كړي وه.

وَكَرِهُوا رِضْوَانَهُ فَأَحْبَطَ أَعْمَالَهُمْ ﴿۲۸﴾

او دوی مكروه بولي هغه كار چي موجب د رضى د خدایؒ به وي لكه اصل الاصول الايمان به و برسوله وبكتابه، وروسته تر دې جهاد في سبيل الله او نور طاعات لكه لمونځ زكوة وغيرها. "فاحبط اعمالهم" خدای ورلغوه كړه عملونه ددوی يعني هيڅ ثواب په اخرت كي ورکوي كه څه هم هغه اعمال د جنس څخه د حسناتو وي كصلة الرحم واطعام الطعام وفك العاني لعدم شرط قبولها واعطاء الثواب عليها في الآخرة وذالك الشرط هو الايمان بما ذكرنا.

أَمْ حَسِبَ الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ أَن لَّن يُخْرِجَ اللَّهُ أَضْغَانَهُمْ ﴿۲۹﴾

آيا ګمان كوي هغه كسان چي په زړو كي يې مرض يعني نفاق وي (كلمه د ام منقطعه ده په معنى د بل آه لپاره د انتقال د كلام سابق څخه او همزه لپاره د انكار څخه د مذكور حسبان او د توبيخ پر هغه) چي خدای به ښكاره نه كړي و رسول ته خپل او مؤمنانو ته هغه، اضعان جمع د ضعن ده و معناه البغض المضمر ددوی په زړو كي چي د رسول اللهﷺ او د مؤمنانو سره يې لري بلكې عالم ما في الصدور به خواه مخواه ښكاره كړي كه يې څه هم دوی د پر پټ ساتي لانه لايغرب عن علمه شيئ.

**يوه سه:** چي دا كلام مربوط دی د هغه كلام سره الشيطان سول لهم يا بقوله ام على قلوب اقفالها.

وَلَوْ نَشَاءُ لَأَرَيْنَاكَهُمْ فَلَعَرَفْتَهُم بِسِيمَاهُمْ

كه زموږ اراده سي زه به وويـنم په تا دوی ای لا علمناكهم تا به خبر كړم، ته به يې پېژني دوی يعني زما په ښوونه سره په علامات د الهٔ پر نفاق ددوی او پر بغض مضمر ددوی ستاسي سره. قال البغويؒ قال انسؓ فما خفى على رسول اللهﷺ بعد نزول هذه الآية واحداً من المنافقين يعرفهم بسيماهم.

**پوښتنه:** منافقان چي يو په يو و عليه الصلوة والسلام ته معلوم وه نو ولي يې نه وژل چي ددوی له غمه به خلاص سوی وای؟

**خواب:** يو دا سبب دٔ چي عليه الصلوة والسلام دا ويلي وه من قال لا اله الا الله عصم منا دمائهم واموالهم. او منافقان خو دا کلمه جهراً ويله. او بل سبب دا دٔ چي د دوی په وژلو سره عليه الصلوة والسلام رنګ په بدېدی، ولي چي خوک به خبر وه چي دا منافقان دي چي عليه الصلوة والسلام يې وژني بلکې په خارج کي به دا اوازه وای چي محمد ﷺ داسي يو شخصيت دی العياذ بالله چي خپل صحابه چي درد يې ورته راسي وژني يې، نو دده له دينه به د خلګو نفرت کېدی يعني که موږ دده په دين کي داخل سو نو که يې يوه ورځ درد ورغلی موږ هم وژني.

وَلَتَعْرِفَنَّهُمْ فِي لَحْنِ الْقَوْلِ ۚ وَاللَّهُ يَعْلَمُ أَعْمَالَكُمْ ۝

جواب د قسم محذوف دی او مراد لحن القول څخه ازالة الکلام عن اصل مراده الی تعريض وتورية، والمعنی انک تعرفهم چي دوی تعريض کوی په خبرو کي و عبث ته د امر ستا او د مؤمنانو، او پسخند په وهي لکن په ظاهره مدح کوي (د مثال په توګه په مجلس کي د رسول الله ﷺ او د مؤمنانو به يې ويل چي شکر دی چي داسي نبي لرو لکه محمد ﷺ او داسي وروڼه لرو لکه هؤلاء المؤمنين يو د بل سره به يې کتل او په برېتو کي به يې خندل استهزاء، يا به يې يو وبل ته په سترګي کي اشاري کولې البغوي" چي وروسته تر نزول ددې آيت لايتکلم منافق عند رسول الله ﷺ الا عرفه په خبرو دده) خدای خبر دی په عملو ستاسي ايها المنافقون.

**پوښتنه:** نسبت د علم د دوی د عملو خدای پاک وځان ته ولي وکړی؟

**خواب:** حسن د اعمالو او قبح د اعمالو په ماسوی کي د هغه عمل قبح ذاتي وي لکه کفر او زنی او لواطت مثلاً چي په هغه هر سړی پوهېږي د ماسوی د هغو حسن او قبح خو په نيت پوري مربوط ده او په نياتو خو علم نه لري الا الله تعالی فيجازيهم علی حسبه مقصدهم ودينهم.

وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ حَتَّىٰ نَعْلَمَ الْمُجَاهِدِينَ مِنكُمْ وَالصَّابِرِينَ وَنَبْلُوَ أَخْبَارَكُمْ

موږ به ستاسي امتحان وکړو بان نأمرکم بالجهاد في سبيل الله.

**سوال:** خدای پاک په علم قديم سره مجاهدين وغيرهم سره خبر دٔ، نو امتحان ته څه ضرورت دٔ؟

**خواب:** بعض مفسرين وايي چي نعلم په معنی د نميز دی او د علم قديم د مجاهدينو او غيرهم يو د بل تميز او جلا والی خو په امتحان سره کيږي.

**درويش وايي:** چي وههنا جواب ادق من الاول وهو حتى نعلم علمنا بعد الوجود كما كنا قبل الوجود بانه سيكون كذا فافهم.

"المجاهدين منكم والصابرين" مجاهدين في سبيل الله او هغه کسان چي صبر کوي پر سختيو او کړاوو د جهاد وهذا العطف من قبيل عطف صفة على صفة الموصوف واحد "ونبلوا اخباركم" مونږ به ابتلاء وکړو ستاسي د خبرو (چي په هغو خبرو سره به حسن او قبح د اعمالو ستاسي معلوم سي) فينظر حسنها اى في المؤمنين وقبحها يعني في المنافقين.

**إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا عَن سَبِيلِ اللَّهِ وَشَاقُّوا الرَّسُولَ مِن بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْهُدَىٰ**

په تحقيق هغه کسان چي کفر کوي او نور خلک هم منع کوي د لاري څخه د خدای (يعني الايمان بمحمد ﷺ، او دا احتمال هم سته چي خلک منع کوي د جهاد في سبيل الله څخه) او مخالفت کوي د رسول معهود چي محمد ﷺ دی، وروسته تر دې چي دوی ته لار د هدايت بيان سوه يا ورته معلومه سوه، لکه يهودانو ته چي د هدايت لار چي ايمان پر محمد ﷺ من مطالعة التورات و وجدان نعوت نبي اخير الزمان من التورات معلومه وه، راويان وايي چي دا آيت په بني قريضه او بني النضير کي نازل سوی دی چي دوې لويې طائفې د يهودانو وې د مدينې د شاوخوا، او بعض مفسرين وايي چي مراد څني هغه دوولس (۱۲) کسان دي چي و بدر ته را روان وه لپاره د قتال د عليه الصلوة والسلام او مؤمنانو چي دې دوولس کسانو به په نوبت لس لس اوښان حلالول.

**لَن يَضُرُّوا اللَّهَ شَيْئًا وَسَيُحْبِطُ أَعْمَالَهُمْ ۝**

ضرر نسي رسولای په خپل کفر سره هيڅ شی لره ضرر څخه (نکرة ده په سياق کي د نفي راغلېنو عموم د شي من الضرر فائده کوي كما تقرر في النحو، بلکې ضرر راجع د دوی خپلو ځانو ته دی) خدای به لغو کړي اعمال د دوی يعني هيڅ ثواب به په اخيرت کي ورنه کړي لعدم شرط الثواب وهو الايمان ولايترتب عليه منفعة في الدنيا ولي

تاسي واورېده چي د بدر د لاري ډووبې چي به يې ورکوله دوولس کسان وه په دنيا کي
يې هم په درد ونه خوړل ولي چي اوويا (٧٠) کسان يې پر ميدان د جنګ مردار پرېښول
او اوويا يې په حصارت ولاړه او په ذلت له جنګه وتښتېدل مکې ته ولاړه واي ضرر
اعظم من هذا والى هذا اشار اليه تعالى في قوله ان الذين كفروا ينفقون اموالهم
ليصدوا عن سبيل الله فسيفقونها ثم تكون لهم حسرة ثم يغلبون.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَأَطِيعُواْ ٱلرَّسُولَ وَلَا تُبۡطِلُوٓاْ أَعۡمَٰلَكُمۡ

اى هغه کسانو چي ايمان يې راوړی دی فرمانبرداري کوي د خدای او فرمانبرداري
د رسول، او مه باطلوئ خپل عملونه. قال ابن عباس رض وعطاء رح چي مه يې باطلوئ په شک
سره في دين الله او يا په نفاق سره يا په عجب او تکبر سره. وقال الحسن بالمعاصي
والكبائر وقال مقاتل لاتمنوا على رسول الله ﷺ بايمانكم فتبطل اعمالكم.

**درويش وايي:** چي مظهري خلاف له سياق څخه د دمخو آيتو دا آيت وفقه ته
وقف کړی او ايراد د مذهبو او احاديثو دلائلو او نقض و ابرام سپارلی دی چي
اووه صفحې يې ډکي کړي دي.

**درويش وايي:** چي ما په سبب د طول الكلام هغه صرف نظر کړی.

إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ وَصَدُّواْ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ ثُمَّ مَاتُواْ وَهُمۡ كُفَّارٞ فَلَن يَغۡفِرَ ٱللَّهُ لَهُمۡ

په تحقيق هغه کسان چي کافران يعني کفر يې مختاره کړی وي (بای نوع من
الكفر الشرک، واليهودية والنصرانية وغيرها من اقسام الكفر) بيا مړه سي په
داسي حال کي چي دوی کفار وي، هرګز خدای بخښنه نه کوي دوی ته. کريمه: ان
الله لايغفر ان يشرک به ويغفر ما دون ذالک لمن يشاء. بعض علماء وايي چي دا
آيت په شان کي د هغو اوويا کسانو نازل سوی دی چي پر ميدان د بدر ووژل سول
او يو ناپه کاره څه (کوهي) ته يې ټوله واچول او خاوري يې پر واړولې.

**درويش وايي:** چي بقاء د آيت پر عموم باندي اولی د يعموم الفائدة مع شموله
لما ذكرهم فتدبر.

فَلَا تَهِنُواْ وَتَدۡعُوٓاْ إِلَى ٱلسَّلۡمِ

تاسي مه ضعيف کېږئ د جهاد في سبيل الله څخه او تاسي مه رابولئ ابتداء

کفار و صلح ته لانه دلیل الجبن و الضعف فیکم البته که کافران طلب د صلح درڅخه وکړي که صلح ستاسي خیر وه بیا صلح ورسره وکړئ.

**پوه سه:** چي په "وتدعوا" کي په اتفاق د مفسرینو کلمه د لا مقدر ده، والتقدیر لاتدعوا.

**وَأَنتُمُ الْأَعْلَوْنَ ۖ وَاللَّهُ مَعَكُمْ وَلَن يَتِرَكُمْ أَعْمَالَكُمْ ﴿۳۵﴾**

تاسي غالب یاست په نصرت د خدای چي ستاسي سره یې وعده کړې ده یعني للمؤمنین الصالحین (دا جمله حال ده له فاعل څخه د تدعوا و وعد الله لاخلف فیه) او خدای ستا سره دی یعني بالنصر والعون فان الایمان یقتضي حب الله وقد ورد المرء مع من احب "ولن یترکم اعمالکم" (ای نه کموي له تاسي څخه یو شی له ثواب څخه د عملو ستاسي) مشتق دی د تره یتره اذا نقص حقه او ابن عباس رض او مقاتل رح وقتاده رح وایي معناه لن یظلمکم اعمالکم الصالحة ای لایبطلها.

**إِنَّمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا لَعِبٌ وَلَهْوٌ ۚ**

نه دی ژوند د دنیا مگر بازي یعني لا یترتب علیها فائدة معتدة بها یعني مالم یکن فیها ذکر الله قال رسول الله ﷺ الدنیا ملعونة وملعون مافیها الا ذکر الله "ولهو" غفلت دی چي تاسي منع کوي عما یفیدکم في الحیوة الدائمة.

**وَإِن تُؤْمِنُوا وَتَتَّقُوا يُؤْتِكُمْ أُجُورَكُمْ وَلَا يَسْأَلْكُمْ أَمْوَالَكُمْ ﴿۳۶﴾**

او که تاسي ایمان راوړئ ای بالله ورسوله في الدنیا "وتتقوا" او تاسي د عذاب د خدای ځان وساتئ په اتیان د اوامرو د خدای او اجتناب د منهیاتو د خدای "یؤتیکم اجورکم" خدای تاسي ته درکوي ثواب د اعمالو ستاسي او د تقوی په اخرت کي، نو دا حیاة الدنیا مزرعة الآخرة ده ولاتکون لهوًا ولعبًا "ولایسئلکم اموالکم" ولي چي رب جل وعلی محتاج نه دی و شي ته او په ایمان او طاعت چي مو امر کوي ددې لپاره چي ثواب بالجنة درکړي کما في قوله تعالی ما ارید منهم من رزق، او بعض مفسرین وایي لایسئلکم الله ورسوله اموالکم کلها في الصدقات انما یسئلکم جزاءً یسیرًا وهو ربع العشر په نقود کي یا یو پسه من (۱۲۰) شاة هغه هم من مال نام (چي نما کوي) نو دا لږ مال چي خدای او رسول یې

غواړي باید په طیب نفس او خوشحالي سره ورکړي دا قول د ابن عیینة دی او سیاق د ایت هم پر دغه دلالت کوي، نو دا جمله دفع د توهم دد ې کوي چې خدای پاک چې ذم د دنیا وواییې او مدح د ایمان او د تقوی یې وکړه دد ې لپاره چې خدای پاک غواړي چې مسلمانان ټوله خپله شتمني في سبیل الله صرف کوي.

**درویش وایي:** چې د دفع د دغه توهم خدای پاک داسي وویل "ولا یسئلکم اموالکم" یعني کلها حتی چې موجب د بخل ستاسي وګرځي کما یقول

إِن يَسْأَلْكُمُوهَا فَيُحْفِكُمْ تَبْخَلُوا وَيُخْرِجْ أَضْغَانَكُمْ ﴿٣٧﴾

"ان یسئلکموها" ای جمیعًا "فیحفکم" په تکلیف کي به واچوي په سبب د طلب الکل.

**پوه سه:** چې احفاء مبالغه او بلوغ الغایة ته وایي چې دلته طلب د ټول مال دی "تبخلوا" تاسي به خامخا په طلب کي د کل المال او په ورکړه کي د هغه به بخل کوئ "ویخرج اضغانکم" ښکاره به کړي خدای بغض ستاسي د داسي دین سره.

هَا أَنتُمْ هَٰؤُلَاءِ تُدْعَوْنَ لِتُنفِقُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ

مبتداء او خبر دی.

مفردات: هاء حرف تنبیه ده وانتم مبتداء ده او هٰؤلاء خبر دی، او یا هٰؤلاء منادی ده په حذف د حرف نداء یعني یا هٰؤلاء والخبر تدعون.

"تدعون" بلل کېږي "لتنفقوا" چې تاسي انفاق کوئ بما فرض الله علیکم د الله په لار کي من الزکوة ونفقة الغزاة وصلة الرحم وغیرها

فَمِنكُم مَّن يَبْخَلُ ۖ وَمَن يَبْخَلْ فَإِنَّمَا يَبْخَلُ عَن نَّفْسِهِ ۚ

بعض له تاسي څخه داسي کسان دي چې په ما فرض الله کالامور المذکورة هم بخل کوي یعني له ورکړي څخه یې ډډه کوي. او هغه څوک چې بخل کوي په واجباتو کي هم، نو دا بل نه دی مګر د ځان سره ولي چې نفع د انفاق او ضرر د بخل راجع وده ته دی، له ابن مسعودؓ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ یو ورځ خلکو ته (یعني صحابه کرامو ﷺ ته یې داسي وویل چې کوم یو دی ستاسي داسي چې مال د وارث دي محبوب وي وده ته تر خپل مال (یعني چې زه دي فقر کوم څو

وارث مي اباد وي) صحابه كرامو ﷺ ورته وويل چي څوک په موږ كي داسي سړى نشته مگر چي مال خپل يې محبوب تر مال د وارث دى، قال ﷺ فان ماله ماقدم (دده مال هغه دى چي ځان د مخه كړي يعني په لار د خير يې مصرف كړي او مال د وارث يې هغه مال دى چي دى مړ سي وارث ته يې پريږدي)

**حكايت**: يو سړى وُ ډېر بخيل زكوة خوره وُ، نو ناجوړى سو وخت د زكندن چي يې نژدې سو، نو ځوان زوى يې راوباله وصيت يې ورته وكړى چي پر ما د څو كلو زكاتونه پاته دي چي زه مړ سم ته به يې مسكينانو ته وركړې، زوى يې ورته وويل چي بابا هغه وخت چي مال ستا وُ ولي دي زكوة نه وركاوه اوس چي مال زما سو يعني په ميراث راپاته سو، نو زما په مال يې ستا څه چي زه خپل له مال څخه ستا زكوة وركړم.

**درويش وايي**: چي د داسي پلار داغسي جواب د زوى لائق وُ، والحديث المذكور آنفًا رواه البخاري والنسائي وعن ابى هريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ ما من يوم يصبح العباد فيه الا ملكان ينزلان (داسي ورځ نسته چي بندگان په سهار كړي مگر دوې ملكي نازلېږي يعني له اسمانه، يوه وايي اللهم اعط منفقًا خلفًا (وركړې هغه چاته چي انفاق كوي عوض، يعني في سبيل الله مراد د عوض څخه دنيا او اخرت دى) ويقول الآخر اللهم اعط ممسكًا تلفًا (وركړې و بخيل ته تلف د مال) متفق عليه للبخاري ومسلم، وعن اسماء بنت ابى بكر ﷺ قالت قال رسول الله ﷺ انفقي (نفقه كوه يعني مسكين وغيره ته) ولاتحفى (لاس مه پر نسه فيحفى الله عليك (پر تا به خداى تنگي د رزق راولي، الى اخير الحديث، وعن ابى هريرة ﷺ قال رسول الله ﷺ قال الله تعالى: انفق يا ابن آدم (نفقه كوه پر خوار او غريب او مسكين وغير ذالك) أنفق عليك (پر تا به نفقه وكړل سي يعني د خداى له خوا څخه، متفق عليه (درويش وايي وقد جربت ذالك)

**وَاللَّهُ الْغَنِيُّ وَأَنْتُمُ الْفُقَرَاءُ**

خداى غني دى ستاسي د صدقاتو او د عباداتو څخه، او تاسي محتاجه ياست خداى ته په رزق او صحت او عافيت وغير ذالک كي، نو له دې سببه خداى تاسي امر كړلاست په صدقاتو في سبيل الله لاحتياجكم في الدنيا والآخرة اليه تعالى.

وَإِن تَتَوَلَّوْا يَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ ثُمَّ لَا يَكُونُوا أَمْثَالَكُم ﴿٣٨﴾

او كه تاسي اعراض وكړئ له قبول څخه د دين اسلامي (يا له عليه الصلوة والسلام څخه وبعبارة اخرى عن طاعة الله وطاعة رسوله والانفاق في سبيله) "يستبدل" خداى به ستاسي په عوض كي يو بل قوم غير له تاسي څخه چي هغه به هم ايمان راوړي او هم به د تقوى پر لار روان وي او اطاعت د خداى او رسول به كوي.

**پوه سه**: چي مخاطب په دې آيت كي تهوله عرب دي.

"ثم لايكونوا امثالكم" وروسته به نه وني تاسي غوندي بلكي هغه به اطوع وي تر تاسي لله و لرسوله.

درويش وايي: چي مراد د خداى عزوجل له دې قوم څخه څوك دي، عظيم اختلاف د اهل تفسير دى: الكلبي" وايي چي مراد له قوم څخه نخع او كندة دي، الحسن" وايي چي مراد عجم دي.

**پوه سه**: چي دائره د عجمو نهايته فراخه ده، نه ده معلومه چي د الحسن" كوم عجم مراد دي، او عكرمه" وايي چي مراد فارس او روم دي، عن ابى هريرة ﷺ چي عليه الصلوة والسلام دا آيت تلاوت كړى، نو صحابه كرامو ﷺ وويل: من هؤلاء فضرب (يعني عليه الصلوة والسلام) پر ورانه د سلمان الفارسي" ثم قال هذا وقومه، او پسي زياته يې كړه ولو كان الدين عند الثريا (پېرونى) لتناوله فارس، رواه البغوي والترمذي والحاكم.

**درويش وايي**: چي دا حديث په ډېرو اسانيدو د ډېرو رواتو څخه مروي دى چي الفاظ يې نهايت سره متقارب دي قال شيخ محمد بن يوسف الصالحي" الشافعي المذهب، قال الشيخ جلال الدين السيوطي الشافعي" المراد بهذا الحديث ابو حنيفة واصحابه".

**درويش وايي**: چي د امام شافعي" مذهبيان هم دا حديث محمول پر ابو حنيفة" بولي يعني تقوى دار علماء حسد نه سره لري لكه زموږ د زماني مولوي صاحبان يا مفتي صاحبان، د محمد بن ادريس الشافعي" صاحب المذهب څخه په صحيح نقل ثابت ده چي ده وويل: الناس عيال لابى حنيفة" في الفقه، له عبد الله بن مبارك

څخه روایت دی چي امام بخاري د بعض احادیثو روایت کړی هغه په مدح د امام ابو حنیفة یوه قصیده جوړه کړې ده چي یو دوه بیته به یې په ګډه سره واورو:

لقد زان البلاد ومن علیها امام المسلمین ابو حنیفة
فما بالمشرقین له نظیر ولا بالمغربین ولا بکوفة

**درویش وایي:** چي که څوک پوره د ژوندانه حالات د امام اعظم د فقاهت او د اجتهاد او د تقوی غواړي چي په خبر دي سم، نو دي د فقیر پښتو شرح د فقه الاکبر مطالعه کړي چي فقیر په حواله د تواریخو صحیحه ؤ په هغه شرح کي بیان کړی، اوس به د کوټټي د ښار د کتاب فروشانو سره موجوده وي ان شاء الله تعالی، نو فهم کوه حاسده چي داسي ګمان ونه کړې چي ته په دې بیان کي خپل د علمیت شهرت غواړې، بلکي انما الاعمال بالنیات، زه په دې حواله د خپلي رسالې ورونه اتباع امام المسلمین د خپل امام په تاریخ خبروم.

تفسیر ایوبي حنفي د نصیراحمد احمدي لخوا سکین او pdf سو. د دعا محتاج احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵٦۹

الحمد لله رب العالمین

سُوْرَةُ الْفَتْحِ مَدَنِيَّةٌ وَهِيَ تِسْعٌ وَعِشْرُوْنَ اٰيَةً وَّفِيْهَا اَرْبَعُ رُكُوْعَاتٍ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

**درویش وايي:** بحمد الله وحسن توفيقه والصلوة والسلام على رسوله وحبيبه سيدنا محمد وعلى آله واهل بيته واصحابه الكرام، تاریخ د سورة الفتح د روژې د مبارکي مياشتي پر (۲۵) د جمعې مبارکي په شپه پر لس بجې وروسته تر صلوة التراويح، وادعوا الله الكريم المعطي لكل سؤل لا اله انت نستعينك ونستغفرك ونسئلك خير الدنيا والآخرة ونشهدك انت ربنا ورب السموٰات والارض ونسئلك ان توفقني لتفسير سورة الفتح على وجه السداد بالخير والعافية والصحة والسلام انت على كل شيئ قدير وبالاجابة جدير واشفني من جميع الامراض الموجودة في شفاء كاملاً.

**پوښتنه:** الزهري" وايي چي سورة الفتح له اوله څخه تر اخيره پوري په منځ کي د مکې او مدينې نازل سوه دی، يعني وروسته تر صلح د حديبيې چي عليه الصلوة والسلام رجوع له مکې څخه و مدينې ته وکړه، نو ځرنګه دې سورة ته مدني ويل کېږي مع ان المفسرين باتفاقهم سموه مدنيًا؟

**ځواب:** مدني په اصطلاح کي د اهل تفسير هغه سورة يا آيت ته وايي چي بعد الهجرة نازل سوی وي ولو بمكة كما ان المكي ما نزل قبل الهجرة ولو كان خارج المكة كما في حواشي السعدي المفتي.

اِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِيْنًا ﴿۱﴾

موږ تا ته فتح درکړه فتح ښکاره.

اهل تفسير اختلاف لري في هذه الفتح، روى عن ابى جعفر الرازي عن قتادة عن انس" چي مراد څني فتح د مکې ده نو دا د خدای" وعده ده په فتح سره د مکې.

**سوال:** فتح د مکې خو وروسته تر دې وسوه، نو تعبير يې په ماضي صيغه ځرنګه وسو؟

**ځواب:** موعود د خدای" لکه واقع دی لتحققه لامحالة، نو په دې کي چي فتح د مکې هنوز نه وه سوې فتح يې وبلل چي وروسته هم وسوه معجزة للنبي ﷺ، لكن صحيح دا ده چي دا صلح د حديبيه په خپله فتح ده كما سيئاتي.

**درویش وایي:** چي مظهريؒ حسب عادت يې (۱۴) صفحې بيان کړی دی، لکن فقير دومره طول رطب و يابس کرده پکښې جمع کول د متعلمينو د تفسير ايوبي درد سر بولي ولهذا اقتصرت القصة فاقول سبب د صلح د حديبيه چي نژدې و مکې ته د يو ځای نوم دی يعني فراخه مځکه ده چي يوه برخه په حدود کي د حرم داخل ده، او يوه برخه له حدود څخه د حرم دباندي ده. چنانچه په بيان کي دد ې واقعې راغلی دی چي عليه الصلوة والسلام خپلو د همراهانو سره خيمې په زمين حل کي ودرولې او لمونځونه يې په حدود کي د حرم داخل کول، په حديبيه کي يو څاه موجود ؤ قليل الماء چي د پخوا د وخته مسافرينو به د يوې شپې او ورځې لپاره دالته ځانونه راحت کول، نو سبب دد ې سفر دا ؤ چي عليه الصلوة والسلام په مدينه منوره کي خوب ليدلی ؤ چي دی او اصحاب دده مکې مکرمې ته ورغله معتمرين آمنين (يعني په امن کي) محلقين (چي بعض به د عمرې له افعالو وروسته ځانونه حلالول سرونه به يې تول وخريل او بعض عمرې والو به قصر وکړی يعني څه ويښتيان به يې پرې کړه) او دا يې هم په خوب وليدل چي دی د کعبې شريفي خوني ته داخل سو او کلي يې د کعبې له متولي څخه واخستل، وطاف هو واصحابه للعمرة، او دا خوب يې اصحابوؓ ته بيان کړی اصحاب ډېره خوشحاله سوه لان الرؤيا الانبياء وحي وروسته يې اصحابو ته اعلان وکړی چي زه عمرې ته ځم نو اصحابوؓ هم ځانونه عمرې ته اماده کړه، بيا عليه الصلوة والسلام په کور کي غسل وکړی او يو دسمال يې پر اوږه ؤ او بل يې لنګ ؤ او پر خپله اوښه چي قصوی يې بلل سپور سو د دروازې سره د مسجد.

**درویش وایي:** چي په عدد کي د ملګرو يې اختلاف دی بعض وايي (۱۴۰۰) کسه وه، او په بعض رواياتو کي (۱۵۰۰) کسه وه او په بعض رواياتو (۱۶۰۰) کسه که څه هم روح البيان وايي چي صحيح روايت يې (۱۴۰۰) دی، لکن فقير وايي چي دد ې رواياتو تر مابين اختلاف نسته، ولي چي په عزم د عمرې عليه الصلوة والسلام تو له د صحرا او باندو مسلمانان خبر کړي وه نو دی مبارک که څه هم د مدينې منورې څخه (۱۴۰۰) کسه ورسره وه ووتی، لکن د قريو او د باندو خلک پر محاذات د خپلو کلو ورسره ملګري کېدل حتی چي (۱۵۰۰) ته ورسېدل، دغه رنګه بيا نور خلک

ورسره ملحق کېدل تاچي (۱۶۰۰) ته ورسېدل. لکن ډېر اهل قرئ یعني مسلمانان له قریشو څخه د جنګ د ببرې نه سوه ورسره ملګري، او علیه الصلوة والسلام د ځان سره اوویا (۷۰) اوښان هدیه مکې ته راهي کړې وه، تاریخ د وتلو د علیه الصلوة والسلام له مدینې څخه د دوشنبې ورځ وه اول د ذی القعدة چي په پښتو یې میانی بولي سنه شپږ (۶) هجري وه، نو چي علیه الصلوة والسلام او ملګري یې ذی الحلیفة چي میقات د اهل مدینې دی ورسېدل صلی بالمسجد هناک رکعتین او احرام د عمرې یې وتاړه یعني لبیک بعمرة فیسرها لی وتقبلها مني، اکثره اصحابو دلته احرامونه وتړل، بعضو پر حجفة چي مقیات د اهل شام دی احرام وتاړه.

**نکته**: د عمرې په احرام ولي علیه الصلوة والسلام اعلان وکړی تاچي اهل مکه ومن حولها په دې پوه سي چي علیه الصلوة والسلام د جنګ لپاره نه دی راروان بلکې لزیارة بیت الحرام.

ددې سفر په اوږدو کي معجزه: راوي وایي چي یو ځای چي دوی اړولي وه او علیه الصلوة والسلام د یو رکوة (کوټوری مانند لوښي) څخه اودس تازه کاوه، خلک په ځغاسته ورته راغله علیه الصلوة والسلام ورته وویل مالکم (یعني څه خبره ده؟) ولي راځغلئ؟ هغو ورته وویل چي ټوله لښکر نوري اوبه بېله دغو اوبو چي ته اودس په تازه کوې نه لري، نو علیه الصلوة والسلام پر رکوة باندي لاس کښېښوی، نو انس ﷺ او ټوله اصحاب وایي چي په مابین د هرو دوو ګوتو د علیه الصلوة والسلام په مثال د چینو اوبه رابهېدلې حتی ټولو صحابه وُ اودسونه په تازه کړه او وه یې هم څېښلې، حتی جابر ﷺ وایي چي که موږ یو لک نفر هم وای د ټولو به دغه اوبه بس سوي وای.

**درویش وایي**: چي دا معجزه ډېره عجیبه ده تر معجزې د موسیٰ ﷺ چي په لکړه به یې ډبره ووهل چینې به ځني راووتلې، دلیل د تعجب یې دادی چي راوتل د اوبو د ډبرو یعني په غرو کي یعني نه د موسیٰ په ضرب الحجر چي پیدا کېدې، ولي هغه بلا ریب معجزه وه، بلکې مطلق اوبه په غرو کي له ډبرو څخه عادي کار دی، لکن د صافو اوبو پیدا کېدل د مابینه څخه د غوښي او وینو پیدا والی نه چا لیدلی او نه یې اورېدلي دي او نه کوم تاریخ رانقل کړي دي.

**پوښتنه:** د څه حکمت لپاره يې لاس د کوټوري په اوبو لوند کړی؟

**ځواب:** حکمت يې ادب ؤ د خدای عزوجل سره لانه تعالی منفرد په ابداع او ايجاد د معدوم من غير اصل، رواة د قصې وايي چي عليه الصلوة والسلام بشر بن سفيان مکې ته واستاوه چي د مکې والو حال معلوم کړي چي دوی په سفر کي د عمرې په مکه څه عکس العمل ښکاره کړی دی، بشر بن سفيان چي بيرته راغلی نو عليه الصلوة والسلام ته يې وويل: هذه قريش قد سمعت بخروجک الی مکة للعمرة، نو دوی د پړانګانو پوستکي اغوستي دي.

**درويش وايي:** چي دا جمله کنايه ده د سخت عداوت او بغض څخه او دوی راغوښتي وه هغه کسان د احابيش د قبيلې چي د دوی اطاعت يې کاوه (احابيش د لوی قبيلې نوم دی له عربو څخه) ومعهم زادهم (د دوی د سفر نفقه هم ورسره وه) او ښځي او اولادونه ورسره وه، ليکون علامة لعدم الحرب ان وقع. او په ذی طوی کي چي په مکې کي د يو ځای نوم دی سره غونډ سوي وه او خېمې يې درولې وې، او معاهده يې قطعي سره کړې وه چي دی او د ده ملګري به تول نه پرېږدو چي عليه الصلوة والسلام او ملګري چي مکې ته داخل سي، وروسته رسول کريم ﷺ په مقتضی د هغه امر الهي "وشاورهم فی الامر فاذا عزمت فتوکل علی الله" اصحابو کرامو ته چي د ده سره همراه وه داسي وويل: اشيروا علي ايها الناس اتريدون ان نوم البيت فمن صددنا عنه قاتلناهم" ماته مشوره راکړئ ای خلکو، آيا تاسي اراده لرئ چي موږ په قصد د بيت الله الشريف ور روان يو که چا موږ منع کولو د هغه سره به جنګ کوو او که څرنګه؟ فقام المقداد بن الاسود رض (چي يو ستر مشر د زړه دک سړی ؤ د انصارو څخه) او وه يې ويل چي موږ تا ته دا نه وايو لکه بني اسرائيلو چي موسٰی ع ته وويل چي موسٰی ع په امر د خدای ج د دوی امر کړه په قتال د جبابره ؤ سره "اذهب انت وربک مقاتلا انا ههنا قاعدون" (ولاړ سه ای موسٰی ته او ستا خدای نو د جبابره ؤ سره جنګ وکړئ موږ دلته در ته ناست يو (يعني که مو فتح وکړه پر موږ به زيږ وکړئ چي راځئ) المقداد رض عليه الصلوة والسلام ته وويل چي موږ داسي وايو اذهب انت وربک (يعني خدای دي معاون سه) فقاتلا (تاسي جنګ وکړئ يعني ته په صورت او خدای په غيبي نصرت) او

موږ هم درسره يو، مقاتلون فقال عليه الصلوة والسلام فامضوا على اسم الله، نو درځئ پر نامه د خداى ج يعني الله اكبر، راوي وايي چي څه وخت و عقبه ته ورسېدل (چي د يو ځاى نوم دى چي تر دې ځاى وروا اوړې مکې مکرمې ته سړى داخلېږي) د عليه الصلوة والسلام اوښه قصوى په خپله چوکه سوه حل حل (په اواز عرب اوښ ولاړوي) او خلګو وويل خلئت القصوى ځان واچاوه قصوى، عليه الصلوة والسلام ورته وويل: ما خلئت القصوى، او نه هم ددې دا عادت ؤ بل جبسها حابس الفيل بلکې قصوى منع کړه له جنګ څخه د مکې والو هغه ذات قادر مطلق چي د ابرهه فيلان د جنګ څخه منع کړه کما قال عز من قائل الم تر کيف فعل ربک باصحاب الفيل الى اخير السورة، وروسته عليه الصلوة والسلام وويل: چي زما دې په خداى ج قسم وي چي مکې وال چي هر شى وغواړي چي د اسلام سپکاوى نه وي پکښې زه به يې ددوى سره منم، دا چي يې وويل خپل پر اوښه يې ږغ وکړى اوښه ولاړه سوه، بيا عليه الصلوة والسلام وويل: چي يو سړى نسته چي په هغه ځاى کي چي مکې وال سره جمع دي پر بله لار مو بوزي؟ يو سړي د بني اسلم د قبيلې چي نوم يې ناجيه بن جندب ؤ وو داسي وويل: انا يا رسول الله ﷺ، نو ناجيه دوى پر داسي لار بوتله چي سخته وه په غرو او په ډبو کي چي وروسته هموارې مځکي ته ورسېدل بيا عليه الصلوة والسلام امر وکړى ناجيه ته چي پر داسي لار مو بوزه چي مهبط د حديبيه وي کښته تر مکې نو پر هغه ځاى حديبيه يې واړول، نو دوى هم تږي وه او اوښان يې هم تږي وه، نو د حديبيه څاه ته لکه د مخه چي فقير ذکر وکړى نهايت قليل الماء ؤ، دې لښکر نبوي چي يو څو سولغې ځني راوکښې څاه وچ سو چي يو څاڅکى اوبه نه پکښې معلومېدې، خلګو و رسول الله ﷺ ته شکايت وکړى د ډېري تندي، نو سور د ښت ؤ سخته ګرمي وه او څاه هم وچ سو، نو عليه الصلوة والسلام د بغل ځولى څخه يو غشى راوکښى، او براء بن عازب رضي الله عنه ته يې وويل چي د څاه په منځ کي دې ښخ کړي او رسول الله ﷺ د څاه غاړې ته ورغلى او په خوله مبارکه يې اوبه ولغړولې هغه يې پکښې تو کړې او خلګو ته يې وويل چي تاسي يو ګړى څاه پرېږدئ وروسته ورسئ خپلې اوبه ځني راکاږئ خلګو هم داغسي وکړه وروسته چي ورغله څاه تر

خولې پورې د اوبو ډک سو خپل ځانونه او اوبښان يې تول په اوبه کړه تر هغو پورې چې تخمينًا څورلس (١۴) ورځې عليه الصلوة والسلام په حديبيه کې سره د اصحابو کرامو رض موجود وُ، نو دغه څاه مالامال د ابو ولاړ وُ، او په تفاسيرو کې وايي چې د هغه څاه اوبه تر اوسه نه دي کمې سوي، لکن په انسان العيون کې وايي چې عليه الصلوة والسلام او اصحاب چې څه وخت د حديبيه څخه کوچېدل البراء بن عاذب رض ورغلی هغه غشی چې د عليه الصلوة والسلام په امر يې د څاه په نس کې ښخ کړی وُ بيرته راوکېښ بغضًا لاهل مکة چې دوی يې عمرې ته نه پرېښول نصار البشر کما کان، والله اعلم، لکن په هر صورت حديبيه د سعوديانو په حکومت کې فوق العادة زېبا او قشنګ ځای ځني جوړ سوی دی، ښه ګلان، شنې شنې درختې پکښې دي چې هورې يې برمې وهلي دي.

**فائده:** په دې سفر کې کې د عليه الصلوة والسلام سره د امهات المؤمنين څخه ام سلمة رضي الله عنها ملګرې وه، راويان د قصې وايي چې عليه الصلوة والسلام چې د حديبيه څخه مطمئن سو د اهل مکه له خوا څخه بديل بن ورقاء چې د خپل قوم لوی سردار وُ د خبرو لپاره حديبيه ته راغلی او د عليه الصلوة والسلام څخه يې پوښتنه وکړه ما الذي جاء بک؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل چې زه د دې لپاره نه يم راغلی چې اراده د جنګ لرم ستاسي سره، انما جئت زائرًا للبيت يعني للعمرة فقط نو بديل بيرته ولاړی قريشو ته چې عليه الصلوة والسلام پيغام يې دوی ته ورساوه او هغو دا پيغام ونه مانه، بيا قريشو الحليس بن علقمه راواستاوه د خبرو لپاره وکان سيدًا للاحابيش کمامر هغه چې د عليه الصلوة والسلام سره خبرې وکړې عليه الصلوة والسلام هغه پخوانی خبره ورته وکړه کمامر آنفًا قريشو د هغه پر خبره هم اعتماد ونه کړی وروسته قريشو عروة بن مسعود الثقفي عظيم الطائف ورواستاوه متمول العرب کلهم دې نمائينده چې هم خپلې خبرې د عليه الصلوة والسلام سره وکړې او عليه الصلوة والسلام خپل مرام و هغه ته بيان کړی کمامر لکن عروة چونکه يو سړی وُ د عليه الصلوة والسلام او د اصحابو رض په عمل کې فکر وواهه دا يې وليدل چې عليه الصلوة والسلام چې به اودس تازه کاوه اصحابو رض پر هغه مستعملو اوبو تقريبًا جنګ سره کاوه او هر چاته چې به هغه اوبه

په لاس ورغلې په مخانو بې ومښلې او چې علیه الصلوٰة والسلام چې ناړي توه کړې هر صحابي به لاس ورته نیولی ؤ چې د چا په لاس کې به ولوېدې هغه به هغه ناړې په مخ او کالو پوري مښلې، او چې علیه الصلوٰة والسلام به ددوی سره خبري کولې هغو به عاجزانه او په خضوع سره خبري ورسره کولې، او دوی تېز و علیه الصلوٰة والسلام ته نه کتل تعظیمًا له، عروة بن مسعود الثقفي چې مکې ته راستانه سوه، نو قریشو ته یې دا وینا وکړه: یا معشر قریش اني جئت کسری في ملکه، وقیصر في ملکه والنجاشي في ملکه والله ما رئیت ملکًا في ملکه قط مثل محمد في اصحابه واني ارٰی ان لا تنصروا علیه، فقالت له قریش لا تتکلم بهذا یا ابا یعفور ولکن نرده هذا العام ویرجع في عام قابل، فقال عروة ما اراکم الا سعیکم فارغة (یعني دا ستاسي رایه چې تاسي سږ کال ولاړ سئ او پر کال راسئ زه یې فارغ او عبث بولم) لکن قریشو چې د عروة بن مسعود خبره ونه منل، نو عروه سره د خپلې قبیلې ټوله طائف ته ولاړه او وروسته یې اسلام هم راوړی، وروسته علیه الصلوٰة والسلام خراش بن امیه الخزامي راوبولی او خپل شخصي آس علیه الصلوٰة والسلام ورده ته ورکړی چې الثعلب یې باله لیبلغ اشراف قریش غرضه الذي جاء به یعني زیارة البیت الحرام بالعمرة، قریشو د علیه الصلوٰة والسلام د آس پښې ورپرې کړې او دا اراده یې وکړه چې خراش هم مړ کړي خو احابیشو له قتل څخه دوی منع کړه، خراش رض چې بیرته علیه الصلوٰة والسلام راغلی او صورت حال یې ټوله و علیه الصلوٰة والسلام ته بیان کړی، بیا علیه الصلوٰة والسلام عمر بن الخطاب رضی الله عنه راوغوښتی چې ته ولاړ سه د مکې و مشرانو ته زما حال بیان کړه یعني چې زه زائر البیت معتمرًا راغلی یم لا للحرب معکم، عمر رض ورته وویل یا رسول الله اخاف قریشًا علی نفسي، زه بېرېږم له قریشو څخه پر ځان یعني ما به ووژني وما بمکة من عدي بن کعب (چې د عمر رض خصوصي قوم ؤ) چې ما دي له قریشو څخه خلاص کړي او قریش خبر دي زما په شدت عداوت ددوی سره، او چې ما ډېر غلظت او سختي کول ددوی سره یعني قبل الهجرة چې ما ایمان راوړی لکن زه به یو سړی درو ښیم چې اهل مکه یې ډېر احترام کوي او قومي خلک هم د هغه په مکه کې ډېر دي چې عثمان بن عفان دی، نو علیه الصلوٰة

والسلام عثمانؓ راوغوښتی فبعثه الی اشراف قریش چي زما د راتګ مطلب ورته په واضح ډول بیان کړه، او بیا علیه الصلوة والسلام عثمانؓ امر کړی چي ته به ورسې و کورو ته د هغه مسلمانانو چي اوس هم په مکه کي پاته دي یعني لعدم القدرة علی الهجرة، او د هغو مسلمانو کورو ته به هم ورسې چي اسلام یې د قریشو له بېري پټ ساتلی دی، او دوی ته به وو ایاست چي علیه الصلوة والسلام وایي خدای پاک نژدې کړی دی هغه وخت چي دین اسلام به غالبه کېږي حتی چي هیڅ څوک به اسلام پټ نه ساتي، فخرج عثمانؓ الی مکة ومعه عشرة رجالاً بامر رسول اللهﷺ چي د هغو خلکو اهل او عیال په مکه کي ؤ، نو عثمانؓ چي مکې ته لا نه ؤ داخل سوی، ابان بن سعید په مخه ورغلی او هغه و ده ته اجازه ورکړه چي دی کولای سي چي مقصود او غرض د علیه الصلوة والسلام و قریشو ته بیان کړي، نو عثمانؓ چي رئیسانو ته د قریشو د علیه الصلوة والسلام مطلب بیان کړی ساداتو د قریشو په سختي سره ورته وویل چي محمد مکې ته نسي راتلای ابداً، فلما فرغ عثمانؓ من تبلیغ الرسالة وسمع منهم الرد القبیح لدخول علیه الصلوة والسلام بمکة بیا ساداتو د قریشو ده ته وویل یعني عثمانؓ چي که ته طواف او عمره کوې تا ته اجازه درکوو، عثمانؓ ورته وویل چي زه طواف د مکې نه کوم تر هغو چي رسول اللهﷺ طواف نه وي کړی، او قریشو عثمانؓ درې ورځي هورې د بندي په تو ګه ساتلی ؤ دلته یو خبر کاذب و رسول اللهﷺ ته را ورسېدی چي عثمانؓ سره د لسو کسو ملګرو قریشو په شهادت ورسول. فقال رسول اللهﷺ لاصحابهؓ چي موږ تر هغو د دې ځایه نه ځو چي د قریشو سره جنګ ونه کړو فامره الله بالبیعة من الصحابة، فنادی رسول اللهﷺ ایها الناس البیعة البیعة نزل روح القدوس (ای خلکو البیعة البیعة یعني حاضر سئ و بیعت ته جبرئیل؏ راغلی دی چي د خلکو سره بیعت وکړه)

**فائده:** لفظ ته د البیعة په نحو کي منصوب علی الاغراء وایي (یعني څوک پر یو کار باعثه کول) فاخرجوا علی اسم الله خلک یعني صحابه کرامؓ د خپلو خېمو څخه په دې تلوار سره راووتل و طرف ته د علیه الصلوة والسلام په داسي حال کي چي علیه الصلوة والسلام تر یوې درختي لاندي ناست ؤ چي د السمر په نامه

يادبد له فبايعوه على عدم الفرار، وقال رسول اللهﷺ وقال اما الفتح او الشهادة بيعت پيمانه شروع سو، په اخير کي عليه الصلوة والسلام د عثمانؓ له خوا هم بيعت وکړی (يعني على تقدير عدم صحت القول بقتل عثمانؓ نو عليه الصلوة والسلام خپل راسته لاس پر چپه لاس کښېښو، وقال اللهم هذه لعثمان فانه في حاجتک وحاجة رسولک.

**فائده:** ودې بيعت ته بيعت رضوان وايي، ولي چي په دې بيعت کي خدای ﷻ له دوی څخه راضي ؤ، وفيها نزلت قوله تعالى لقد رضى الله عن المؤمنين اذ يبايعونک تحت الشجرة، وفي الحديث الصحيح لايدخل النار احد بايع تحت الشجرة وقال ايضًا لايدخل النار من شهد بدرًا والحديبية واول من بايعه تحت الشجرة سنان بن سنان الاسديؓ فقال للنبيﷺ ابايعک على ما نفسک، زه ستا سره بيعت کوم پر هغه څه چي ستا په زړه کي دي عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي زما په زړه کي څه شی دی، سنانؓ ورته وويل چي زه به ستا په حضور کي خلک په توره وهم حتى يظهرک الله (تر هغو پوري چي خدای ﷻ تاته پر کفارو غلبه درکوي) يا زه وژل کېږم، وروسته چي نورو خلکو بيعت شروع کړی هغو به ويل نبايعک على ما بايعک سنان، راوي وايي چي وروسته تر دې ورځي عثمانؓ راغلی هغه هم تجديد د خپل بيعت ورسره وکړی، په صحيح تاريخ اسلامي کي راغلي دي چي محمد بن مسلمهؓ سره د څو کسانو پر پهره د عليه الصلوة والسلام ټاکل سوی ؤ، قريشو څلوېښت کسان په مشری د مکرز بن حفص را استولي وه د شپې د مخه په دې اميد چي ګوندي له اصحابو څخه د محمدﷺ بعض کسان ګرفتار کړي په وخت کي د غفلت ددوی، نو دوی چي راغله محمد بن مسلمهؓ او دده ملګرو چي د عليه الصلوة والسلام پر پهره درولي وه نو دوی يې ګرفتاره کړه، يو مکرز بن حفص په تېښته بريالی سو وتښتېدی، نو دا څلوېښت کاسه لاس بسته محمد بن مسلمهؓ او دده ملګرو و عليه الصلوة والسلام ته راوستل، نو قريشو ته د خپلو خلکو د حبس خبر ورسېدی، نو يو جماعت ددوی و الله اعلم چي څو کسان وه په دا غه شپه يې را واستول چي ورسيږ د اصحابو سره جنګ وکړئ نو د غشو او ډبرو ويشتلو جنګ شروع سو په مسلمانانو کي يو نفر په شهادت ورسېدی چي نوم يې ابن رستمؤ چي

په غشي و ويشتل سو، او مسلمانانو ددې جماعت څخه بيا دوولس نفره گرفتار کړه نور په تېښته ولاړه، نو په دې وخت کي قريشو و رسول الله ﷺ ته يو څو کسه په مشرۍ د سهيل بن عمر را واستول، عليه الصلوة والسلام چي سهيل وليدی اصحابو کرامو ؓ ته يې وويل قد سهل امركم، يعني د سهيل په نامه يې نېک فالي وکړه، وقد كان النبي ﷺ يحب الفال بمثل، فقال سهيل يا محمد ان من كانوا من قريش يعني حبس اصحابک يعني عثمان و عشرة رجال اخر وكان قتال من قاتل اصحابک لم يكن من راى ذوى رأينا بلکې موږ کارهين ددې کارو خود سرانه ؤ، نو موږ ته په لاس راکړه زموږ خلک يعني څلوېښت يو وار او دوولس کسه دوهم وار، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي زه يې نه در سره کوم تر هغو چي تاسي زما اصحاب يعني عثمان ؓ او لس کسه نور ورسره خوشي نه کړئ، قال سهيل نفعل، نبعث سهيل هغه کسان چي ورسره وه و قريشو ته راغله او وه يې ويل چي اصحاب د محمد يعني عثمان ومن معه خوشي کړئ، نو هغو دا خبره ومنل او عثمان ؓ ومن معه (۱۰) نفره يې ايله کړه څو چي و عليه الصلوة والسلام ته راورسېدل، نو عليه الصلوة والسلام هم د دوی اولاً او ثانيًا بنديان و سهيل ته په لاس ورکړه.

**بوه سه**: چي قريش چي په دې بيعت د رسول الله ﷺ او د صحابه کرامو ﷺ خبر سوه كبرت عليهم، او پر دې و بېرېدل چي عليه الصلوة والسلام جنګ ته اماده نه سي، او اصحاب رائ و دوی ته مشوره د صلح ورکړه پر دې مضمون چي عليه الصلوة والسلام سره د خپلو اصحابو به سږ کال ځي او پر کال د ذو القعدة (مياني) لکه سږ کال به راځي موږ به مکه يعني طواف ګاه د درو ورځو لپاره دوی ته خالي کوو، فبعثوا سهيل بن عمرو ثانيًا و معه مكرز بن حفص و حويطة بن عبد العزى او دا شرط چي په او سني کال کي به ځئ تا چي عرب دا ګمان و نه کړي چي عليه الصلوة والسلام په زوره مکې ته داخل سو، نو اتفاق پر صلح سره وسو، که څه هم بعض اصحاب په صلح اولاً راضي نه وه او داسي ګمان يې ؤ چي موږ ولي کفارو ته سپکاوی په دين کي ښکاره کوو وهم مشركون نحن مسلمون، نو عليه الصلوة والسلام دوی ته وويل چي و امر ته د خدای او د رسول غاړه کښېږدئ، خير خو هغه اصحاب هم قانع سوه او سره د هغه بعض اصحابو و رسول کريم ﷺ ته

وويل چې تا موږ ته نه وه ويلي چې موږ به مکې ته داخلېږو آمنين محلقين رؤسهم آه؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل چې ما داسې درته ويلي وه چې سږ کال؟ هغو ورته وويل چې يا، نو عليه الصلوة والسلام ورته وويل چې داخل به سئ آمنين محلقين آه، نو بيا عليه الصلوة والسلام علي ؓ طلب کړی (ولې چې هغه په خط او کتابت کې ماهر ؤ) فقال ﷺ اكتب بسم الله الرحمن الرحيم. سهيل ورته وويل چې موږ رحمٰن او رحيم نه پېژنو، لکن اكتب باسمك اللهم لان قريش كانوا يكتبون ذالک وقت الجاهلية، نو عليه الصلوة والسلام و علي ؓ ته وويل: اكتب كما قالوا (لعدم الفرق في المعنى) فكتب علي ؓ، وروسته عليه الصلوة والسلام علي ؓ ته وويل: اكتب هذا ما صالح عليه محمد رسول الله و سهيل بن عمرو. سهيل وويل چې که موږ دا منلای چې ته رسول الله يې نو مو ولې له دخول څخه د مکې منع کولې؟ لکن اكتب هذا: ما صالح عليه محمد بن عبد الله و سهيل بن عمرو، فقال رسول الله ﷺ لعلي ؓ چې محو کړه د رسول الله توری. فقال علي ؓ لا والله لا امحو رسول الله ابداً، ولې چې ما خو ستا رسالت منلی دی او عقيده پر لرم نو يې څرنګه محو کړم. بيا عليه الصلوة والسلام و علي ؓ ته وويل چې ما ته يې راوښايه هغه لفظ علي ؓ وروښووی نو عليه الصلوة والسلام پر لفظ د رسول الله قلم د محو کش کړی. وقال لعلي ؓ اكتب هذا ما صالح عليه محمد بن عبد الله و سهيل بن عمرو، او عليه الصلوة والسلام دا خبره هم وکړه: انا والله محمد رسول الله وان كذبتموني يعني قريش وانا محمد بن عبد الله ايضًا.

## د صلح نامې مضمون:

(۱) دا چې د مسلمانانو او قريشو تر منځ به لس کاله جنګ بندي وي، که مکې ته مسلمانان ورځي په امن به وي او که قريش مدينې ته ورځي په امن کې به وي.

**فائده:** دا شرط يعني چې د امن لاری سره ايله سوې په اوږدو کې د دې لسو کلو په سلګونو کافرانو ايمان راوړی، ولې چې دوی له مبارکې خولې څخه د عليه الصلوة والسلام خبرې بالمشافهة واورېدلې او بعض معجزات دوی په سترګو وليدلې. حتی راويان د قصې وايي چې تر دې صلح د مخه په لس کاله کې دومره کافران په دين کې د اسلام نه وه داخل سوي لکه په دې لسو کلو کې د صلح چې يې ايمان راوړی.

(۲) دوهم شرط دا ؤ چې که څوک له قریشو څخه که څه هم پر دین د محمد (ﷺ) وي بېله اذن د قریبانو مدینې ته ولاړ سي بیا مو ږ سړی درواستوو په لاس به یې ور کوو که نر وي او که ښځه. او که څوک مرتد سي یعنې چې پر محمد (ﷺ) یې ایمان راوړی وي بیرته کفر ته وګرځي نو موږ یې په لاس نه در کوو.

**پوښتنه:** دوهم شرط که څه هم صحیح دی ولې چې مرتد نو علیه الصلوة والسلام څه کاوه، ولې چې اسلام خو علیه الصلوة والسلام پر چا باندې په وهلو او ټکلو باندې نه تحمیل کاوه، مګر د اول شرط په منلو کې یې څه حکمت ؤ، ولې چې کافرانو خپل قریبان په وهلو او ټکولو بیرته کفر ته اړول؟

**ځواب:** روح البیان او نور تفاسیر وایي چې د هغه په رد کې عمارة البیت الحرام وزیادة الثواب في الصلوة في الکعبة الشریف والطواف علی البیت له دې څخه هم مشرکانو څوک نه منع کاوه فکان فیه ایضًا تعظیم حرمات الله، او د هغه مسلمان قریبان که څه هم ده ته ازار رسوي هغه د غو ثوابونو په مقابل کې چندان شی نه ؤ کما لایخفٰی.

(۳) ومن احب ان یدخل في عقد محمد (ﷺ) دخل فیه ومن احب ان یدخل في عقد قریش وفي عهدهم دخل فیه یعنې که د چا خوښه وي (ای من الکفار) چې په قرارداد کې د محمد (ﷺ) داخل سي په هغه کې دې داخل سي، او که څوک په عهد قرارداد کې د قریشو داخلیږي په هغه کې دې دخل سي.

(۴) زموږ او ستاسې یعنې قریش او مسلمانانو تر منځ عیبة مکفوفة (عیبة د کالو بخی ته وایي دلته مراد څنې کنایةً زړونه دي) چې په هغه کې د صلح نامه مضمون سته، نه به ښکاره کوي دا زړونه عداوت زموږ او ستاسې تر منځ بل منطویة علی الوفاء بالصلح.

(۵) قال سهیل: چې ته به سږه د اصحابو سږ کال ځې فلاتدخل مکة واذا کان العام القابل قریش به مکه یعنې طواف ګاه او د صفا او مروه څخه ووځي په نږدې غرو کې به کښېني ته به سږه د اصحابو رضي الله عنهم آمنین خپله عمره پوره کوې او درې ورځې وتاسې ته اجازه ده.

(۶) ستاسي سره به توري وي په خپل غلاف (يعني په تېکي کي) او د غشو لندی به د رسره وي بله سلاح به ستاسي سره نه وي.

**درویش وايي**: چي د مسلمانانو خو په دې کي شک نه ؤ چي موږ به سږ کال مکې ته داخلېږو او طواف عمره به کوو د عدم شک په سبب د هغه خوب ؤ چي عليه الصلوة والسلام و دوی ته بيان کړی ؤ، دلته چي دوی د صلح نامه مضامين واورېدل چي رسول اللهﷺ څونه درانه شرطونه تحمل کوي او د کفارو سره يې مني دخل من ذالک في قلوبهم امر عظيم، يعني وسوسې د شيطان حتی کادوا يهلکون، خصوصًا هغه شرط چي که يو مسلمان تاته درسي موږ سږی درواستوو ته به هغه مسلمان په لاس ورکوې.

**درویش وايي**: چي وعجب من ذالک کله داده چي په وخت کي د صلح نامې د نوشته کېدو د سهيل زوی ابو جندل چي مسلمان سوی ؤ او پلار سهيل يې په پښو کي زولنې وراچولي وې او د ضرب او کوب اثار يې پر بدن وه هم د مکې څخه راتښتېدلی ؤ چي په څونده تکليف به يې تر حديبيې ځان رارسولی ؤ راغلی د مسلمانانو په مابين کي يې ځان و غورځاوه چي زما دغه حال دی، سهيل و عليه الصلوة والسلام ته وويل چي د دوهم شرط امتحان به زما پر زوی معلوم سي چي ته يې ماته په لاس راکوې او که نه، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي تر اوسه صلح نامه نه ده امضاء سوې، سهيل ورته وويل چي تر څو يې په لاس را نه کړې زه صلح نه کوم، عليه الصلوة والسلام سهيل ته وويل چي دغه ستا زوی ماته راوبخښه، سهيل وويل لا: اخير عليه الصلوة والسلام ابو جندل سهيل ته رد کړی.

**درویش وايي**: چي د مسلمانانو پر زړو اوربل سو لکن هيڅ چا د مسلمانانو څخه هيڅ ونه ويل، ولي بيعة الرضوان تر صلح د مخه ؤ او دغه بيعة الرضوان باعث سو چي قريش و صلح ته راغب سوه، دا ما ذکرنا حال چي خلاص سو او پر صلح نامه بعض مسلمانانو امضاوې هم وکړې، عليه الصلوة والسلام خلکو ته وويل چي ځانونه حلال کړئ يعني سرونه و خرياست يا قصر وکړئ، درې واره يې وويل هيڅ چا عمل په ونه کړی، عليه الصلوة والسلام و خپلي خېمې ته ورغلی چي ام سلمهؓ پکښې وه دا حال يې د هغې سره شريک کړی، نو زموږ مورؓ ورته وويل چي

خلکو چي ستا په خوله عمل ونه کړی تا احرام بنده وینې، نو ددوی امید د مکې له دخول څخه نه دی ختلی کما قیل لعل یحدث بعد ذالک امرًا، ته ورسه خپلې هدايا ذبح کړه او حالق راوغواړه چي سر دي دروخريي بيا يې ته گوره چي مسلمانان څه کوي، نو عليه الصلوة والسلام هم داغسي وکړه، په يوه روايت کي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام خپله هدی په حديبيه کي ذبح کړه او غوښې يې په هغو فقراوُ وېشلي چي حديبيې ته راغلي وه، او په بل روايت کي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام شل اوښان د ناجيه ﷺ په لاس ورکړه چي په مکه کي يې پر مروة ذبح کړه او غوښې يې پر فقراوُ د مکې ووېشه، بيا عليه الصلوة والسلام په خپلې سرې خېمې کي چي د اديم احمر څخه جوړه وه کښېنستي سر مبارک يې خداش الذي بعثه الى مكة كما مر وروخرايه او وېښتان د سر مبارک يې پر يوې درختي وپاشل، صحابه وُ دا وېښتان له درختي څخه ټولو له تبرګا، ام عمارة چي په دې سفر کي راغلي وه يو څو وېښتان يې ټول کړه چي وروسته به يو څوک ناجوړی وُ دې به هغه مبارک وېښتان د مبارک سر د عليه الصلوة والسلام ورپرېولـه هغه او بـه چي بـه مريض وڅيښلې په اذن د خدای به جوړ سو، سعدي شيرازي قدس الله سره داسي بيتونه چي ددې ځای سره مناسبت لري ويلي دي:

| | |
|---|---|
| گلی ناچیز درتمام روزی رسید | زدست محبوبی بدستم |
| بدو گفتم که مشک یا عبیری | که از بوی دلاویزی تو مستم |
| بگفتا من گلی ناچیز بودم | ولی مدتی با گل نشستم |
| جمال همنشین درمن اثر کرد | وگرنه من همان خاکم که بودم |

اوس بيرته د حديبيې د قصې پر لور: فلما رؤ الناس رسول الله ﷺ رافعًا صوته باسم الله والله اكبر نحر ناقته او سر يې هم وخرايه خلک سره وغورځېده ينحرون ويحلقون يعني د خلکو اميد قطع سو چي موږ سږ کال پر بيت الله طواف نه سو کولای.

**درويش وايي:** چي اکثره خلکو سرونه وخريل اقتداءً برسول الله ﷺ يو عثمان او ابي قتادة رضي الله عنهما قصر وکړی په اميد ددې چي اکثره وېښتان دا نوی کال چي عمرې ته راسو بيا هلته خريو، راويان دا احاديث شريفه وُ وايي چي خدای پاک يو تند باد پيدا کړی چي د ټولو خلکو وېښتان يې پورته کړه نژدې و حرم مکي ته يې وپاشل کـه څه

هم حديبيه اکثره په حدودو کي د حرم داخله ده لپاره د زړېي پر مسلمانانو چي د سږ کال عمره مو هم قبوله سوه که څه هم مکې ته داخل نه سوا ست او طواف او سعي د صفا او مروی مو ونه کړه يعني خدای د پوره عمرې ثواب در کوي.

**سوال:** که د دې کال عمره د خدای په دربار کي پوره عمره وای، نو د وروسته کال عمرې ته ولي عمرة القضاء وايي؟

**ځواب:** د قضاء معنی دا نه ده چي د پروسږ کال د عمرې قضاء ده، بلکې د قضاء معنی صلح ده يعني عمرة الصلح مع قريش فافهم وهذا سانح عزيز.

**پوه سه:** چي عليه الصلوة والسلام سره د اصحابو ﷺ نولس (١٩) يا شل (٢٠) ورځي تېري کړې يعني په حديبيه کي وروسته يې رجوع وکړه د مدينې منورې پر لور، نو کراع الغميم ته چي ورسېدی لکه په انسان العيون او نورو تفاسيرو کي چي وايي انزلت عليه سورة الفتح.

**تفريع:** دا سورت چي مدني بولي په دې سبب چي بعد الهجرة نازل سوی دی که څه هم نه په مکې او نه په مدينې کي بلکې په مابين د مکې او مدينې کي نازل سوی دی، ولي چي اصطلاح د مفسرينو داده چي هغه سورة چي بعد الهجرة نازل سوی وي هغه مدني دی ولو بمکة وبالعکس.

**معجزة بينة:** درويش وايي چي کراع الغميم د لښکر زاد او نفقة السفر قريب وفنا ته ورسېده حتی صحابه کرامو ﷺ قصد وکړی و ذبح کولو ته د بعض اوښانو لکن بې مشورې د رسول الله ﷺ يې داسي نه وکړه، موضوع يې مبارک ﷺ ته پېش کړه، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي اوار کړئ خپل پټوان او سترخوانونه او امر يې وکړی چي د هر چا سره چي وي بقيه طعام او زاد هغه دې راوړي او پر دې پټوانو او سترخوانو دې واچوي، خير د هر چا سره چي هر څه فاضله نفقه موجوده وه راېې وړل پر سترخوانو يې واچول، بيا عليه الصلوة والسلام دعاء د برکت وکړه بيا يې وويل چي خورئ ياست او خپلي بوجۍ او جولونه هم په ډک کړئ ففعل الصحابة ؓ کذالک فأکلوا، او بوجۍ او جولونه يې هم ټني ډک کړه وفضل عن ذالک بقية.

**معجزة اخرى:** وقد سبقت مثلها کما مر مرة اخرى يعني قال عليه الصلوة والسلام چي د اوداسه اوبه ستة، خلکو په يوه مشکولا کي لږ اوبه ورته راوړې هغه

په يوه کټوري کي عليه الصلوة والسلام واچولي او عليه الصلوة والسلام خپل لاس مبارک په هغو اوبو کي کښيښوی نو د هرو دوو ګوتو تر مابين يې د صافو اوبو چينې بهېدلې فتوضئوا به کلهم، يو چا د راوي څخه پوښتنه وکړه چي تاسي څو کسان واست؟ راوي ورته وويل چي که موږ يو لک کسان هم وای دا اوبه ډېري وې لکن موږ (۱۴۰۰) کسان وُ، روات د قصې وايي چي سورة الفتح چي نازل سو آنحضرتﷺ وويل و اصحابو ته چي پر ما يو سورة نازل سو چي هغه ماته محبوب دی تر مما طلعت عليه الشمس، وفي رواية اخرى لقد انزلت علي سورة ما يسرني بها حمر النعم (چي زه نه خوشحاله کوم په مقابل کي دد ې سرو اوښانو)

**بوه سه:** چي الحمر بسکون الميم جمع د احمر ده او النعم بفتحتين جماعت ته د اوښانو وايي ولا واحد له من لفظه او سره اوښان د ډېر ښه مالو څخه د عربو دي حتى چي دوی په نفاست د يو شي مثال په سرو اوښانو سره وايي ثم قرء رسول اللهﷺ سورة الفتح عليهم الى اخيرها، وروسته عليه الصلوة والسلام دوی ته ددې سورت د نزول مبارک باد ووايه او دوی و عليه الصلوة والسلام ته ددې سورت مبارک باد ووايه، راوي وايي وتکلم بعض الصحابةؓ وقال هذا ماهو بفتح (دا خو فتح نه ده مشرکانو موږ بند کړو د بيت الله له زيارت څخه) عليه الصلوة والسلام ته چي چا خبر ورساوه قال: بئس الكلام بل هو اعظم الفتح لقد رضى المشركون ان يد فعوكم عن بلادكم وسألوكم القضية اى الصلح والتجاء آه او زاری يې وتاسي ته وکړې في الامان وقد رؤا منكم ما كرهوا (يعني بيعة الرضوان) او دوه واره ددوی خلک ستاسي په لاس کي ګرفتاره کېده يو وار (۴۰) کسه او بل وار (۱۲) کسه، او تاسي ته خدای ج بری درکړی پر دوی باندي او ددوی له بلاد څخه خدای ج سالمين مأجورين را وه ايستلاست فهو اعظم الفتوح، عليه الصلوة والسلام ورته زياته کړه: انسيتم يوم احد وانا ادعوكم في اخراكم (يعني تاسي شکست وکړی او ما د شا له خوا په تاسي پسي ناري وهلې) الي يا عباد الله، انسيتم يوم الاحزاب اذا جائكم من فوقكم ومن اسفل منكم واذ ذاغت الابصار وبلغت القلوب الحناجر وتظنون بالله الظنونا، فقال المسلمون صدق الله ورسوله هو اعظم الفتوح، والله يا رسول الله ما فكرنا فيما فكرت (موږ دومره فکر نه دی

وهلی لکه تا چي وهلی دی) ولانت اعلمنا بالله وبامره، وقال له عمرؓ الم تقل انک تدخل مکة آمنًا، علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي ما درته ویلي وه چي سږ کال به داخلیږئ؟ عمرؓ ورته وویل لا، قالؑ فهو کما قال جبرئیل (یعني في المنام) فانکم تأتونه وتطوفوا به، راوي وایي چي دوهم کال رسول اللهﷺ داخل سو مکې ته او عمره یې وکړه قال هذا الذي وعدتکم.

**پوه سه:** چي اصحابؓ لم یشکوا في امر النبيﷺ ولم یکن کلامهم معه علی وجه الاعتراض حاشاهم الله عن ذالک بل انما یسئلوه علی وجه الاستعلام (یعني په سر د کارنامو د علیه الصلوة والسلام یې ځان خبراوه چي د دوی په زړو کي به څه خبره ورګرځېدلې وه) مما لایخلو عنه بشئ (یعني من الوسوسة فان الامر عمیق) د دې داسي مثال دی لکه د کلو کلو متعلم چي له استاذ څخه د مشکل ځای په کتاب کي پوښتنه وکړي فانه لیس بانکار من علم الاستاذ ولاشک فیه بل طلب حل المشکل الذي خطر في قلبه من الاستاذ فتدبر.

**پوښتنه:** علماء وایي چي دغه صلح د مشرکینو سره چي فتح یې وبلل مع انه لیس فتحًا لاعرفًا لانه لیس بظفر علی بلدة مکة، ولا لغة لیس بفتح للمغلق کیف وقد منعوهؐ من زیارة البیت والطواف به حتی نحروا الابل وحلقوا رؤسهم بالحدیبیة فایٔ ظفر في ذالک؟

**والجواب:** صلح د مشرکینو سره فتح ده بالمعنی اللغوي لانه کان مغلقًا ومتعذرًا وقت نزولهم بالحدیبیة لان المشرکین کانوا عند ذالک في غایة الطغیان والتکبر عن سماع قول رسول اللهﷺ الا انه لما آل امر رسول اللهﷺ الی بیعة الرضوان او مشرکانو ته دا ښکاره سوه چي مؤمنان په ټینګ عزیمت ای وقتال او جهاد ته ضعف قلوبهم (ضعیف زړونه د کافرانو) وخافوا من قتال المؤمنین حتی چي غاړه یې صلح ته کښېښول او طلب د صلح اولاً هم دوی وکړی او په دې سره ثابته سوه غلبه د مسلمانانو پر دوی مع ان ذالک الصلح کان سببًا لامور اخر کانت مغلقة قبل ذالک.

منها: چي مشرکان او مؤمنان سره ور سوه په سبب د دې صلح، نو مشرکانو د علیه الصلوة والسلام او د مؤمنانو خبري مشافهة واورېدلې وتمکن الاسلام في قلوبهم حتی چي رواة د قصې وایي کما مر چي په دغه لس کاله جنګ بندي کي چي

په صلح کي مابين ته راغلې وه دومره کافرانو ايمان راوړى چي په مثل د ماقبل ذالک من المؤمنين وه بلکې اکثر.

ومنها: چي عليه الصلوة والسلام په سبب د دې صلح له مشرکينو څخه د مکې ونورو عربو ته د جهاد او قتال لار خلاصه سوه فغزاهم و فتح مواضع اليهود خصوصًا خيبر او ډېر غنيمتونه د مؤمنانو لاس ته ورغله، او داغه رنګه په دغو کلو کي يو لوى جنګ په مابين کي د روميانو چي اهل کتاب وه او د فارس چي مجوسيان وه او غالبه سوه روميان پر فارسيانو باندي. او دا غلبه د روميانو له دلائلو څخه د نبوت د عليه الصلوة والسلام وه. ولي چي د مخه تر دې هم د روميانو او د فارسيانو جنګ سره سوى ؤ او په هغه جنګ کي مجوسيانو غلبه پيدا کړې وه پر روميانو، نو مشرکان د مکې ډېر خوشاله وه په دې چي مجوسيان خو لکه مشرکان داسي وه. نو عليه الصلوة والسلام داسي اخبار کړى ؤ: وهم (اى روميان) من بعد غلبهم (اضافة د مصدر د مفعول ته دى يعني وروسته تر مغلوبيت د دوى) سيغلبون (روميان به غلبه پيدا کړي پر فارسيانو) في بضع سنين (په څو کلو کي بضع د درو څخه تر نهو (۹) پوري ته وايي) نو عليه الصلوة والسلام او مؤمنان په دې غلبه د روميانو پر مجوسيانو ډېر خوشحاله سوه چي اهل کتابو پر مجوسيانو مشرکانو غلبه پيدا کړه، نو د عليه الصلوة والسلام صدق هم ښکاره سو، او عين په دغه ورځ کي مؤمنانو چي (۳۱۳) کسه وه غلبه پيدا کړه پر مشرکانو د مکې چي (۱۰۰۰) کسه وه په بدر کي چي اوويا (۷۰) يې ځني قتل کړه او اوويا (۷۰) يې بنديان ونيول او نور وتښتېدل مکې ته.

لِّيَغْفِرَ لَكَ اللَّهُ مَا تَقَدَّمَ مِن ذَنۢبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ

تا چي وبخښي وتاته خداى غزوجل د مخه ګناهونه ستا او وروسته.

**پوه سه:** چي دا آيت علت غايت دى د فتح له دې سببه چي دا مغفرت سبب دى د جهاد سره د کفارو والسعي في ازاحة الشرک واعلاء الدين کمامر في تفسير البيعة تحت الشجرة و تخليص الضعفة عن ايدي الظلمة کمامر تفصيله في الصلح مع المشرکين بالحديبية.

**پوښتنه**: انبياء علیهم السلام خو معصوم دي له ګنهو څخه قبل النبوة وبعدها (کما ذکرنا بالتفصيل في رسالة کشف الغطاء عن عصمة الانبياء للعبد الضعيف) فما معنى نسبة الذنب الى النبي ﷺ؟

**ځواب**: ددې آيت معنى داده اى جميع مافرط منکم من ترک الاولى وتسميته ذنبًا بالنسبة الى منصبه الجليل لان حسنات الابرار سيئات المقربين على ما قاله ابو سعيد الخزار قدس سره، وفي المثنوي لتائيد قول الخزار رحمه الله:

آنکه عين لطف باشد بر عوام قهر شد بر عشق کيشان کرام

درويش هيچمدان وايي: چې چونکه مسئله د عصمت الانبياء علیهم السلام د عقائدو مسئله ده چې تحقيق يې په کتابو کې د علم کلام ستة لکه په کتاب کې د شرح العقائد او شرح المقاصد للعلامة الثاني سعد الملة والدين التفتازاني وشرح المواقف للقاضي عزد الملة وشرح السيد الجرجاني رحمه الله وغيرها من کتب علم العقائد والکلام، وفيها مذاهب شتى لاهل الاهواء لکن په دې مسئله کې لوى تحقيق قاضي عياض رحمه الله کړى دى په شفاء کې چې دده کتاب دى په احاديثو نبويه ؤ کې دى لهذا فقير په خپل تفسير محتاطانه اقوال د بعض مشائخو رانقل کوم، عقلي دلائل چې چا ويلي دي هغه صرف نظر کوم، نو رښتيا داده چې ددې مسئلې درياب ډېر عميق دى ډېرېږم چې په کنده کې د ضلال ونه لوېږم.

مظهري رحمه الله يې داسې ترجمه کړې ده: اى جميع ما فرط منک قديمًا في الجاهلية قبل الرسالة (وفي نفسي من لفظ الجاهلية شيئ فافهم) وحديثًا بعد الرسالة اى نزول السورة (وتخصيص السورة فيه شيئ فينبغي ان يقول بعد الرسالة) ثم قال مما يصح ان يعاقب عليه، وهذا لا يستلزم ارتکاب المعصية فان حسنات الابرار سيئات المقربين انتهى. او عطاء خراساني رحمه الله وايي ما تقدم من ذنب ابويک آدم و حوا (يعني بحذف المضاف) قال روى ان آدم علیه السلام و حواء لما اکلا من الشجرة الممنوعة وقال لهما ربهما الم انهکما عن تلک الشجرة واعترف آدم علیه السلام بالخطيئة قال يا رب اسئلک بحرمة محمد ان تغفرلي خداى پاک ورته ووېل چې تا محمد څه پېژندى يا آدم چې هغه تر اوسه نه دى پيدا سوى؟ آدم علیه السلام ورته ووېل چې تا چې زه پيدا کړم ونفخت في من روحک (اى الروح المخلوق لک) ما چې سر پورته کړى پر قوائم د عرش مې ولېده په

واضح كتابت نوشته وه لآ اله الا الله محمد رسول الله، زه پوه سوم چي تا د خپل نامه سره نه دی جوت کړی الا اسم احب الخلق اليک فقال الله صدقت يا آدم انه لاحب الخق الي غفرت لک ولو لا محمد لما خلقتک، رواه البيهقي في دلائل النبوة.

**فائده:** وهابيان وايي چي دا حديث موضوعي دی سره ددې چي البيهقي لوړ رتبه محدث دی چي ټولو اهل الحديث منلی دی، وما تأخر من ذنوب امتک بشفاعتک (بحذف المضاف وهو لفظ امتک) سلمي قدس سره فرموده که ذنب آدمؑ را به رسول اللهﷺ نسبت کرد چه رسول اللهﷺ در وقت ذلت آدم در صلب وی بود وگناه امت را به وی اضافت نمود که او پیش کار ایشانست، وقال ابن عطاء قدس سره لما بلغ رسول اللهﷺ سدرة المنتهى ليلة المعراج تقدم عليه الصلوة والسلام واخر جبرئيل فقال لجبرئيل تركتني في هذا الموضع وحدى فعاتبه الله تعالى حين سكن الى جبرئيل وقال وحدى فقال الله ما تقدم من ذنبک ای سکونه الى جبرئيل وقال وحدي مع ان الله معه فيكون كلا الذنبين بعد النبوة.

**درويش وايي:** چي سعدي شيرازي قدس سره دا مضمون په داسي خوږو بيتو بدرګه کړی دی:

چنان گرم در تيه قربت براند — كه درسدره جبرئيل ازو باز ماند
بدو گفت سالار بيت الحرام — كه ای حامل وحی برتر خرام
بگفتا فراتر مجالم نماند — بماندم كه نيروی بالم نماند
اگر يک سر موی برتر پرم — فروغ تجلی بسوزد پرم

وفي الفتوحات المكية للشيخ الاكبر محي الدين ابن عربي قدس سره استغفار الانبياء عليهم السلام لا يكون عن ذنب حقيقة كذنوبنا وانما هو عن امر يدق عقولنا لانه لا ذوق لنا في مقامهم فلا يجوز حمل ذنوبهم على ما نتعقله من الذنب انتهى.

وَيُتِمَّ نِعْمَتَهُۥ عَلَيْكَ وَيَهْدِيَكَ صِرَٰطًا مُّسْتَقِيمًا ۝

خدایؑ به تام وکړځوي نعمت خپل پر تا باندي (دا وعده د خدایؑ په تمام د نعمت چي مراد ځني اکمال دی د دين واظهار كلمة الاسلام او هدم د منار و د جاهليت يحجون ويعتمرون مطمئنين لا يخالطهم احد من المشركين قال الله تعالى في سورة المائدة "اليوم اكملت لكم دينكم واتممت عليكم ونعمتي"

وتمام النعمة چي په دې آيت د سورة المائدة كي راغلي، دي سبب دی د فتح د مکې او د صلح د حديبيې) او تاته به خدای هدايت وکړي د سمې لارې يعني په تبليغ کي د رسالت واقامة مراسم الملک والنبوة والرياسة والسياست، بعض مفسران وايي معنى يهديک يهدي بک بحذف الباء، وهو تکلف بلا حاجة وقيل معنى يهديک يثيبک على التبليغ، وقيل تمام النعمة بالمغفرت والهداية الى كمال الدين بحيث لايجوز نسخه بعد ذالک.

وَيَنصُرَكَ اللَّهُ نَصْرًا عَزِيزًا ۝

ستا سره به کومک وکړي خدای پر د ښمنانو د دين د اسلام.

**فائده:** اظهار الاسم الجليل مع النصر، يا ددې سببه دی چي نصر خاتمة العنايات والعلل ده ولاظهار كمال العناية بشانه وقال الصدر" اظهر الاسم في الصدر يعني قوله تعالى ليغفر الله لک، او بل دلته لان المغفرة تتعلق بالآخرة والنصر يتعلق بالدنيا، نو خدای عزوجل په اظهار کي د اسم جليل دواړه ځايه اشارةً الى ان الله تعالى يتولى امورک في الدنيا والآخرة كذا قال الآلوسي" في روح المعاني وقال الامام الرازي" في التفسير الكبير، اظهر اسم الجلالة ههنا اى في النصر اشارة الى ان النصر لايكون الا من عند الله كما قال في موضع آخر (وما النصر الا من عند الله) دليل ددې دادی چي نصر چي پيدا کېږي په صبر سره پر شدائدو د قتال والصبر لايكون الا من الله كما قال الله (وما صبرک الا بالله)

"نصرًا عزيزًا" اى نصرًا فيه عزة نو عزيزًا صيغه د نسبت ای ذا عز، په فتح الرحمن کي وايي النصر العزيز هو الذي معه الغلبة على اعداء الله والظهور عليهم والنصر الغير العزيز هو الذي معه الحماية و دفع العدو فقط انتهى، او بعض مفسرين وايي چي نصر يې موصوف په وصف سره کړی د صاحب دده ای نصرًا عزيزًا صاحبه ای المنصور، قال البرسوي" چي ظاهره داده چي مراد د نصر عزيز ما ترتب على فتح مكة من النصر على الاعداء كهو ازن وغيرهم ونصرًا منه تعالى على الاكاسرة (جمع د کسری ده چي د فارسيانو باچانه وايي) والقياصرة (جمع د قصری ده چي د روميانو بادشاه ته وايي).

هُوَ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ السَّكِيْنَةَ فِيْ قُلُوْبِ الْمُؤْمِنِيْنَ لِيَزْدَادُوْٓا اِيْمَانًا مَّعَ اِيْمَانِهِمْ ؕ

خدای هغه ذات بېهمتا دی چي نازل یې کړه (مراد له سکینة څخه طمانیة علی امتثال امر الله تعالی من صلح الحدیبیة کما مرت قصته بالتفصیل) په زړو کي د مؤمنانو حتی انقادوا لامر الله ورسوله حین جعل الذین کفروا یعني اهل مکة في قلوبهم الحمیة حمیة الجاهلیة فمنعوا بتلک الحمیة رسول الله ﷺ في ذالک العام من دخول مکة یعني دوی به ویل که موږ تا سږ کال مکې ته پرېږدو عرب به وایي چي په زوره محمد مکې ته داخل سو، دا وه حمیه د جاهلیت ددوی.

**بوه سه:** چي په "مع ایمانهم" کي حرف جر متعلق په انزال سره دی.

**پوښتنه:** د عقائدو په کتابو کي وایي چي ایمان زیادت او نقصان نه قبلوي، نو ددې توجیه به څه وي؟

**ځواب:** الضحاک رحمه الله وایي چي مراد د زیادت څخه رسوخ د عقیدې دی واطمنان النفس علیها چي تعبیر یې قوة الکسب د ایمان دی لا الزیادة في المؤمن به ولاشک ان ایمان رسول الله ﷺ والصحابة رضی الله عنهم اقوی و اکمل من ایمان غیرهم او الکلبي وایي هذا في امر الحدیبیة حین صدق الله رسوله الرؤیا بالحق یعني في العام القابل، او ابن عباس رضی الله عنه وایي چي زیادت په معنای مصطلح سره دی لکن دا هغه وخت چي وحي جاري وي یقول بعث الله رسوله بشهادة ان لا اله الا الله فلما صدقوا به زادهم الصلوة ثم الزکوة ثم الصوم ثم الحج ثم الجهاد حتی اکمل لهم دینهم فکلما امروا بشیئ فصدقوه زادهم تصدیقًا الی تصدیقهم بامر من قبل.

وَلِلّٰهِ جُنُوْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ۟ۙ

او خدای لره خاصة لښکرو ته د اسمانو او د ځمکي. او دی خدای څښتن د لوی علم او حکمت یفعل مایشاء.

**بوه سه:** چي جنود جمع د جند ده بضم الجیم والمعنی چي تصرف د لښکرو د اسمانو چي ملکي دي او د ځمکي دي چي مجاهدین لاعلاء کلمة الله دی تدبیر یې کوي کیف یشاء، ګاهي یوه ډله مسلطه سي پر بله ډله او ګاهي د دښمنو دوو ډلو تر مابین صلح وکړي څرنګه چي مشیت دده یې چي مبني پر حکم او مصالح دی،

ددې آيت حاصل دا دی چې صلح د حديبيه پر دې بنا نه وه چې مسلمانان په حال کې د ضعف وه بل لما يقتضيه علمه وحکمته.

**پوه سه:** چې جند په عرف کې جماعت د ملکو يا د انسانانو چې په جنګ د کفارو سره اخته وي او په حقيقت ټوله ذرات د عالم جنود الله دی الا ترى چې سيد البريات عليه افضل الصلوات چې يو موټ شګې پر مخانو د کافرانو ورو پاشلې او دا يې ويل شاهت د ټولو کافرانو په سترګو کې ولوېدې او شکست يې وکړی قال المولوي المعنوي في المثنويؒ:

جمله ذرات زمين و آسمان — لشکر حقند گاه امتحان
بادرا ديدی که باعادان چه کرد — آب را ديدی که باطوفان چه کرد
آنچه بر فرعون زدآن بحر کمين — وآنچه با قارون نمود است اين زمين

لِّيُدْخِلَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا وَيُكَفِّرَ عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ ؕ

او ددې لپاره چې خدای داخل کړي (په ورځ د قيامت) مؤمنان او ښځې مؤمنات و باغونه چې رواني به وي لاندې تر درختو د هغو جنتو څلور وياله او به، شيدې، عسل او شراب، او دوی به همېشه په دغو جنتو کې وي چې نه به مري او نه به د جنتو څخه ايستل کېږي، او بل ددې لپاره چې خدای (چې غفور او رحيم دی پر خپلو بندګانو) ددوی ګنهونه به وربخښي.

**پوه سه:** چې دا دواړې جملې معطوف او معطوف عليه دي (اعني ليدخل ويکفر) متعلق دي بقوله تعالى ليزدادوا آه.

وَكَانَ ذٰلِكَ عِنْدَ اللّٰهِ فَوْزًا عَظِيْمًا ۟ۙ

او دی دا ادخال و جنت ته او غفران د سيئاتو په نېز د خدای کاميابي ده لويه، ولې چې په ادخال الجنات کې جلب دی د منتهى د منافع اخرويه وُ، او په دې تکفير کې د سيئاتو دفع ده لوی مضار د اخرت وهي دخول النار.

**پوه سه:** چې عند الله حال دی له فوز څخه او دا جمله يعني وکان ذالک آه معترضه ده په مابين کې د حال د مؤمنانو او د منافقانو او مشرکانو.

وَّيُعَذِّبَ الْمُنٰفِقِيْنَ وَالْمُنٰفِقٰتِ

او په عذاب کي خدای منافقان که نروي او که ښځي.

**بوه سه:** چي دا جمله عطف ده پر يدخل او دا جمله ده په علت د انزال السکينة في قلوب المؤمنين، ولي چي منافقان او کافران له دې انزال څخه په ډېر غيظ او غصه کي وه، او دوی به طعن او عيب وايه په دين کي د مسلمانانو چي دوی امتثال د امر د خدای ﷻ وکړی په امر کي د صلح مع المشرکين.

وَالْمُشْرِكِيْنَ وَالْمُشْرِكٰتِ الظَّآنِّيْنَ بِاللّٰهِ ظَنَّ السَّوْءِ ؕ

او خدای عذاب ورکړی و مشرکانو ته او مشرکاتو ښځو ته چي دوی ګمان کاوه پر خدای ﷻ ګمان د بدو، يعني دا بد ګماني يې کوله چي خدای به خپل رسول او مؤمنانو ته کومک ورنه کړي، او دا يې هم ګمان کاوه چي النبي ﷺ او مؤمنان به مديني ته سالم نه سي راستانه يعني مشرکان د مکې به دوی ختم کړي.

**بوه سه:** چي ظن السوء منصوب على انه مفعول النوعي د الظالمين دی نحو جلست جلسة القاري، وقيل: غير ذالک قال الله في موضع آخر بل ظننتم ان لن ينقلب الرسول والمؤمنون ال اهلهم ابداً.

عَلَيْهِمْ دَآئِرَةُ السَّوْءِ ۚ

**بوه سه:** چي دا جمله دعائيه ده يعني يجعل عليهم دائرة السوء يعني الهلاک والعذاب يا معنی داده دائرة ما يظنون بالمؤمنين او هغه ته يې انتظار کاوه خو هغسي ونه سوه.

وَغَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ وَلَعَنَهُمْ وَاَعَدَّ لَهُمْ جَهَنَّمَ ؕ وَسَآءَتْ مَصِيْرًا ۝

او غضب وکړی خدای ﷻ پر دوی او لعنت يې نازل کړی پر دوی او آراسته يې کړې دوی ته جهنم او بد ځای دی جهنم از روی مرجع.

**بوه سه:** چي جهنم چونکه مؤنث سماعي ۇ ځکه يې سائت مؤنث راوړی.

وَلِلّٰهِ جُنُوْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا ۝

او خدای لره دي لښکرونه د اسمانو او د ځمکي (يعني خدای عزوجل دفع

کولای سي کيد او چم د من عادی نبيه والمؤمنين بما شاء کما مر نبذ من ذالک في ابيات المثنوي) او دی خدای غالب نو څوک نسي دفع کولای عذاب دده له کافرانو څخه او لوی حکمت يې دی په هر کار کي چي کوي يې.

إِنَّآ أَرْسَلْنَٰكَ شَٰهِدًا وَمُبَشِّرًا وَنَذِيرًا ۝٨

مونږ ته يا محمد را استولی يې خلګو ته يعني رسول خپل مونږ ګرځولی يې "شاهدا" پر امت خپل په ورځ د قيامت "ومبشرا" او زيری کونکی و هغه چا ته چي ستا اطاعت وکړي "ونذيرا" او بيرونکی په عذاب د خدای چي ستا اطاعت ونه کړي.

لِّتُؤْمِنُوا۟ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ وَتُعَزِّرُوهُ وَتُوَقِّرُوهُ وَتُسَبِّحُوهُ بُكْرَةً وَأَصِيلًا ۝٩

**پوهسه**: چي ابن کثير او ابو عمر دا څلور معطوفات په يا د غيبت وايي، او ضمائر د جمع يې راجع دي الی الناس کافة الی يوم نفخة الصور الاولی، او نور ټول قراء يې په تا د خطاب وايي چي خطاب دی و نبي ﷺ او امت ته.

ترجمة علی تقدير ياء الغيبة: چي دوی ايمان راوړي پر خدای په توحيد سره او پر رسول دده بالنبوة والرسالة او دوی کومک ورسره وکړي چي ځانونه دده جند وګرځوي، او تعظيم دده وکړي او تنزيه دده وکړي عما لايليق بشانه من انه ساحر او کاهن الی غير ذالک، والمعنی علی تقدير الخطاب چي تاسي يا محمد والمؤمنون ايمان راوړي پر خدای يعني په توحيد سره او پر رسول د خدای.

**فائده**: دلت هذه الآية علی انه چي عليه الصلوة والسلام يجب عليه ان يؤمن برسالة نفسه کما ورد في الحديث الصحيح انه عليه الصلوة والسلام قال اني عبد الله ورسوله، امام سهيلي وايي في الامالي: انما عرف ﷺ نبوة نفسه بعد معرفته بجبرئيل.

**فائده**: په انا ارسلناک کي خطاب يوازي و عليه الصلوة والسلام ته دی، او په دې آيت کي تعميم دی د خطاب و امت ته "وتعزروه" او تاسي تقويه دده وکړئ.

**سوال**: امت خو به تقويه د عليه الصلوة والسلام وکړي بجعل انفسهم من جنده لکن عليه الصلوة والسلام به د ځان توقيه څرنګه کوي؟

**ځواب**: تقويه د ځان دی په حسن تبليغ سره او په لطف سره کوي، او تاسي

تعظيم دده وکړئ او عليه الصلوة والسلام خپل د ځان عظمت وساتئ د عوام الناس غونډي دي رفتار به نه کوي په عبث خبرو سره مثلاً او د امت تعظيم خو ظاهر دی وعلى هذا فقس قوله تعالى وتسبحوه فتدبر.

**درويش وايي:** چي روح المعاني او روح البيان ضمير د "تعزروه" خدای پاک ته راجع کړی حيث قال وتقوه تعالى بتقوية دينه ورسوله، او د "توقروه" ضمير يې هم و خدای ته راجع کړی دی حيث صاحب روح البيان ای تعظموه باعتقاد انه تعالى متصف بصفات الجلال والکمال منزه عن جميع وجوه النقصان او د "تسبحوه" ضمير يې هم خدای ته راجع کړی دی حيث قال ای ينزوه تعالى عما لايليق بعلو شانه کالشريک له تعالى، والولد وسائر صفات المخلوقين.

"بکرة واصيلاً" قيد د تسبيح ای غدوة وعشية، فالبکرة اول النهار والاصيل اخيره، او يا معنى داده چي دائما دده تسبيح واياست، بعض مفسرين ضمير د تعزروه وتوقروه راجع و عليه الصلوة والسلام ته بولي کمامر او ضمير د تسبحوه راجع و خدای ته بولي، علامه آلوسي په روح المعاني کي وايي چي اولى داده چي د مخه دوه ضميره هم و خدای ته راجع سي (لکه چي د رويش بيان وکړی) قال الآلوسي لئلا يلزم تفکک الضمائر من غير ضرورة.

**پوښتنه:** ايوبي ستا څه رايه ده؟

**ځواب:** اول تفسير چي ما وکړی رای د تفسير مظهري وه چي د ډېر چون و چرا سره مخامخ وه کمامر، زما رايه داده چي اولى و احرى بلکې صواب تفسير د روح المعاني او روح البيان دی، والله اعلم.

إِنَّ الَّذِينَ يُبَايِعُونَكَ إِنَّمَا يُبَايِعُونَ اللَّهَ يَدُ اللَّهِ فَوْقَ أَيْدِيهِمْ

په تحقيق هغه کسان چي بيعت کوي ستا سره يا محمد بالحديبية تحت الشجرة پر دې باندي چي تښتي به نه بلکې د مکې د مشرکينو سره به جنګ کوي ترهغو چي برى پيدا کوي يا مري، نو دوی بيعت نه کوي مګر د خدای سره (لان الله عزوجل هو المقصود لهم ببيعة رسول الله.

**پوښتنه:** چي خدای عزوجل لره يد په معنى د جارحة مخصوصة نسته، نو مراد له يد څخه نصرت او قوت او قدرت دی يعني د خدای نصرت او کومک ستاسي

ملګري دي لکن تعبير د يد يې له دې کبله وکړي چې په بيعت کې وضع اليد على اليد ؤ للنصرة، نو مشاكلة و نصرت ته د خداى عزوجل يې يد الله ووايه.

**درويش وايي:** چې دا توجيه اسهل التوجيهات ده په دې آيت کې تر بيان د استعاراتو لکه چې مظهري کړې ده، والله اعلم بما في كتابه الشريف.

**فَمَنْ نَّكَثَ فَاِنَّمَا يَنْكُثُ عَلٰى نَفْسِهٖ ۚ وَمَنْ اَوْفٰى بِمَا عٰهَدَ عَلَيْهُ اللّٰهَ**

که چا مات کړې بيعت مذکوره، نو په تحقيق ده مات کړې پر خپل نفس يعني ضرر د نقض البيعة و ده ته رسېږي من غضب الله وعذابه (او عليه الصلوة والسلام او مؤمنانو ته يې ضرر نه رسېږي، لانه تعالى ناصرهم على اعدائهم) او که چا وفا وکړه په هغه شي سره چې دوی پر هغه شي معاهده د خداى سره کړې، وحاصله ثبت على البيعة وراعاها.

**فائده:** حفص "پر هاء د عليه پېښ وايي تعظيمًا للاسم الجليل، ولي ضمه ؤ که ويل کېږي، او نور قاريان يې په کسره د هاء وايي على قانون النحو.

**فَسَيُؤْتِيْهِ اَجْرًا عَظِيْمًا ۝**

نو ژر دی چې ور به کړي خداى و هغه ته لوى ثواب چې اصل يې رضوان او پر هغه متفرع جنت دی او په جنت کې رؤية الله دي.

**پوه سه:** چې ضمير مستتر راجع دی و خداى ته او ضمير بارز راجع و من ته دی.

**درويش وايي:** چې عليه الصلوة والسلام چې نيت د عمرې سره د (۱۴۰۰) کسانو يا بالا سفر کاوه، و ټولو د صحراء مسلمانانو ته يې دا اعلان کړی ؤ چې څوک د عليه الصلوة والسلام ملګري کوي راودې ووځي، نو که څه هم بعض صحرا نشين مسلمانانو لبيک ورته ووايه حتى چې (۱۵۰۰) يا (۱۶۰۰) ته ورسېدل مجموع کاروان، لکن ډېرو صحرايانو مسلمانانو دا دعوت نامه صرف نظر کړه د مکې د قريشو د ېرې، او دا يې ظن ؤ چې عليه الصلوة والسلام او مؤمنان به هرګز مدينې ته رانه سي، نو چون عليه الصلوة والسلام سره د ملګرو سالم فاتح فتحًا مبينًا راستانه سوه، نو دوی د عذر لپاره ورته راغله كما قال الله تعالى:

سَيَقُولُ لَكَ الْمُخَلَّفُونَ مِنَ الْأَعْرَابِ شَغَلَتْنَا أَمْوَالُنَا وَأَهْلُونَا فَاسْتَغْفِرْ لَنَا

ژر دی چي وبه وايي وتاته هغه کسان چي ځانونه يې د ېېري له لاسه پاته کړي وه (ابن عباس او مجاهد وايي چي دا اعراب د بني غفار او د مزينة او جهنية او النخ او د اسلم د قومو وه) موږ مشغول کړيږ ستا له مرافقت څخه زموږ مالو يعني مېږي، بزې، اوښان او زموږ عيالو، يعني د هغو د ساتني لپاره چي بل څوک مو نه درلودی چي زموږ په ځای کي قائمقام ددوی وای.

"فاستغفرلنا" موږ ته بخښنه د تخلف وکړه.

**پوه سه:** چي په "سيقول" کي سين د استقبال معجزه د عليه الصلوة والسلام ده چي د مخه تر ويلو ددوی خدای پاک دی مبارک خبر کړی، په وروسته آيت سره خدای پاک ددوی د عذر مذکور تکذيب او رد وکړی بقوله.

يَقُولُونَ بِأَلْسِنَتِهِمْ مَا لَيْسَ فِي قُلُوبِهِمْ

دوی وايي په ژبو هغه شی چي ددوی په زړو کي نسته، يعني الاعتذار والاستغفار يعني صرف په خوله وايي چي فاستغفرلنا ولي په زړو کي پر دوی استغفار او عدم استغفار فرق نه لري.

قُلْ فَمَنْ يَمْلِكُ لَكُمْ مِنَ اللَّهِ شَيْئًا إِنْ أَرَادَ بِكُمْ ضَرًّا أَوْ أَرَادَ بِكُمْ نَفْعًا

الاستفهام للانکار ای لا احد يمنعکم من مشية الله تعالى او قضائه فيکم "ضرًا" لکه قتل يا شکست په جنگ کي يا هلاک د مواشيو يا مرگ د عيال او يا عذاب په اخرت کي پر تخلف "او اراد بکم نفعًا" ای اضداد ما قلنا في الضر.

بَلْ كَانَ اللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا ﴿١١﴾

ای خبيرًا بعملکم فکلمة ما مصدرية او يا کلمه ما موصولة والعائد محذوف ای بما تعملونه، وفي هذه الآية اشارة الى ان الامر ليس کما قلتم في الاعتذار بلکي خدای خبر دی چي قصد ستاسي په تخلف کي اظهار د موافقت د اهل مکه سره يا د هغو ېېره چي ستاسي په ظن کي هغه غښتلي دي.

بَلْ ظَنَنْتُمْ أَنْ لَّنْ يَّنْقَلِبَ الرَّسُوْلُ وَالْمُؤْمِنُوْنَ إِلٰٓى أَهْلِيْهِمْ أَبَدًا

بلکې ستاسي د تخلف هغه سبب نه دی چي تاسي په عذر کي وو ایه، اصلي سبب د تخلف ستاسي دادی چي ستاسي ګمان غالب ؤ چي نه سي راتلای رسول اللهﷺ او دده سره مؤمنان مدینې ته تر ابده پوري یعني اهل مکه به یې استیصال وکړي یعني یکلخته به یې مړه کړي.

**پوه سه**: چي دا اضراب ثاني دی معطوف پر اول اضراب باندي دی.

وَزُيِّنَ ذٰلِكَ فِيْ قُلُوْبِكُمْ وَظَنَنْتُمْ ظَنَّ السَّوْءِ ۖ وَكُنْتُمْ قَوْمًا بُوْرًا ﴿١٢﴾

او ښائسته کړه سوې وه دا خبره (ای عدم انقلاب الرسول والمؤمنون ابدًا) والمزین هو الشیطان الرجیم.

**پوه سه**: چي ظن السوء من اضافة الموصوف الی الصفة ای الظن السوء والتوصیف مبني علی المبالغة لان السوء مصدر.

**درویش وایي**: چي مخلفون به ویل چي رسول اللهﷺ او مؤمنان اکلة رأس (یوه ګوله ده سره د قریشو) وغیر ذالک مما یظنون بالله ورسوله من الامور بالباطلة "وکنتم قومًا بورًا" او تاسي واست قوم هلاک شده في علم الله لفساد عقیدتکم وسوء ظنکم بالله ورسوله.

وَمَنْ لَّمْ يُؤْمِنْ بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ فَإِنَّآ أَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ سَعِيْرًا ﴿١٣﴾

(فیه تعریض الی انهم غیر مؤمنین بالله ورسوله، ولي چي ایمان منافي دی د دغسي کارونو سره والتخلف عن الرسولﷺ) والمعنی څوک چي ایمان نه لري پر خدای او رسول د خدای، نو موږ مهیا کړی دی کافرانو ته سوځونکی اور، یعني دوږخ په اخرت کي.

وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ ۚ يَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ ۚ

خاص خدای لره بادشاهي ده د اسمانو او مځکي بخښنه کوي بالتوبة وبلا توبة و هغه چاته چي مشیت او اراده یې ورته وسي او عذاب ورکوي و هغه چاته چي اراده یې ورته وسي لکن بسبب عدم المعصیة اصلاً لانه وان کان ممکنًا نظرًا الی انه تصرف في ملکه لکنه خلاف الحکمة، ددې آیت حاصل دادی چي پر خدای شی واجب نه دی.

وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا

او دی خدای بخښونکی او مهربان، مفسرین حضرات په يوه خوله د دې آيت په تفسير کي وايي مغفرت او رحمت د خدای پاک د صفات ذاتيه ؤ څخه دی او تعذيب داخل په قضاء کي بالعرض دی.

سَيَقُوْلُ الْمُخَلَّفُوْنَ اِذَا انْطَلَقْتُمْ اِلٰى مَغَانِمَ لِتَاْخُذُوْهَا ذَرُوْنَا نَتَّبِعْكُمْ

ډېر ژر به دوی وايي (معجزه او اخبار بالغيب دی قبل الوقوع) وروسته پاته خلک (المخلفون اللام للعهد الخارجي ای المذکورون) چي تاسي ځئ و غنيمتو ته (يعني په زعم کي د دوی) چي تاسي يې جمع کړئ. موږ پرېږدئ چي ستاسي ملګري سو په جهاد کي (يعني چي موږ ته غنائم په لاس راسي)

يُرِيْدُوْنَ اَنْ يُّبَدِّلُوْا كَلٰمَ اللّٰهِ

بدل اشتمال دی د سيقولون څخه، دوی اراده لري چي بدل کي کلام د خدای (مع انه لامبدل لکلماته)

**درويش وايي**: چي ظاهره خبره داده چي د دې آيت معنی دا ده سيقول المخلفون الذين تخلفوا من الجهاد في غزوة الحديبية په هغه وخت چي دوی په مسلمانانو کي ظن د ضعف کاوه وقلة عدد چي دوی په مسلمانانو کي قوت د جهاد وليدی حتی چي اهل مکه يې و صلح ته مجبوره کړه کمامر تفصيله، بيا چي عليه الصلوة والسلام د خيبر د غزاء عزم وکړی او مسلمانانو خپل تياری نيول د جنګ لپاره، نو د مخلفون په زعم کي دا وه چي مسلمانان خيبر فتح کړی او ډېر غنائم يې جمع کړی ذرونا نتبعکم او د خروج په دې غزاء کي اراده وکړه، نو خدای پاک عليه الصلوة والسلام امر کړی: قل لن تخرجوا معي ابدًا ولن تقاتلوا معي عدوًا انکم رضيتم بالقعود اول مرة، کذا قال ابن زيد و قتاده، او مظهري وايي چي مخلفونو چي وليدی په مؤمنانو کي سخت رغبت و جهاد ته او دوی واورېدی بيعة الرضوان کمامر او خدای بری ورکړی و مؤمنانو ته في قريب مکة يعني الحديبية کمامر حتی رضی المشرکون بالصلح او بېغمه سوه مؤمنان د اهل مکه له جنګ څخه لس کاله کمامر، و فرغوا الی الجهاد مع عامة العرب، نو دوی يعني

المخلفون پښېمانه سوه پر تخلف نو چي عزم يې وکړی د جهاد د اهل خيبر دوی ورته راغله او وه يې ويل: ذرونا نتبعكم آه، مع ان اهل خيبر كانوا اشد بأسًا من اهل مكة، ولي چي خيبر لس زره مقاتل وه او په مكه كي دومره تعداد مقاتل نه وه ماسوی د ښځو او صبيانو څخه.

**سوال:** چي دا سي وه د نو د څه حكمت لپاره رسول اللهﷺ مؤمنان پر اهل مكه په جهاد سره نه كړه امر او پر خيبر يې په جهاد سره امر كړه؟

**ځواب:** ترحمًا بقريش لانهم مجاورين بيت الله الحرام كما حبس عنهم الفيل، قال الله تعالى: الم تر كيف فعل ربك باصحاب الفيل الى اخير السورة كما سيئاتي تفصيله ان شاء الله تعالى في تفسير تلك السورة، او بله وجه يې دا ده چي خدای ﷻ ته په خپل علم قديم ور معلومه وه چي اكثر اهل مكه به ايمان راوړي ويخرج اصلابهم نسمات مؤمنات (ای انفس) او بله وجه يې دا ده چي په هغه وخت كي په مكه كي رجال مؤمنان او ښځي مؤمنات وې چي مجاهدينو د مكې په كال كي د حديبيې هغه نه پېژندل چي هغه به هم په جنګ كي وژل سوي وای، نو دوی ته به لوی پيغور وای بخلاف اهل خيبر.

قُلْ لَّنْ تَتَّبِعُوْنَا كَذٰلِكُمْ قَالَ اللّٰهُ مِنْ قَبْلُ

ته ورته وو ايه و مخلفينو ته چي هرګز تاسي په جنګ كي د خيبر زموږ سره نسئ ملګري كېدای "كذالك" ای قولاً مثل ما قلت لكم "قال الله من قبل" يعني غنائم د خيبر خاص دي په اهل حديبيه پوري لانصيب لغيرهم فيها، لكن په وحي غير متلو في القرآن، وهذا هو المراد بقوله تعالى يريدون ان يبدلوا كلام الله، يا دي او سني آيت څخه مراد دا دی انهم لم يخرجوا معك ابدًا ولا تصاحبهم في غزوة ابدًا (لا بخصوص غزوة خيبر)

تاريخ الخروج الى غزوة خيبر: عليه الصلوة والسلام له حديبيې څخه را ستون سو په ذی الحجة كي سنه شپږ د هجرت كي، واقام بالمدينة بقية ذی الحجة او څو ورځي اول د محرم من سنه (۷) هجري ثم غزا خيبر بمن شهد الحديبية فقط ففتحها و غنم اموالاً كثيرة.

فَسَيَقُولُونَ بَلْ تَحْسُدُونَنَا بَلْ كَانُوا لَا يَفْقَهُونَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿١٥﴾

ژر دی چې وه به وایي (ای مخلفون، عطف علی سیقولون) کلمه د بل لپاره د عطف ده معطوف علیه یې محذوف دی (لم یقل الله ذالک) بل تحسدوننا) یعني تاسي زموږ سره حسد کوئ چې په غنائمو مو نه شریکوئ "بل کانوا لا یفقهون" عطف دی علی سیقولون او بل لپاره د اضراب دی قولهم بل تحسدوننا یعني الامر لیس کما یقول المخلفون بلکې دوی نه پوهېږي چې پر موږ کوم ضرر دی د خدای له خوا او کوم شی موږ لره نفع دی د خدای له خوا "الا قلیلا" ای نفعا قلیلا في الدنیا وهو احراز الغنائم، وقال البغوي "الا قلیلا" منهم وهو المؤمنین یعني من صدق الله ورسوله.

قُلْ لِّلْمُخَلَّفِيْنَ مِنَ الْأَعْرَابِ سَتُدْعَوْنَ إِلَىٰ قَوْمٍ أُولِي بَأْسٍ شَدِيدٍ

**پوښتنه:** خدای د مخلفینو نوم مکرر راوړی حکمت یې څه دی؟

**ځواب:** حکمت مبالغه په ذم کې د دوی اشعارًا بشفاعت التخلف عن رسول الله ﷺ والمؤمنون.

ترجمه: ته ووایه یا محمد و مخلفینو ته د احزابو ژر به تاسي وبلل سئ و یو داسي قوم ته (ای الی الجهاد) د داسي قوم چې خاوندان د جنګ شدید وي، قال کعب هم الروم في غزوة تبوک انتهی، ورده المظهري په دې سره چې د ده قول مخالف دی د هغه وروسته آیت (تقاتلونهم او یسلمون) ولي د تبوک د غزاء مال و جنګ ته نه دی رسېدلی، ولي علیه الصلوة والسلام په تقریبًا دېرش زره قوم سره او فوج تبوک ته ورغلی چې هورې مرکز د رومیانو نژدې ؤ لکن هرقل چې د رومیانو بادشاه ؤ هیڅ حرکت و مقابلې او جنګ ته د مسلمانانو یې ونه کړی او جنګ ته حاضر نه سو، حتی چې علیه الصلوة والسلام تر لسو ورځو بالا هورې ورته تېرې کړې، نو علیه الصلوة والسلام بېله قتاله و مدینې منورې ته راستون سو، او سعید بن جبیر او قتاده وایي چې دا قوم هوازن او ثقیف او غطفان دي، مظهري دا قول هم رد کړی دی، ولي چې رسول الله ﷺ مخلفون اعراب و قتال ته د دغو اقوامو په ورځ نه دي دعوت کړي، او بله خبره دا ده چې مذکوره اقوام اولی بأس شدید هم نه وه نسبت و عساکرو ته د اسلام بلکې ډېر لږ و تر مقاتلین د اسلام.

**درويش وايي**: چې كه څوك تفسير روح المعاني او روح البيان مطالعه كړي په باره كې د قوم اولى بأس شديد به عجيبه اختلافات ويني، لكن حق دا ده لكه الزهري"، مقاتل" و جماعة چې ويلي دي چې مراد له دغه قوم څخه چې د اولى بأس شديد په نامه خداى پاک ياد كړه بنو حنيفة اهل اليمامة اصحاب د مسيلمة الكذاب وهو مذهب المفسرين" ورجحه البيضاوي.

تُقَاتِلُوْنَهُمْ اَوْ يُسْلِمُوْنَ ۚ

يا به يې تاسي قتل كوئ يا به ايمان راوړئ بل حكم يې نسته.

**فائده**: د مشركانو څخه د عربو او د مرتدينو څخه لكه اصحاب د مسيلمة الكذاب بنو حنيفة اهل اليمامة لايقبل منهم الا الاسلام او السيف او قتال د غيرهم ينتهي بالجزية كالروم، رافع بن خديج" وايي چې موږ به دغه آيت اولي بأس شديد الى قوله تقاتلونهم آه په دې پوهېدلو چې دا كوم قوم دى، حتى ابوبكر الصديق رضي الله عنه مسلمانان امر كړه په قتال د بني حنيفه چې پر مسيلمة الكذاب باندې يې ايمان راوړى ؤ فعلمنا انهم هم، او دا آيت دليل پر امامت د ابى بكر الصديق رضي الله عنه فانه" دعى الناس الى قتال بنو حنيفه اهل اليمامة چې پر مسيلمة الكذاب يې ايمان راوړى ؤ.

تاريخ اسلامي خبري كوي: چې مسيلمة الكذاب د عليه الصلوة والسلام په ژوند كې دعوه د نبوت كړې وه او يو وخت يې د دوو كسانو په لاس يو مكتوب وركړى ؤ چې په اول كې د مكتوب يې داسي ليكلي وه، من عبد الله ورسوله مسيلمة الى عبد الله ورسوله محمد اما بعد: ته هم رسول د خداى يې او زه هم رسول د خداى يم نو يوه د دوو خبرو څخه چې ستا خوښه وي ماته يې نشان دهي كړه (۱) اهل المدن والقرى دې ستا وي او باديه نشينان او پونده انسانان دې زما وي (۲) ته به رسمي وصيت كوې چې زما تر مرګ وروسته به مسيلمة ستاسي نبي وي، قاصدانو چې مكتوب راوړى، اول خو عليه الصلوة والسلام داسي وويل: چې كه د قاصدانو قتل ماته روا واى ما به ستاسي سرونه په توره در غوڅ كړي واى، بيا علي رضي الله عنه وويل چې جواب داسي ورته نوشته كړه من محمد عبد الله ورسوله الى مسيلمة الكذاب د عليه الصلوة والسلام په لاس كې يو لرګى ؤ چې كه ته يا مسيلمة الكذاب له ما څخه دغه لرګى پر قبول د رسالت خپل زه به يې درنه كړم خير

په ژوند کي د علیه الصلوة والسلام خو د مسلیمة سره جنګ نه و کړل سو، ابوبکر الصدیق رض چي خلافت او امامت د امت مسلمة پر غاړه واخستی اول یې دېر د روند فوج مسیلمة الکذاب او بنو حنیفة د اهل یمامه ورواستاوه د مسیلمة کذاب د قلا پر شاوخوا باندي د روند فوج د مسیلمة الکذاب پروت ؤ په دېره سختي او تیر اندازي سره د جنګ اوربل سو، تاریخ وایي چي په فوج د مسلمانانو وحشي چي قاتل د حمزه بن عبد المطلب ؤ په جنګ کي د احد کما في البخاري وغیره من کتب الاحادیث هم شامل ؤ، او وحشي چي بیا ایمان راوړی ؤ په ویشتلو کي د حربة دېر ماهر ؤ وحشي قلا ته د مسیلمة الکذاب د دېر جنګ کاوه چي ناګاه مسیلمة الکذاب د قلا په یو نخره کي د جنګ د معلوماتو لپاره ښکاره سو وحشي چي نژدې ولاړ ؤ حربة یې ورته سمه مسیلمة الکذاب یې په ځګر په وویشتی لاندي تر قلا یې راشوه کړی، په اصحابو کي د مسیلمة ناري سوې الا ان امیر المؤمنین مسیلمة قد قتله عبد حبشي دده د مرګ سره سم دده لښکر شکست وکړی او د ابوبکر الصدیق رض فوجیانو ددوی په وینو خپلي توري ورنګولې، وحشي رض به ویل چي که خدای پاک په ورځ د محشر د حمزه رض د وژلو زما څخه باز خواست وکړی زه به یې قتل اعدی عدوا الله مسیلمة الکذاب په وژلو جواب ورکړم.

**پوښتنه**: چي په آیت سابقه کي خدای ﷻ داسي وویل و مخلفون ستدعون الی قوم اولی بأس شدید، نو که مراد له قوم شدید څخه د مسیلمة الکذاب اتباع وي نو دا جنګ په ژوند کي د علیه الصلوة والسلام نه دی واقع سوی بلکي په خلافت کي د ابوبکر الصدیق رض واقع سو کما مر عنقریب تفصیله؟

**ځواب**: خدای پاک خو ستدعون پر صیغه د مضارع مجهول راوړه، نو خو دغه جنګ ته د ابوبکر رض ته هم شامله ده والله اعلم.

تاریخ اسلامي وایي: چي د علیه الصلوة والسلام په ژوند کي یو بل سړی په نامه د اسود العنسي هم دعوه د نبوت کړې وه چي علیه الصلوة والسلام فیروز الدیلمي رض جنګ ته واستولی ؤ هغه وخت چي علیه الصلوة والسلام په مرض الموت سره ناجوړی ؤ زیری ورته راغلی چي اسود العنسي د فیروز الدیلمي رض له خوا ووژل سو، او اتباع یې تیت و پرک سول، علیه الصلوة والسلام په نعم العبد فیروز رض یاد کړی.

فَإِنْ تُطِيعُوا يُؤْتِكُمُ اللَّهُ أَجْرًا حَسَنًا

که تاسي اطاعت د هغه داعي وکړئ، تاسي ته به درکړي خدای اجر حسن.

وَإِنْ تَتَوَلَّوْا كَمَا تَوَلَّيْتُمْ مِنْ قَبْلُ يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ﴿١٦﴾

او که تاسي روی ګرداني وکړئ په غزاء کي د قوم اولی بأس شديد لکه تاسي چي روی ګرداني وکړه په کال کي د حديبيه "يعذبكم عذابًا اليمًا" چي مضاعف د جرم ستاسي وي، ولي چي تاسي دوه واره تولی وکړه، البغوي وايي چي هغه وخت چي د مخه آيتونه نازل سوه نو ګوډ يا شل مسلمانان و عليه الصلوة والسلام ته راغله، وه يې ويل كيف بنا يا رسول الله ﷺ (چي زموږ حال به څه وي) موږ په يوه غزاء کي نه يو شامل سوي فانزل الله هذه الآية.

لَيْسَ عَلَى الْأَعْمَى حَرَجٌ وَلَا عَلَى الْأَعْرَجِ حَرَجٌ وَلَا عَلَى الْمَرِيضِ حَرَجٌ

نسته پر ړانده تنګي او عذاب په ترک کي د جهاد في سبيل الله، او نسته پر ګوډ باندي تنګي په ترک د جهاد که په يوه پښه ګوډ وي او که په دواړو پښو ګوډ وي، او نه پر مريض باندي تنګي او عذاب په ترک د جهاد (چي داسي مرضي يې وي چي سره د هغه مرض طاقت د جهاد نه لري، لا مطلق المرض لان الانسان لايخلو عن مرض مطلق.

وَمَنْ يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ يُدْخِلْهُ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ

او که څوک اطاعت فرمان برداري وکړي د خدای او د رسول د خدای (يعني في جميع ماجاء به رسوله من عند الله) خدای پاک به هغه داخل کړي و جنتو ته چي بهيږي به لاندي تر درختو د هغو جنتو ويالې څلور صافي او به صافي شيدې صاف عسل او صاف شراب لاغول فيها ولاهم عنها ينزفون.

وَمَنْ يَتَوَلَّ يُعَذِّبْهُ عَذَابًا أَلِيمًا ﴿١٧﴾

او څوک چي اعراض وکړي له طاعت څخه د خدای ؓ و د رسول مع القدرة عليه من جهاد وغيره، خدای به عذاب ورکړي و هغه ته عذاب درد ورکوونکی، نو فعيل په معنی د مفعل دی کما في قول الشاعر:

امن ريحانة الداعي السميع يورقني واصحابي هجوع

(السميع بمعنى مسمع) ولهذا البيت قصة طويلة.

لَقَدْ رَضِيَ اللّٰهُ عَنِ الْمُؤْمِنِيْنَ اِذْ يُبَايِعُوْنَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ

كلمه د لام جواب د قسم محذوف ده، په تحقيق خداى؟ راضي دى له مؤمنانو څخه چي بيعت يې وكړى ستا سره لاندي تر درختي يعني په حديبيه كي چي دې بيعت ته بيعت الرضوان وايي. په بعض روايا تو كي راغلي دي چي اول بيعت چي يې د رسول اللهﷺ سره وكړى سنان بن ابى سنانؓ، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي ته پر څه شي زما سره بيعت كوې؟ سنان ورته وويل على ما قلبك چي ستا په زړه كي دي، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي زما په زړه كي څه دي؟ سنان ورته وويل چي ستا په زړه كي دادي چي زه به ستا تر مخه توره چلوم او كفار به وژنم حتى چي فتح راځي يا د سنان مرګ او قتل مابين ته راځي، وروسته نورو مؤمنانو چي بيعت كاوه هغو به ويل چي موږ هم د سنان بن سنانؓ پر بيعت بيعت درسره كوو.

**سوال:** سنانؓ په غيبو څه خبر ؤ چي د عليه الصلوة والسلام په مبارك زړه كي دا خبره ده؟

**خواب:** سنانؓ له قرائنو څخه د حال د بيعت اخستلو د عليه الصلوة والسلام دا ورته معلومه سوه چي فرار به نه كوي، والغرض من هذه الآية مدح د مؤمنانو ده والثناء عليهم، په بخاري او مسلم دواړو كي چي حديث وي نو داسي حديث ته په اصطلاح د محدثينو متفق عليه حديث وايي عن جابر بن عبد اللهؓ كنا بالحديبية (۱۴۰۰) كسه ؤ فقال لنا رسول اللهﷺ انتم خير اهل الارض، وروى مسلم عن ام بشرؓ مرفوعًا (يعني الى عليه الصلوة والسلام) لايدخل النار من بايع تحت الشجرة.

فَعَلِمَ مَا فِىْ قُلُوْبِهِمْ فَاَنْزَلَ السَّكِيْنَةَ عَلَيْهِمْ وَاَثَابَهُمْ فَتْحًا قَرِيْبًا ﴿۱۸﴾

خداى؟ خبر دى په هغه څه چي د دوى په زړو كي دي (من الصدق والوفاء بالبيعة) خداى پاك نازل كړى ارام د زړو پر دوى (يعني په زړو كي يې هيڅ اضطراب نه ؤ بالخصوص عند ذكر الله تعالى والرضاء بامر الله فوق الرضاء بما تشتيهه انفسهم) دوى ته ورسول سوه فتح نژدې، چي مراد ځني فتح د خيبر ده.

**پوه سه:** چي حافظ محمد بن یوسف صالحي ؒ وايي چي خیبر نوم د یو ولایت دی چي په هغه ولایت کي محکمي قلاوي وجود لري او د کښېنتو مڅکي درلودی او د خورماؤ باغونه یې درلودې د درو (۳) ورځو منزل دی له حدیبیې څخه.

**پوه سه:** چي بعض راویان وایي وروسته تر رجوع د حدیبیې څخه علیه الصلوة والسلام لس (۱۰) ورځي په مدینې کي تېري کړې، او بعض روات وایي چي پنځلس (۱۵) ورځي یې تېري کړې او لپاره د فتح خیبر د محرم په میاشت کي راهي سو او فتح د خیبر د صفر الخیر په میاشت کي په (۷) سنه کي د هجرت وسوه کذا في المغازي للواقدي حافظ ابن حجر ؒ وایي انه القول الراجح کما نقل الحاکم عن الواقدي.

وَّمَغَانِمَ كَثِيرَةً يَأْخُذُونَهَا ۗ وَكَانَ اللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا ﴿۱۹﴾

او غنیمتونه ډېر به اصحاب کرام ؓ تر لاسه کړي، او دی خدای عزوجل غالب پر ما اراده یعني څوک یې مانع نسي کېدای او په هر کار کي حکمت لري یعني مامر في قصة الحديبية من بيعة الرضوان والصلح مع قريش پر لس کاله جنگ بندي باندي (بخاري له عائشې ؓ څخه روایت کړی دی چي څه وخت چي خیبر فتح سو، نو موږ به ویل چي اوس به نو موږ ماړه سو په خورماؤ سره، او ابن عمر ؓ وایي ما شبعنا من التمر حتى فتحت خيبر.)

وَعَدَكُمُ اللَّهُ مَغَانِمَ كَثِيرَةً تَأْخُذُونَهَا

وعده کړې ده خدای ؑ د ډېرو غنیمتو من الکفار خصوصًا الیهود، چي ستاسي په لاس به درځي، والمراد بهذه الفتوح چي مسلمانانو ته حاصلېږي تر ورځي د قیامت پوري په دې کي تسلي ده مسلمانانو لره.

فَعَجَّلَ لَكُمْ هَٰذِهِ وَكَفَّ أَيْدِيَ النَّاسِ عَنكُمْ ۚ

نو ژر درکړه سوه تاسي ته دغه فتح د خیبر. او خدای پاک بند کړه لاسونه د دښمنانو ستاسي څخه، البغوي ؒ وایي چي نبي ﷺ خیبر محاصره کړی، نو قبیلو د بني اسد او د غطفان قصد وکړی چي غارت پر اموالو او اولادو د مسلمانانو وکړي په مدینه کي، ابن اسحاق ؒ وایي چي د غطفان قبیلې کومک د یهودانو سره کاوه یعني په خیبر کي لپاره د غلبې پر رسول الله ﷺ او پر مؤمنانو چي د ده سره ملګري وه، د وی

چي وړ راهي سوه دوی ته دا خوف په زړو کي وربيدا سو چي مؤمنان به زموږ پر عيالو مخ راواړوي او هغه به قتل کړي دوی بيرته ترشا راغله پر خپلو مالو او عيالو يې پهره کول او عليه الصلوة والسلام او اهل خيبر يې سره پر ېښول.

**سوال:** فتح خو لفظ مذکر دی نو تانيث د هذه يې پر څه بناء دی؟

**ځواب:** پر دې بناء دی د فتح خيبر څخه مراد غنائم د خيبر دي.

**درويش وايي:** چي مراد دی د هغه مفسر چي ددې آيت تفسير يې داسي کړی دی بالقاء الرعب في قلوبهم يعني په زړو کي د بني اسد او غطفان، او ابو نعيم وايي چي غطفان د اسمان له خوا داسي اواز واورېدی عليکم من خلفتم (پر تاسي دی حفاظت د هغو مالو او عيالو چي تاسي ترشا پرې ايښي دي) فرجعوا الى اهليهم.

وَلِتَكُونَ آيَةً لِّلْمُؤْمِنِينَ وَيَهْدِيَكُمْ صِرَاطًا مُّسْتَقِيمًا ﴿٢٠﴾

او چي سي دا کفة الناس عنکم او يا غنيمت د خيبر دليل پر صدق ستا يا محمد ﷺ فيما وعدتهم (اى اهل الحديبية سره پر حاصلولو د غنيمتو) او تاسي ته هدايت وکړي د مستقيمي لاري، چي مراد ځني اعتماد دی پر خدای ﷻ والتوکل عليه تعالى، يا معنى داده چي تاسي ته ثواب درکړي پر اسلام باندي ويزيدکم بصيرة ويقيناً.

**قصة غزوة خيبر:** عليه الصلوة والسلام چي د خيبر و غزاء ته نيت وکړی، نو پر مدينه منوره يې سباع بن عرفطة ﷺ خليفه وګرځاوه، کما رواه احمد وابن خزيمة والحاکم عن ابى هريرة ﷺ، نو چي عليه الصلوة والسلام او مؤمنان په تياري د غزاء بخت سول پر يهودانو د مديني دا تياری د غزاء ډېر سخت پرېوتی ولي اهل خيبر خو هم يهودان وه، نو ددې يهودانو چي به د مديني پر يو مسلمان پور باندي ؤ هغه به يې ټينګ کړی چي زما پور به راکوې، احمد او الطبراني حکايت کوي د ابى حدرد ﷺ چي د ابى الشحم اليهودي پر ده پنځه درهمه پور باندي ؤ هغه يهودي ابى حدرد ﷺ ټينګ کړی چي چابک به زما پور راکوې، ابى حدرد ﷺ ورته وويل چي ته يو څو ورځي ماته وګوره چي له غزاء څخه د خيبر راغلم پوره به دي درکړم، ولي خدای پاک وعده کړې ده د نبي سره خپل د فتح د خيبر يعني په فتح کي د خيبر به ماته څه

غنيمت په لاس راسي ستا پور به در کړم، ابو شحم ورته وويل چي تاسي ګمان کوئ پر جنګ د خيبر د جنګ د اعرابو؟ زما دي قسم وي په خدای سره چي په خيبر کي لس زره مسلح فوجيان سته، نو دا خبره تر عليه الصلوة والسلام پوري ورسېده عليه الصلوة والسلام ابي حدرد رضی الله عنه ته وويل چي د ابو شحم پور ورکړه، ابو حدرد رضی الله عنه وايي چي ما خپل يو جوت کالي خرڅ کړه او د ابو شحم پور مي ورکړی.

**فائده:** دا يهودان په مدينه کي د اهل ذمه په توګه اوسېدل لکه هندوان په افغانستان کي چي اوسېدل فافهم، راوي د قصې وايي چي هغه وخت چي رسول الله ﷺ ورسېدی صهباء ته چي و خيبر ته نژدې د يو ځای نوم دی د خوراک شی يې راوغوښتی، فلم يؤت الا بالسويق.

**درويش وايي:** چي د عربو په عصر قديم کي دا عادت ؤ چي په لوی سفر به تله نو بې غنم راواخسته پر تبخي به يې نينې کړه وروسته به يې وړه کړه هر ځای چي به وږي سوه هغه وړه به يې په اوبو لانده کړه خوړل به يې دې ته دوی سويق وايي.

**پوښتنه:** د دې کار چي دوی کاوه څه فائده يې وه؟

**ځواب:** فائده يې دا وه چي په سفر کي هر ځای بوتي پيدا کول بيا د ودی پخول په سفر کي لوی تکليف ؤ.

**پوښتنه:** د نينې کولو يې څه فائده وه وړه به يې ورسره اخستلای چي وږي سوي وای اوبه به يې وراچولای خورک به يې ځني کولای؟

**ځواب:** د اومو وړو خورک خو خوند هم نه کوي او بل سړی ناجوړی کوي کما يدل عليه التجربة، نو چي نينې به يې کړه پاخه به سوه، نو خوړل يې هم خوند کوي او هم سړی نه ناجوړی کوي.

اوس بيرته د حديث پر لور: نو هغه سويق يې لانده کړه او ويې خوړل، ثم قام الى المغرب، نو په خوله يې اوبه ولغړولې ثم صلى ولم يتوضأ رواه البخاري والبيهقي، بيا عليه الصلوة والسلام يو کړی دلته بيده سو يو کړی د شپې، راوي وايي چي خيبر د يهودانو دا خيال نه ؤ چي رسول الله ﷺ دي زموږ غزاء ته راسي، دوی په خپلو محکمو قلاوو او په خپلو اسلحه وو او په خپل لوی عدد چي لس زره (۱۰۰۰۰) مقاتل وه غره وه، نو وروسته چي دوی واورېدل چي محمد (ﷺ) زموږ د

غزا، لپاره را روان دی، نو دوی به هره شپه لس زره مقاتل را وتلهاو دا به یې ویله محمد تغیرونا (پر موږ حمله کوي) هیهات هیهات وکان ذالک شانهم کل لیلة. نو هغه شپه چې علیه الصلوٰة والسلام د دوی ساحې ته ورسېدی په هغه شپه هیڅ څوک نه و وتل (یعني خوبو غلبه پر وکړه) او نه یې چرګانو اذانونه کول حتی چې لمر راوختی دوی چې راویښ سول زړونه یې رېږدېدل قلاوي یې خلاصي کړې.

په بخاري او مسلم کې داسې راغلي دي چې د علیه الصلوٰة والسلام دا عادت مبارک وُ چې د شپې به و قوم ته د غزاء لپاره ورسېدی نو د شپې یې حمله نه پر کول تر سهاره یې انتظار کاوه، نو که به یې اذان واورېدی نو حمله یې نه پر کول ولي چې دلته مسلمانان هم سته چې هغه په جنګ کې ژوبل نه سي، واذا لم یسمع اذانا اغار، راوي وایي چې علیه الصلوٰة والسلام او موږ د سهار لمونځ په غلس کې وکړی (یعني په اول وخت کې چې هنوز لا تاریکه وه) او اذان مو هم نه واورېدی فرکب رسول الله ﷺ ورکبنا ای المسلمون، او د خیبر خلک په هیڅ نه وه خبر خپلو باغو ته روان وه تیو کړی، او یومان ورسره وه، فلما روا رسول الله ﷺ قالوا محمد والخمیس، محمد (ﷺ) راغلی او لښکر هم ورسره دی په خغاسته په قلا ننوتل او دروازې یې بندي کړې، فقال رسول الله ﷺ ورفع یدیه الله اکبر خربت خیبر (خراب سو خیبر یعني فتح به سي)

**فائده:** په آلاتو د خراب چې یومان او بېلچې وې تبرک یې وکړی ''انا اذا انزلنا بساحة قوم فساء صباح المنذرین''

**پوښتنه:** لښکر ته ولي عرب خمیس وایي؟

**ځواب:** د قدیم عربو دا رواج وُ چې لوی لښکر وای د جنګ عظیم لپاره نو هغه به یې پنځه برخي کاوه، یوې ټولګی ته یې مقدمة الجیش وایه چې تر ټول لښکر د مخه به روانه وه چې د لښکر د مخ مخکه به یې څېړل یعني معلومات به یې کاوه، او بله ټولی به د لاري او د لښکر پر راسته طرف روانه وه چې میمنة الجیش یې بلل لمثل الغرض المذکور في مقدمة الجیش، او بله ټولګی به یې ساقة الجیش بلل لمثل الغرض المذکور، او بله ټولګی به یې میسرة الجیش بلل لمثل مامر، او لویه ټولګی چې امیر الجیش به هم په هغو کې وُ قلب الجیش یې بلل یعني د لښکر زړه.

روی الطبراني عن جابر بن عبد الله ؓ ان رسول الله ﷺ قال یومئذ لا تتمنوا لقاء

العدو (د دښمن يعني الكفار د ملاقات يعني د جنګ تمنا مه كوئ) واسئلوا الله العافية (د خداى څخه سوال د عافيت كوئ) او داسې وايا ست: اللهم ربنا وربهم نواصينا ونواصيهم بيدك (كنايت د قدرت څخه پر موږ او دوى يعني كفار چې وژني يې ته يې وژني يعني زموږ په لاس وژنه ثم الزموا الارض بيا نو مځكه ټينګه ونسئ يعني تېښتئ مه) جلوسًا په ناستې فاذا غشوكم يعني چې دوى در ا نژدې سي نو جنګ ته ور ولاړ سئ او الله اكبر ووايا ست، او بيا بيرغونه عليه الصلوة والسلام تقسيم كړه او اجازه د قتال يې وركړه او مؤمنان يې باعثه كړه پر صبر، وقاتل رسول الله ﷺ والمؤمنون اهل نطات اشد القتال وقاتل اهل النطات ايضًا اشد القتال حتى فتح الله عليه الحصن، راوي وايي چې عليه الصلوة والسلام اووه ورځې د حصون او قلاؤ د اهل نطات په جنګ اخته ؤ او هره ورځ به يې بيرغ د اسلام چې لآ اله الا الله محمد رسول الله پر نوشته وه يو صحابي رض ته يې په لاس وركړى فلم يرجع من اعطى له الراية بفتح، وروسته عليه الصلوة والسلام وويل چې زه سبا بيرغ و هغه چا ته وركوم چې يحب الله ورسوله ويحبانه او خداى و رسول د هغه محبت لري يفتح على يديه، ددې وينا څخه د عليه الصلوة والسلام اميد ابوبكر، عمر او بعض نورو صحابه ؤ ﷺ ته د قريشو پيدا سو، يعني هر يوه دا اميد كاوه چې شايد ما ته به يې راكړي او زه به فتح وكړم، نو عليه الصلوة والسلام علي ﷺ را طلب كړى او د علي ﷺ تر سترګو او ښكې توېدلې يعني پر سترګو يې سخت درد ؤ علي ﷺ چې راغلى عليه الصلوة والسلام پر سترګو دم ور وكړى، نو د علي رض سترګې د خداى په قدرت دستي جوړې سوې لكه د سره چې نه وه پر درد، نو سپين بيرغ د اسلام يې وركړى، علي ﷺ و عليه الصلوة والسلام ته وويل: على ما اقاتلهم، پر څرنګه زه جنګ ورسره وكړم؟ قال عليه الصلوة والسلام على ان يشهدوا ان لا اله الا الله واني رسول الله، نو كه دوى دا دوې خبرې ومنلې، نو دوى محفوظي كړې خپلې وينې يعني مؤمنان دوى نسي وژلاى، او دوى وساتل خپل مالونه يعني مسلمانان يې په مالو هم كار نه لري، او عليه الصلوة والسلام خپله زغره د اوسپنې په علي ﷺ واغوستل او خپله توره چې ذو الفقار يې بلل تر ملا ور غوټه كړه، او عليه الصلوة والسلام دا هم ورته وويل چې ستا په سبب به يو سړي ته خداى ﷻ

هدايت ورکړي يعني ايمان به راوړي، نو خير ده تا لره من حمر النعم (تر سرو اوښانو) چي ته يې في سبيل الله خيرات کړې يعني غزاتو او مجاهدينو ته يې ورکړې، فخرج علي ﷺ سره د بيرغه د خوشحالۍ څخه يې اوړې ښورولې او بيرغ يې جګ کړی لاندي تر قلا د الحارث چي ورور د مرجب ؤ، تاريخ وايي چي دا الحارث په شجاعت سره مشهور ؤ. نو علي ﷺ او حارث يو پر بل د تورو وارونه وکړل، علي ﷺ الحارث قتل کړی نو ريهودان له بيري په قلا ننوتل ثم خرج اليه (اى الى علي ؓ) مرجب چي د يهودانو سردار ؤ پر علي ﷺ يې سخت ګذار د توري وکړی چي د علي ﷺ د لاسه يې سفر وغورځاوه، نو علي ؓ على الفور يوه د قلا زړه دروازه پرته وه هغه يې راپورته کړه او د سپر کار يې څني اخستې او دغه لويه دروازه تر مغرب پوري د علي ﷺ په لاس کي وه او د مرجب و توري ته به يې سپر کوله حتى چي مرجب يې هم قتل کړی ففتح الله على علي ﷺ دا قلا د خيبريانو او دا قلا په نامه د ناعم ياديدل له قلاؤ څخه د النطاة او هغه دروازه علي ؓ تر شا وغورځول اتيا (٨٠) لوښتي، وذالک بالقوة القدسية وهذا دليل على شجاعة علي ؓ حيث قتل شجاع بعد شجاع يعني الحارث و اخوه مرجب، ولنعم ماقيل:

| | |
|---|---|
| گرچه شاطر بود خروس به جنگ | چه زند پيش باز روئين چنگ |
| گربه شير است درگرفتن موش | ليک موش است درمصاف پلنگ |

**درويش وايي:** چي نقل او بيان او تفصيل د ټولو قلاؤ د خيبر ډېر اوږد دی چي تفصيل به تطويل د دې تفسير مفضي سي نو ځکه زه عذر غواړم له بيان څخه د فتح د ټولو قلاؤ.

**قصة فتح فدک:** راويان وايي چي د اهل فدک يهودانو چي واوريدل بما صنع رسول الله ﷺ باهل خيبر، نو سړي يې و عليه الصلوة والسلام ته ورواستاوه چي زموږ سره صلح وکړه يعني موږ پرېږده په فدک کي محفوظ او اموال زموږ به ستا وي عليه الصلوة والسلام هم دا غسي وکړه لکن شرط يې دا کړه انا اذا شئنا اخرجناکم فصالحه اهل فدک على ذالک، نو غنائم د خيبر پر غازيانو مجاهدينو مسلمانانو ووېشل سول او اموال د فدک خالصةً د رسول الله ﷺ سول، ولي فدک په صلح ونيول سو، مجاهدينو جنګ نه ؤ پر کړی.

قصة قدوم جعفر بن ابی طالب اخو علي بن ابی طالب رضی الله عنهما د ابو موسی الاشعري رح روایت دی چي له مکې څخه موږ هجرت و یمن ته کړی ؤ چي موږ ته دا خبر ورسېدی چي رسول اللهﷺ له مکې څخه هجرت مدینې ته وکړی، نو موږ په کښتۍ کي سپاره سوو په نیت د هجرت و مدینې ته فالقینا سفینتنا وروستو کښتۍ زموږ حبشې ته (یا یې لار خطا کړه او یا به یې له حبشې څخه وروسته مدینې ته وړلای) والاول هو الظاهر فوافقنا جعفر بن ابی طالب رح ده راته وویل چي موږ رسول اللهﷺ دلته حبشې ته را استولي یو او موږ یې امر کړي یو په اقامت سره په حبشې کي نو تاسي دلې زموږ سره پاته سئ وروسته به ان شاء الله کډو سره ولاړ سو فاقمنا معه حتی قدمنا جمیعًا الی المدینة، نو موږ علیه الصلوة والسلام ته په داسي وخت کي ورسېدو چي علیه الصلوة والسلام خیبر فتح کړی ؤ، او رسول اللهﷺ وویل: بایهما افرح بفتح خیبر ام بقدوم جعفر (په کوم د دې دوو شیانو زه خوشحالي وکړم په فتح د خیبر که په قدوم د جعفر رح) و قبل رسول اللهﷺ جعفر بین عینیه، نو جعفر رح وویل چي موږ اصحاب السفینة ته علیه الصلوة والسلام برخه راکړه په غنیمتو کي د خیبر او بل هیڅ چا ته یې برخه نه کړه ور چي په فتح د خیبر به غائب ؤ هیڅ شی هم، او علیه الصلوة والسلام و اصحابو ته د جعفر رح وویل: لکم هجرتان من مکة الی الحبشة ومنها الی المدینة، رواه البیهقي.

قصة قدوم ابی هریرة رضی الله عنه: دی وایي چي موږ اتیا کوره د دوس د قبیلې مدینې ته راغلو بیا په علیه الصلوة والسلام پسي خیبر ته ولاړو علیه الصلوة والسلام په دغه وخت کي د نطاط قلاوي فتح کړي وې وهو محاصر لکثیبة فاقمنا عنده حتی فتح الله علینا، نو علیه الصلوة والسلام په حق کي زموږ د مسلمانانو سره خبري وکړې، نو موږ یې شریکان کړو په برخو کي د نورو مسلمانانو سره چي په فتح کي د خیبر شریکان وه، ولي چي په اخیر فتح کي موږ هم حاضر سولو الی ههنا.

تم الکلام في فتح خیبر: راوي وایي چي له جملې څخه د هغو کسانو چي له حبشې څخه راغلي وه ام حبیبه بنت ابی سفیان رح چي وروسته علیه الصلوة والسلام په نکاح کړه، قصه دا وه چي ام حبیبه رح سره د خپل مېړه عبد الله بن جحش حبشې ته تللې وه، مېړه یې مرتد سو له اسلام څخه نصاري سو او پر هغه نصرانیت مړ سو په

حبشه کي، ام حبيبه پر خپل اسلام قائمه وه او دې په حبشه کي داسي خوب ليدلی ؤ چي يو څوک دې ته وايي يا ام المؤمنين، نو دا په دې پوه سوه چي عليه الصلوة والسلام به ما په نکاح کړي، نو عليه الصلوة والسلام چي د دې د مېړه په ارتداد خبر سو او د دې د بقاء پر اسلام، نو عليه الصلوة والسلام د محرم الحرام په مياشت کي چي شروع د سنه (٧) هجري وه نجاشي ملک الحبشه ته يې خط واستاوه چي نجاشي که څه هم اول نصراني ؤ لکن په وخت کي د قيام د جعفر بن ابی طالب په حبشه کي په کوشش د جعفرؓ يې ايمان راوړی، مضمون د خط دا ؤ چي ته ما ته ام حبيبهؓ په نکاح راوغواړه، نجاشي هم هغسي وکړه او څلور سوه ديناره يې ولور دې ته ورکړی، او د حبشې څخه چي جعفر بن ابی طالبؓ سره د ملګرو مدينې ته راستانه کېدل ام حبيبهؓ يې ورسره کړه.

قصة فتح واد القری: راوي وايي لما انصرف رسول اللهﷺ من خيبر الی وادي القری دعوت يې ورکړی و اهل ته د وادي القری و اسلام ته، نو هغو منع وکړه د اسلام څخه نو عليه الصلوة والسلام فتح کړه دغه وادي عنوة (په زور د توري او په غنيمت يې څني واخستل هغه بهترين مالونه د دوی من اثاث البيوت) او نور کتهور شيان د دوی، نو عليه الصلوة والسلام هغه اموال پنځه حصې کړه لکه غنائم د خيبر او مځکه يې په لاس کي د يهودانو پرېښول وعاملهم مثل ما عامل اهل فدک کما مر.

﴿وَأُخْرَىٰ لَمْ تَقْدِرُوا عَلَيْهَا قَدْ أَحَاطَ اللَّهُ بِهَا﴾

(واخری منصوب دی عطف دی علی مغانم کثيرة يعني وعدکم الله مغانم اخری) تاسي قدرت نه درلودی پر هغو مغانمو (والمراد بها مغانم فارس والروم وما کان العرب يقدر علی قتال فارس والروم "لم تقدروا عليها" صفت د اخرٰی دی) "قد احاط الله بها علمًا" چي احاطه کړې وه پر هغو غنائمو علم د خدایؒ، دا جمله بل صفت دی د اخرٰی. ولي چي خدایؒ ته هر شی اسانه دی که څه هم دوی ته ګران وي. کذا قال ابن عباسؓ والحسن ومقاتلؒ، و قال قتادةؒ هي فتح مکة، وفيه ان في فتح مکة ليست غنائم، وقال مجاهد المراد بها کل ما فتح الله عليهم بعد ذالک چي علم د خدایؒ د هغو پر فتح تاسي ته محيط ؤ چي پر تاسي بې فتح کوي.

وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرًا ﴿۲۱﴾

او دی خدای پر هر شي قادر که څه هم تاسي قدرت نه پر لرئ.

وَلَوْ قٰتَلَكُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوَلَّوُا الْاَدْبَارَ ثُمَّ لَا يَجِدُوْنَ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ﴿۲۲﴾

او که ستاسي سره يې جنګ کړی وای يعني من اهل مکة د حديبيې په کال او صلح يې نه وای کړې (کما مر تفصيله) هر آئينه شاوي به يې در ګرځولي وای (يعني شکست او ماته به يې په نصيب سوې وای) وروسته به دوی نه وای پيدا کړی دوست چي ستاسي څخه دي دوی خلاص کړي وای، او نه کومک کونکی چي ددوی حمايت دې کړی وای.

سُنَّةَ اللّٰهِ الَّتِيْ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلُ ۖ وَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّةِ اللّٰهِ تَبْدِيْلًا ﴿۲۳﴾

هغه سنت دی د خدای قديمًا في الامم السابقة تر کفارو د مکې د مخه، هرګز نسي پيدا کولای عادت او سنت لره د خدای تغيير او تبديل لانه تعالى الآن کما کان في القدرة على الامور کلها والصفات الجلالية والجمالية بتمامها.

وَهُوَ الَّذِيْ كَفَّ اَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ وَاَيْدِيَكُمْ عَنْهُمْ بِبَطْنِ مَكَّةَ

**پوه سه:** چي بيان دی د احسان د خدای د مسلمانانو سره په حديبيه کي.

ترجمه: خدای هغه ذات مقتدر محسن دی چي بند يې کړه لاسونه ددوی يعني کفار مکه د تاسي څخه او بند يې کړه ستاسي لاسونه ددوی څخه ببطن مکة په داخل د مکې (يعني په داخل د حرم د حدودو چي د حديبية بعض اطراف د حرم په حدود کي داخل کما روی چي د عليه الصلوة والسلام او د اصحابو خيمې دباندي تر حدود د حرم وي او لمونځونه به يې په حدود کي د حرم کول)

مِنْ بَعْدِ اَنْ اَظْفَرَكُمْ عَلَيْهِمْ ۭ

وروسته تر دې چي تاسي ته يې بری درکړی پر دوی لکه د مخه چي تېر سو حديث د انس چي اتيا (۸۰) کسه وه او په بعض رواياتو کي اوويا (۷۰) کسه وه د مکې والو د جبل تنعيم د خوا لپاره د حملې پر لښکرو د عليه الصلوة والسلام د شپې راکښته سوي وه، د محمد بن مسلمة له خوا چي د څو صحابه وو سره يې پهره داري پر غاړه درلوده، نو رسول الله ﷺ تول ونيول. فنزلت هذه الآية، او په

حدیث د عبد الله بن مغفل خرج علينا يعني من مكة (۳) ځوانان يعني د کافرانو.
درویش وايي: چي دد ې دواړو حدثونو جمع ممکنه ده لاحتمال تعدد الواقعة.

وَكَانَ اللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرًا ﴿٢٤﴾

يعني فيجازي كلا على حسب ما فعل.

**پوه سه:** چي ابو عمرو يې په ياء د غيبت وايي چي ضمير يې راجع و کفارو ته دی او نور قاريان يې په تاء د خطاب وايي چي خطاب و مؤمنانو ته دی.

هُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَالْهَدْيَ مَعْكُوفًا أَنْ يَبْلُغَ مَحِلَّهُ

اهل مکه چي دي هغه کسان دي چي شرک او کفر يې کاوه او تاسي مؤمنان يې منع کړي واست د مسجد الحرام څخه يعني د بيت الله شريفي څخه چي تاسي طواف پر وکړئ يعني طواف العمرة په کال د حديبيه کي.

**پوه سه:** چي ''الهدی'' هغه اوښ يا بقر يا شات ته وايي چي مکې مکرمې ته يې په نيت د هديې راوستلې وي يعني د هديه هم مانع وګرځېدل ''معکوفًا'' ای ممنوعًا محبوسًا ''ان يبلغ محله'' چي ورسېږي خپل ځای ته چي په هغه ځای کي هدايا ذبح کېږي يعني مکه.

**پوه سه:** چي ان يبلغ بدل اشتمال دی من الهدی او يا منصوب په نزع د خافض دی (يعني حرف جر چي جر يې حذف کړی نو فعل ګويا د متعدي سو بلا واسطة)

**درویش وايي:** چي دا معنی د منصوب بنزع الخافض ده په نحو کي فلا يتوهم ان نزع الخافض ای حرف الجزء كيف يوجب النصب تدبر، والتقدير ههنا محبوس من ان يبلغ مكانه الذي يحل فيه نحره.

وَلَوْلَا رِجَالٌ مُؤْمِنُونَ وَنِسَاءٌ مُؤْمِنَاتٌ لَمْ تَعْلَمُوهُمْ أَنْ تَطَئُوهُمْ

او که نه وای نران مؤمنان او ښځي مؤمنات چي تاسي يې نه پېژنئ باعيانهم يعني په معين ډول، ولي چي کفار او دوی سره ګډ وډ دي ''لم تعلموهم'' صفت دی د رجال او نساء، تاريخ وايي: چي په مکه مکرمه کي مجموع نر او ښځي (۷۲) وه چي دوی ايمان پټ ساتلی و له کافرانو څخه ''تطواهم'' بدل اشتمال دی يا د رجال او نساء يا له ضمير څخه د هم.

**پوه سه**: چي وطاء اصلاً تر پښو لاندي کېدو ته وايي لکن دلته ذکر ملزوم مراد ځني لازم دی ای تهلکوهم، ولي د پښو د لاندي کېدو سره هلاک لازم دی کما في قوله عليه الصلوة والسلام اللهم اشدد وطئتک علی مضر (ای هلالک علی مضر د قبيلې نوم دی)

**فائده**: جواب د لو لا محذوف دی اعني عنه جواب لو والمعنی لولا کراهة ان تطؤ المؤمنين والمؤمنات عن نصرنا لکم وغلبتکم عليه، لعذبنا الذين بالقتل والاسر، په قتل ددوی او بندي کولو.

فَتُصِيبَكُم مِّنْهُم مَّعَرَّةٌ بِغَيْرِ عِلْمٍ

"فتصيبکم" عطف دی پر تطوئهم "منهم" يعني له سببه ځنې د هلاک د هغو مسلمانانو ستاسي د خوا "معترة" په پښتو وايي پېغور يعني مشرکان د مکې يا نور کافران به پېغور درکوي چي خپل مسلمانان مو وژله، ابن زيد وايي معناه اثم گناه د فان قتل الخطاء لايخلو من اثم يدل عليه وجوب الکفارة وفي المفردات معناه الجرب چي په پښتو يې گرگ بولي چي تو له بدن ته يې سريان کوي، واطلق ههنا علی مطلق المضرة "بغير علم" بيله ستاسي د علم، متعلق دی په ان تطؤهم يا په تصيبکم پوري.

لِّيُدْخِلَ اللَّهُ فِي رَحْمَتِهِ مَن يَشَاءُ

متعلق دی په محذوف پوري چي د سباق څخه د کلام فهمېږي ای کان ذالک من دخول مکة عنوة (په زور او جنگ) "في رحمته" ای دينه في الدنيا وجنته في الآخرة "من يشآء" هغه څوک چي د خدای ورته اراده سي، ولي په کال د فتح د مکې ډېرو مشرکانو ايمان راوړی، وقبل ذالک يعني د حديبيه په صلح کي چي لس کاله جنګ بندي وه د عليه الصلوة والسلام او د قريشو تر منځ، او آمد ورفت په مابين کي د مکې او مدينې تر مابين جاري ؤ کمامر قبل ذالک فتذکر، او يا معنی داده چي داخل کړي ضعيفه مسلمانان د مکې په رحمت کي د دنيا ای العافية وطول البقاء (يعني ژوند)

لَوْ تَزَيَّلُوا لَعَذَّبْنَا الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا

که هغه مسلمانان جلا سوي وای د کافرانو څخه مونږ به په عذاب کړي وای هغه کسان چي کافران وای د اهل مکه په سخت عذاب ای بالقتل.

إِذْ جَعَلَ الَّذِينَ كَفَرُوا فِي قُلُوبِهِمُ الْحَمِيَّةَ حَمِيَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ

او بنديان چي ګرځولي يې وه هغه کسان چي کافران وه يعني مشرکی مکة (ظرف يعني اذ متعلق دی په صدوکم پوري يا متعلق دی په عذبنا پوري) "الحمي" يعني بېځايه غيرت، چي رسول اللهﷺ او مؤمنان د طواف څخه د کعبة الله منع کړه او انکاريې وکړی د بسم الله الرحمن الرحيم له کتابت څخه په صلح نامه کي، وانکر عن رسالة رسول اللهﷺ حين قال لعلي اکتب هذا ما صالح عليه محمد رسول الله، وقال مقاتل قال اهل مکة قد قتلوا (اى المؤمنين) ابنائنا و اخواننا اوس دوی داخلېږي زموږ ښار مکې ته، نور عرب به وايي چي په زوره مؤمنان داخل سوه مکې ته واللات والعزی چي لات او په عزی دي زموږ قسم وي چي دوی نسي داخلېدای مکې ته.

**بوه سه:** چي "حمية الجاهلية" بدل دی من الحمية، يعني هغه بې ځايه غيرت دغه ته وايه چي د جاهليت په وخت کي اهل مکة درلودی.

فَأَنْزَلَ اللَّهُ سَكِينَتَهُ عَلَىٰ رَسُولِهِ وَعَلَى الْمُؤْمِنِينَ

(عطف علی جعل) نازل کړه خدای پر دوی په توفيق د خدای الثبات والوقار پر خپل دين السلام والصلح يعني د کفارو د مکې ضرر دوی ته نه ورسېدی بلکي صلح يې ورسره وکړه ورضوا بکتاب الصلح کمامر علی ما ارادوا. والمراد في الآية حسن صنيع المؤمنين بتوفيق الله تعالى وسوء صنيع اهل مکة حيث اختاروا حمية الجاهلية سره ددې چي د صلح بعض شرطونه د عمومي مسلمانانو له خوا ناچېه وه لکن بيا هم د امر نبوي متابعت يې وکړی بمقتضى بيعة الرضوان کمامر بيانه فتدبر.

وَأَلْزَمَهُمْ كَلِمَةَ التَّقْوَىٰ

او د دوی سره خدای لازمه وګرځول کلمه د تقولی، ابن عباس، مجاهد، قتاده، الضحاک، عکرمه، ابن زيد او السدي رحمهم الله او اکثره مفسرين وايي چي کلمة التقوی لآ اله الا الله والله اکبر ده. او عطاء ابن ابی رباح وايي چي کلمة التقوی لآ اله وحده لاشريک له له الملک وله الحمد وهو علی کل شيئ قدير، او عطاء الخراساني وايي چي کلمة التقولی لآ اله الا الله محمد رسول الله ده، والزهري وايي چي بسم الله الرحمن الرحيم ده.

**پوه سه:** چي مآل د دې تفاسيرو يو دی ولا يخفی ان زيادة الخير خير.

**فائده:** اضافة د كلمة و تقوی ته لانها سبب للتقوی و اساسها.

## وَكَانُوٓا اَحَقَّ بِهَا وَاَهۡلَهَا ؕ

دوی حقدار د كلمة د تقوی تر كافرانو د مكې، او اهل د كلمة التقوی وه يعني في علم الله الازلي او دې سببه خدای دوی يعني صحابه كرام مختاره كړه لپاره د حمايت د دين خپل و صحبة رسولهﷺ، روافض خذلهم الله وايي چي بعض صحابهﷺ كافران سوي دي، دا آيت كافي دی په رد كي د مذهب د دوی لقد رضی الله عن المؤمنين اذ يبايعونک تحت الشجرة فعلم ما في قلوبهم.

## وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَیۡءٍ عَلِيۡمًا ۝

او دی خدای خبر په هر شي و من جملته ما اضمر الصحابة من الايمان وحب رسول الله، راوي د قصة الفتح وايي چي په حديبيه كي چي صلح د عليه الصلوة والسلام او اهل مكه تر مابين وسوه او مؤمنان مدينې ته راهي سوه كما مر قال الصحابة ''اين رؤياک؟'' څرنګه سو هغه ستا خوب؟ نو دا آيت نازل سو.

## لَقَدۡ صَدَقَ اللّٰهُ رَسُوۡلَهُ الرُّءۡيَا بِالۡحَقِّ

كلمة اللام جواب لقسم محذوف.

**فائده:** په آيت كي لفظ د ماضي راوړه سو لكن مراد څني مستقبل دی يعني په راتلونكي كال كي وانما عبر بالماضي مع ان المراد به المستقبل ليدل على تحققه البتة ''بالحق'' ای متلبسًا بالحق ای الحكمة البالغة وهي التمييز بين الثابت على الايمان والمتزلزل فيه.

## لَتَدۡخُلُنَّ الۡمَسۡجِدَ الۡحَرَامَ اِنۡ شَآءَ اللّٰهُ اٰمِنِيۡنَ

چي تاسي به خامخا داخلېږئ و مسجد حرام ته.

**درويش وايي:** چي ابن كيسان وايي چي دا آيت قول د رسول اللهﷺ دی و اصحابو ته چي دوی پوښتنه څني وكړه فاين رؤياک.

''ان شاء الله'' كه د خدای مشيت او اراده وه په داسي حال كي چي په امن كي

په یاست د اهل مکه له خوا څخه، نو آمنین حال دی له فاعل څخه د لتدخلن، وجملة ان شاء الله معترضة في مابين حال او ذي الحال.

**پوښتنه:** د رسول اللهﷺ خو دا یقین ؤ چي داغسي به کېږي، نو کلمه د ان چي د شک په ځای کي استعمالېږي څرنګه راوړه سوه؟

**ځواب:** دا کلمه لپاره د تأدب بآداب الله روا ړه سوه، قال الله عزوجل ولا تقولن لشيئ اني فاعل ذالک غدًا الا ان شا الله (ای الا مقرونًا بقوله ان شاء الله) او بعض مفسران اعني ابو عبیدهؒ دد ې سوال په جواب کي داسي ویلي دي چي ان په معنی د اذ دی، نو معنی یې داده اذ شاء الله، او الحسین بن الفضیلؒ وایي چي کېدای سي چي استثناء له دخول څخه وي ولي چي په مابین کي د رؤیا د نبيﷺ او د دخول د مکې پوره یو کال تېر سو او په دې یوه کال کي د نزول د دې آیت یعني لتدخلن بعض حاضرین وفات سوي وه، نو معنی د آیت داده چي هر یو ستاسي به داخلېږي مسجد الحرام ته ان شاء الله تعالی یعني کلمه د ان لپاره د شک ده، ولي چي ژوند د ټولو حاضرینو تر بل کاله پوري مشکوک دی فتدبر غاية التدبير.

**مُحَلِّقِينَ رُءُوسَكُمْ وَمُقَصِّرِينَ لَا تَخَافُونَ**

یعني بعض کسان د احلال د عمرې په وخت به ټوله سر وخریي او بعض به قصر د بعض وېښتانو د سر وکړي لکن حلق افضل دی اقتداء برسول اللهﷺ ولهذا قدم الحلق على القصر في الآية، دا دوه لفظه حال دي له ضمیر څخه د آمنین او بعض مفسران وایي چي حال دي له فاعل څخه د لتدخلن.

**سوال:** په نحو کي وایي چي زمانه د حال او د عامل د ذی الحال به یوه وي دلته زمانه د حلق یا د قصر وروسته ده تر دخول د مکې؟

**ځواب:** داسي حال ته په نحو کي حال مقدره وایي فالمعنى لتدخلن مفروضًا حلقکم وقصرکم کما في قوله تعالى في حق اهل النار فادخلوها خالدين فيها ای مفروضًا خلودکم فيها وقت الدخول "لاتخافون" (حال مؤکدة دی د لآمنين يعني لاتخافون بعد ذالک) خدایؑ خبر دی.

فَعَلِمَ مَا لَمْ تَعْلَمُوْا فَجَعَلَ مِنْ دُوْنِ ذٰلِكَ فَتْحًا قَرِيْبًا ﴿۲۷﴾

**پوهه:** چي "فعلم" عطف دی پر مقدر والفاء للسببية، والتقدير اخر دخول مكة فعلم من الحكمة في التاخير "مالم تعلموا" چي تاسي پر هغه حكمت في التأخير علم نه درلودی "فجعل" عطف دی پر اخر مقدر باندي "من دون ذالک" ای دخول المكة "فتحًا قريبًا" يعني فتح خيبر كمامر، او يا صلح الحديبية فانه فتح ايضًا. حيث رضى المشركين بالصلح بعد الاعداد للقتال كما مر تفسير كلا الفتحين.

هُوَ الَّذِيْٓ اَرْسَلَ رَسُوْلَهٗ بِالْهُدٰى وَدِيْنِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهٗ عَلَى الدِّيْنِ كُلِّهٖ

خدای ﷻ هغه خدای دی چي را استولی يې دی خپل رسول يعني محمد ﷺ متلبس په هدايت سره او يا معنی داده لاجل الهداية، او دين الحق چي اسلام دی چي غالب يې وګرځوي پر جنس اديانو يعني په تسليط المسلمين على اهل الاديان كلها في وقت من الاوقات، او يا معنی داده چي حق اديان به تول منسوخ سي يعني ما يقبل النسخ من العمليات دون المعتقدات الحقة كالتوحيد والبعث بعد الموت وغير ذالک. فقير وايي چي د حقه قيد ووايه، ولي چي په معتقدات كي بعض باطل معتقدات سته لكه عيسى ابن الله او ثالث ثلثة، يا عزير ابن الله يا اعتقاد دی لن يدخل الجنة الا من كان هودًا لكه يهودان چي وايي، او يا "نصارى" لكه نصارى چي وايي الى غير ذالک من معتقدات هؤلاء فافهم، لكن دين د اسلام هغه معتقدات زائغه كما ذكرنا امثلتها بالحجج والبينات سره د هغو بطلان په ډاګه كړی والله اعلم بمراده في كتابه.

وَكَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا ﴿۲۸﴾

**فائده كليه:** هر ځای چي د كفى وروسته باء راسي په قرآن كريم كي هغه زائده ده لان كفى متعد بنفسها لكن لمراعات لسان العرب باء راوړل كېږي.

**پوهه:** چي شهيدًا يا حال دی د لفظ الله څخه يا تمييز دی د نسبت څخه د كفايت و خدای ﷻ ته، نحات وايي: چي تميز د نسبت و فاعل ته په معنی كي د فاعل دی والمعنى كفى الله شاهدًا على تقدير الحالية من الله او كفى شهادة الله على تقدير التميز من النسبة وعلى كل تقدير كافي دی شهادت د خدای ﷻ على ما وعد

من الفتح او علی رسالة رسوله باظهار المعجزات علی یدیه.

**فائده:** په دې آیت کي تاکید دی د لما وعد من دخول المسجد الحرام وکلتاهما تائیدان دي لقوله تعالی انا فتحنا لک فتحا مبینا.

مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ ۚ وَالَّذِيْنَ مَعَهٗٓ اَشِدَّآءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ

اعراب: ''محمد رسول الله'' دا جمله بیان د مشهود به ده ''والذین معه'' معطوف علی محمد وما بعده یعني ''اشداء علی الکفار'' او داسي اعراب هم ممکن دی چي رسول الله دي صفت د محمد وي او دادي خبر د مبتداء محذوف وي، والتقدیر ای هو الذي ارسله بالهدی محمد.

وترجمة الآیة: محمد رسول الله او هغه کسان چي دده سره دي سخت تر دي پر کفارو یعني زړه سوی نه پر لري امتثالاً لامر الله تعالی حیث قال یا ایها النبي جاهد الکفار والمنافقین واغلظ علیهم، وقال ومن یتولهم منکم فانه منهم.

**درویش وایي:** چي مظهري چي دا آیت په مثال کي راوړی دی لاتأخذکم بها رافة في دین الله، فسهو لان الآیة المذکورة في اجراء حد الزنا علی الزانیة والزاني کما یدل علیه ضمیر التثنیة.

''رحمآء بینهم'' مهربانه وي په خپل مابین کي حباً لله ورسوله فان محب المحبوب محبوب یعني د سړي د محبوب محبوب دی د سړي یعني دوی د خدای او د رسول سره محبت لري نو دوی په خپل مابین کي هم محبت سره لري.

في الحدیث القدسي این المتحابون (یعني خدای به وایي چېري دي هغه کسان چي یو د بل سره یې محبت کاوه یعني په دنیا کي) في جلالي (زما د جلال د سببه یعني د یو چا چي به زما سره محبت ؤ بل سړي په دې سبب چي دا محب الله دی د هغه سره محبت کاوه وبالعکس یعني د دنیا په سبب یې محبت نه ور سره کاوه) الیوم تظلهم تحت ظلي (ای رحمتي) یوم لاظل الا ظلي (ای ظل رحمتي)

**درویش وایي:** چي ما د ظل تفسیر په رحمت سره وکړی لان المتعارف لایکون الا للاجسام والله تعالی لیس بجسم حتی یکون له ظل متعارف چي په پښتو یې سایه بولي.

**فائده:** په دې آيت کي رد دى پر روافضو چي دوى وايي چي اصحاب د رسول الله ﷺ به يو د بل سره عداوت درلودى.

## تَرٰىهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا

ته دوى وينې يا محمد (ﷺ) "رکعًا سجدًا" جمع د راکع او د ساجد ده، چي مراد ځندي لمونځونه دي تعبيرًا عن الكل بالجزء يعني يشتغلون بالصلوات في كثير من الاوقات اعم من الفرائض والواجبات والسنن والنوافل لان الصلوة معراج المؤمنين، دا دوه لفظه حال دي مترادف د ضمير منصوب څخه د تراهم.

## يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانًا سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِمْ مِّنْ أَثَرِ السُّجُودِ

دوى طلب کاوه په دې کثرت اشتغال بالصلوة د فضل او احسان د خداى په اخرت کي چي ثواب او جنت دى ورضى الله عزوجل ورؤية الله تعالى "ورضوانًا" او رضٰى د خداى عزوجل. علامه د دوى په مخانو کي د دوى له تاثير څخه د كثرة السجود، بعض مفسرين وايي چي دا سيما او علامه بياض او نور دى په مخانو کي د دوى په ورځ کي د قيامت يعرفون بها انهم كثر والصلوة في الدنيا، دا روايت د عوفي دى عن ابن عباسؓ، او عطاء بن ابى رباح او الربيع بن انسؒ وايي: بربښي مخان د دوى په دنيا کي من كثرة السجود او شهر بن حوشبؒ وايي يكون مواضع السجود منهم اى وجوههم كالقمر ليلة البدر يعني في الآخرة وقال قوم هو السمت الحسن والخشوع والتواضع وهو رواية الوالبيؒ عن ابن عباسؓ وهو قول مجاهدؒ وقال الضحاکؒ صفرة الوجه من السهر (ژړوالى د رنګ دى له سببه د بدخوابى) يعني شپه په بدخوابى تېره کړي په تهجد کي سهاريي مخ ژړ وي، او الحسنؒ وايي چي ته دوى وينې په خيال مريضان د رراځي او مريضان نه وي، او سعيد بن جبيرؒ وايي هو اثر التراب على الجبهة. دا د دې سببه چي دوى به سجده پر خاورو کوله نه قالين يا سترنجي يا دسمالۇ لکه په اوسنى زمانه کي.

## ذٰلِكَ مَثَلُهُمْ فِي التَّوْرٰىةِ ۚ وَمَثَلُهُمْ فِي الْإِنْجِيلِ ۚ كَزَرْعٍ أَخْرَجَ شَطْأَهُ فَآزَرَهُ

دغه ۇ حال او امثال د دوى په تورات کي چي د نبي اخير الزمان د امت بعض کسان د غسي سيما لري، تر دې ځايه پوري کلام تام سو، كذا قال البغويؒ په

وروسته آيتو كي خداى عزوجل بيان د حال د امت محمديه په انجيل كي بيانوي په انجيل كي "ومثلهم في الانجيل" او حال د دوى په انجيل كي، دا مبتداء ده خبر يې دادى "كزرع" لكه كښت اى لكه حال د كښت زرع موصوف دى صفت يې دادى "اخرج شطأه" چې راوباسي د تخم څخه شنه وابښه.

**بوه سه:** چي ضمير مستتر په ازره كي راجع و زرع ته دى اى فقوى ذالك الزرع ذالك الشطاء، و بالفارسية پس قوى كرد كشت آن يك شاخ را، وبالافغانية: وروسته كښت لوى كړى هغه يو شين وابښه چې د مځكي څخه راوتلى ؤ.

فَاسْتَغْلَظَ فَاسْتَوٰى عَلٰى سُوْقِهٖ يُعْجِبُ الزُّرَّاعَ

"فاستغلظ" بمعنى صار غليظا بعد ماكان دقيقًا، وروسته سم ودرېدى پر خپلو پونډيو "سوق" جمع د ساق ده، والجمع باعتبار ان الخارج من الارض من حبة واحدة نباتات "يعجب الزراع" اى حالكونه اى ددې كښت چي په تعجب او سرور كي اچوي كښته ګاران ددې كښت په سبب د كثافت د كښت (يعني ګڼوالي د ښاخو د كښت) وحسن منظره وطول قامته وبالفارسية بشګفت مى أورد زارعان را.

**بوه سه:** چي زراع جمع د زارع ده، دا دوه مثاله چي خداى پاک راوړه د اصحابو د محمد ﷺ لكن مثال يې صادقيږي پر غير د صحابه ؤ ﷺ ايضًا من خيار امته والثاني مختص بالصحابة ﷺ لايشارك فيه غيرهم، فان الله ارسل محمدا ﷺ وحده فهو كالزراع چي تخم د اسلام په مځكه كي وكري، فامن به ابوبكر وعلي وبلال ﷺ ورجال متعدون، وروسته تر دې درو منهم عثمان بن عفان وطلحة بن عبيدالله والزبير وسعد وسعيد وحمزة بن عبد المطلب وجعفر بن ابى طالب ﷺ، حتى كان ايمان عمر ﷺ متمم اربعين رجلاً، يعني په عمر ﷺ څلوېښت مسلمانان پوره سوه حتى نزل قوله تعالى: يا ايها النبي حسبك الله ومن اتبعك من المؤمنين فكان الاسلام في ابتداء الامر غريبًا وكان كفار مكة في غاية الكثر حتى كادوا انيكونون عليه (اى على الاسلام لبدًا لولا حماية الله تعالى فازره الله المجاهدين الصحابة من المهاجرين والانصار ﷺ حيث سقوا زرع الاسلام بدمائهم في حيوة النبي ﷺ وبعد د وفاته لاسيما في خلافة ابى بكر وعمر ﷺ فاستوى دين الاسلام على سوقه وظهر على الدين كله واستغنى الدين عن حماية

غيرهم حتى قال الله تعالى اليوم اكملت لكم دينكم واتممت عليكم نعمتي ورضيت لكم الاسلام دينًا، وقال عليه الصلوة والسلام لايجتمع امتي على الضلالة، وايضًا قال رسول الله ﷺ لايزال من امتي طائفة قائمة لايضرهم من خذلهم (چي د دوی سره مرسته نه کوي) ومن خالفهم.

**درويش وايي**: چي د خصوصيت په درلودلو سره صحابه رض مخ مخ دي په ميدان کي د فضل على سائر الامة حتى چي هيڅ د افاضلو څخه د امت درجې ته د يوه د دوی هم نسي رسېدلای حتى قال رسول الله ﷺ لاتسبوا اصحابي (زما اصحابو ته ښکنځل مه کوئ او بد مه پر وايا ست) که يو ستاسي په لار کي د خدای صرف کړي مثل احد سره زر، نسي رسېدلای و انفاق ته د يو مد د اصحابو ولا نصيفه. متفق عليه من حديث ابی سعيد الخدري رضي الله عنه.

**درويش وايي**: چي فضائل د صحابه رض عمومًا وخصوصًا ونقلاً وعقلاً په کتاب کي په نامه د السيف المسلول جمع کړل سوي دي كذا قال المظهري رح.

لِيَغِيظَ بِهِمُ الْكُفَّارَ

چي په غم او غصه کي خدای واچوي په سبب د مسلمانانو کافران، انس بن مالک رض وايي که څوک وګرځوي په زړه کي بغض د اصحاب الکرام رض يعني عمومًا يا خصوصًا تر دې آيت لاندي راځي يعني ليغيظ بهم الکفار فافهم، او نور احاديث صحيحه په فضائلو د صحابه کرامو رض ډېر دي چي و حد ته د تواتر معنوي رسېږي.

وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ مِنْهُم مَّغْفِرَةً وَأَجْرًا عَظِيمًا ۝

وعده کړې ده خدای د هغو کسانو سره چي ايمان يې راوړی او عمل صالح يې هم کړی وي د مغفرت د ګنهو او ثواب لوی، اللهم اجعلنا منهم بمحض و کرمک و وفقنا الله تعالى للسلوک على مسالک کراماتهم امين. قال المظهري انعقد الاجماع على ان الصحابة رضي الله عنهم کلهم عدول وکلهم مغفور لهم.

**درويش وايي**: چي د دوشنبې په ورځ پر څلور بجې پنځلس دقيقې بالا پر شلم د شوال تخمينًا سنه (۱۴۳۲) هجري تفسير د سورة الفتح پای ته ورسېدی بتوفيق الله لهذا العبد الضعيف المعمر (۹۸) كاله.

سُوْرَةُ الحُجُرٰتِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ ثَمَانِيْ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ عَشْرَةَ اٰيَةً وَّفِيْهَا رُكُوْعَانِ

الحمد لله حمدًا كثيرًا ونسبحه تسبيحًا جميلاً ونصلي ونسلم على رسوله المجتبى وحبيبه المصطفى صلوة وسلامًا يليقان بذاته الأعلى وعلى آله وصحبه الاتقياء ونشرع الآن في السدس الآخير من ليلة الثلثاء في شهر شوال من شهور سنه (۱۴۳۲) هجري، بتفسير سورة الحجرات ان شاء الله تعالى.

رب سهله على وتممه بالخير والعافية والصحة انک يا مولاى على كل شيئ قدير وبالاجابة جدير.

روى البخاري وغيره من طريق ابن جريج عن ابن ابى مليكة ان عبد الله بن الزبير اخبره چي راغله يو ځو سپاره د بني تميم څخه ورسول اللهﷺ ته يعني د دې لپاره چي مونږ ته يو امير را وټاکه، فقال ابوبکرؓ چي امير القعقاع بن سعيد ور وټاکه، او عمرؓ ورته وويل چي امير د دوى الاقرع بن حابس ور وټاکه، نو ابوبکرؓ و عمرؓ ته وويل: ته همېشه زما خلاف رايه ورکوې، عمرؓ وويل چي يا ستا د خلاف پر برابر مي نه دي ويلي بلکې الاقرع بن حابس اولى بالامارة دى په دې دوران کي د دوى دوو اوازونه سره پورته سوه، فنزلت هذه الآية.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُقَدِّمُوْا بَيْنَ يَدَيِ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ

اى هغه کسانو چي ايمان يې راوړى پر خداى او پر رسول د خداىؐ، په دې لفظ د آمنوا تنبيه ده پر دې چي مخاطب په دې وروسته ادابو سره مؤمنان دي چي تاسي وړاندي والى مه کوئ نه په فعل او نه په قول کي.

**پوه سه**: چي لفظ د يدين په معنى د جهتين دي الکائنتين چي په سمت کي د دوو لاسو د انسان وي وبين اليدين بمعنى بين الجهتين والجهة التي بينهما هي جهة القدام دى فقولک جلست بين يدي فلان بمعنى جلست امامه يعني بمکان يحازي يديه اى قريبًا منه او چي داسي وويل سي بين يدي الله امتنع ان يراد الجهة والمکان لامتناعهما على الله تعالى کما تقرر في علم الکلام فيکون هذه العبارة استعارة تمثيلية وهي کما بين في علم البيان تشبيه الهيئة المنتزعة من امور متعددة بهيئت منتزعة من اخرى بدون المجاز في المفردات ومثلوا لها

بقولک لرجل متحير في امر من الامور رئيتک تقدم رجلاً وتؤخر اخرى شبه ما وقع من بعض الصحابةؓ من انقطع في امر من الامور الدينية قبل ان يحكم به الله ورسوله كما قطع في ما ههنا ابوبكرؓ بامارة القعقاع بن معبد علي بن تميم وقطع عمرؓ بامارة الاقرع بن حابس علي بني تميم قبل ان يحكم الله ورسول (يعني دغه هيئت منتزعه من هذا المجموع په حال د هغه چا چي يوه پښه د مخه کړي او بله پښه ترشا کړي يعني په تګ او نه تګ کي سودايي وي، نو تعبيريې وکړی الحالة المشتبهة يعني في الآية بما يعبر عن الحالة المشبهة بها فتدبر جداً عسى الله ان يهديک الى فهم المراد في الآية المتلوة يعني لاتقدموا بين يدي الله ورسوله.

**پوښتنه:** تا خو په اول د خپل تفسير کي دا ويلي وه چي زما دا تفسير د پښتنو لپاره دی دا استعاره تمثيليه چي تا دلته بيان کړه عوام د پښتنو خو څه کوي بعض امامان د مسجدو هم نه په پوهېږي؟

**ځواب:** فقير خو فقط لفظ د پښتنو ويلي دی داسي مي نه دي ويلي چي د عوامو د پښتنو يا امامان د مسجدو اوس هم متبحر علماء د پښتنو په بيان د استعاره تمثيليه چي فقير په دې آيت کي وکړی دوی به په پوهېږي بلکې اميد لرم چي په احسنت يا عبيد الله به زما بيان بدرګه کړي... سعدي شيرازيؒ وايي:

**توگوى آنچه دانى سخن سودمند		وگرهيچ كس رانيايد پسند**

**د حـاسد کمـبله هـلته سوه راتوله**
**چي د عبيد تفسير قبول سو په جهان کي**

**هم يحسدوننى وشر الناس كلهم		من عاش يوماً غير محسود**

**فائده:** اصل مراد خو نهي دی د تقديم بين يدی رسول الله، او ذکر د لفظ د الله يعني اسم جليل لپاره د تعظيم د رسول اللهﷺ دی واشعاراً بان التقديم على رسول اللهﷺ کانه تقديم على الله عزوجل، ولي چي عليه الصلوة والسلام په مکان او مرتبه کي د قرب الى الله دی چي دده اجلال بايد وکړل سي، وسوء الادب معهٔ سوء ادب مع الله عزوجل،

**درويش وايي:** چي په بيان کي د بيعت رضوان مع رسول اللهﷺ في الحديبية خدای پاک داسي ويلي دي ان الذين يبايعونک انما يبايعون الله يد الله فوق ايديهم.

وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۚ اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ۝

او د خدای څخه وېرېږئ (في تضييع حقه وحق رسوله ومخالفة امرهما) په تحقيق خدای اورېدونکی د اقوالو ستاسي دی او خبر دی په نياتو ستاسي.

**درويش وايي:** چي امام مظهري" پر خلاف د شان نزول د دې آيت چي په اول ټولو مفسرانو او مظهري په خپله هم راوړی دی نور شان نزولونه له ځانه څخه په صرف ادنی مناسبت ذکر کړي دي، يا اختلاف د مذاهبو په هغو کي بيان کړی دی، مطالعه کونکي دي دده د تفسير (۴۰) صفحه د جزء (۲۶) د سورة الحجرات په تفسير کي مطالعه کړي والله اعلم.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَرْفَعُوْۤا اَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ

**پوه سه:** چي نداء لپاره د مزيد اهتمام ده په ما امر به سره.

ترجمه: ای هغه کسانو چي تاسي ايمان راوړی دی، تاسي مه پورته کوئ خپل اوازونه بالاتر اواز د نبي (ﷺ) يعني چي تاسي خبري ورسره کوئ.

وَلَا تَجْهَرُوْا لَهٗ بِالْقَوْلِ كَجَهْرِ بَعْضِكُمْ لِبَعْضٍ

والمعنی: لاترفعوا اصواتکم په حضور کي د عليه الصلوة والسلام، او ناري مه ورته کوئ لکه تاسي چي يو و بل ته ناري وهئ يا زيد يا عمرو يا فلان يا فلان يعني تاسي مه ورناري کوئ يامحمد، يا دا چي په اسم کنيه ناره ورته کوئ يا ابا القاسم، بل يجب عليکم تعظيمه وتکريمه في النداء ومراعات آدابه وخفض الصوت يعني په کښته اواز سره داسي نداء ورته کوئ يا رسول الله ﷺ يا نبي الله ونحو ذالک مثلاً يا حبيب الله.

اَنْ تَحْبَطَ اَعْمَالُكُمْ وَاَنْتُمْ لَا تَشْعُرُوْنَ ۝

ای کراهة ان تحبط آه، او لئلا يحبط اعمالکم چي که تاسي هغه منهي عنه في الآية السابقة وکړئ ستاسي عملونه به لغوه او بې ثوابه وګرځي.

**پوه سه:** چي دا علت د نهي قبلي دی لان رفع الصوت فوق صوت النبي ﷺ والجهر عليه استخفافًا يؤدي الی الکفر، فعاقبته لغوا لعمل اذا قصد الاهانة نعوذ بالله من ذالک، او که چېري اهانت هم قصد نه وي لا يخلو ذالک من عدم

المراقبة في آدابه فلا يخلو من الحرمان من بركات صحبته نو لامحاله عمل د صحبت خو بې فائدې سو ... بيت:

از خدا خواهم توفيق ادب　　　بى ادب محروم ماند از فضل رب

**پوه سه:** چي "وانتم لاتشعرون" حال دى له ضمير مجرور څخه في اعمالكم يعني حال كونكم لا تشعرون بحبط اعمالكم. محي السنة البغوي الشافعي المذهب وايي چي ابو هريرة او ابن عباس ﷺ وايي چي دا آيت نازل سو كان ابو بكر ﷺ خبري يې د رسول الله ﷺ سره نه كولې الا كآخى السرار (مگر نه لكه د پټو خبرو كونكى) وقال الزبير ؓ: څه وخت چي مخكنى آيت نازل سو فما كان عمر ؓ يسمع رسول الله ﷺ (نهٔ عمر ؓ چي خپلي خبري دې په رسول الله ﷺ اورېدلي واى يعني له سببه د غايت كرار والي حتى چي رسول الله ﷺ به پوښتنه ځني وكړه چي ته څه وايي) او بخاري ؤ مسلم په خپلو صحيح كتابو كي له انس بن مالك ﷺ څخه روايت كړى دى چي دا آيت چي نازل سو "يا ايها الذين آمنوا آه" ثابت بن قيس ﷺ په خپل كور كي كښېنستى يعني مسجد نبوي ته د جماعت لپاره نه ورتلى، او د نبي ﷺ ملاقات يې هم بند كړى. نو رسول الله ﷺ له سعد بن معاذ ﷺ څخه پوښتنه وكړه "يا ابا عمر ما شان ثابت بن قيس" يعني لما نځه ته ولې نه راځي آيا مريض دى؟ سعد ؓ ورته وويل چي ثابت بن قيس خو زما همسايه دى په ناجوړى يې زه نه يم خبر سوى. نو سعد بن معاذ ؓ د ثابت بن قيس ؓ كور ته ورغلى او هغه د عليه الصلوة والسلام قول يې ثابت ؓ ته بيان كړى. ثابت ؓ ورته وويل چي دا آيت يعني لاترفعوا اصواتكم آه چي نازل سو او تاسي ته ښه خبر ياست چي زه ارفع صوتًا وم چي د عليه الصلوة والسلام سره به مي خبري كولې. فانا من اهل النار. نو سعد ؓ د ثابت ؓ دا خبره عليه الصلوة والسلام ته ورسول. فقال عليه الصلوة والسلام بل هو من اهل الجنة. فرجع سعد ؓ ببشارة عظيمة الى قيس ؓ.

**پوښتنه:** عليه الصلوة والسلام ولي ثابت بن قيس ؓ په رفع الصوت كي معذور وګڼلى او علاوه پر دې زېرى د جنت يې هم وركړى؟

**ځواب:** ثابت بن قيس ؓ به طبعًا په زوره خبري كولې لا اختيارًا. و المراد في الآية المتلوة رفع الصوت اختيارًا دى فافهم. په يو بل روايت كي راغلي دي چي عليه

الصلوة والسلام مشافهة وثابت بن قيسؓ ته وويل اما ترضى ان تعيش حميدًا (چې پر تا به بنه ژوند تېر سي، يعني په عبادت کې د خدای) وتقتل شهيدًا چې قتل به سې په شهادت سره وتدخل الجنة فقال ثابتؓ رضيت ببشرى الله ورسوله.

**درويش وايي:** چې دا غسې پر ثابتؓ بنه ژوند په عبادت کې تېر سو او په يوه غزاء کې شهيد هم سو، او دخول د جنت يې په اخيرت هم متيقن دی په اخبار د صادق مصدوق عليه الصلوة والسلام په اخير کې ثابتؓ لا ارفع صوتى على رسول النبي ﷺ ابدًا فانزل الله الآية ان الذين آه چې وروسته به ذکر سي. لکن دلته يو سوال سته جواب طلبه چې تا دمخه وويل چې ثابت بن قيسؓ رفيع الصوت وُ طبعًا، نو دلته ثابتؓ څرنګه وايي لا ارفع صوتى على رسول الله ﷺ ابدًا؟

**جواب:** د ثابتؓ غرض دا وُ چې زه خپله طبع په جد او جهد سره چې رفع د صوت وه بدله کړم چې د رفع الصوت واګې به اختيار ته په لاس ورکړم.

إِنَّ الَّذِينَ يَغُضُّونَ أَصْوَاتَهُمْ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ

په تحقيق هغه کسان چې کښته کوي اوازونه خپل په نېز د رسول الله ﷺ د تعظيم او اجلال د ده.

**بوه سه:** چې موصول سره د صله اسم د ان دی او خبر يې دا قول د خدای ﷻ دی.

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ امْتَحَنَ اللَّهُ قُلُوبَهُمْ لِلتَّقْوَىٰ

اولئک مبتداء ده خبر يې الذين آه دی، او دا جمله ټوله خبر د ان الذين ده، فتدبر. ترجمة الآية دغه کسان دي چې خدای عزوجل امتحان کړي ذي زړونه د دوی لپاره د تقوی، په قاموس کې وايي ای شرحها ووسعها او په هغه قاموس کې وايي اختبرها، او بيضاوي وايي ای جربها للتقوى يعني عاملها معاملة المختبر (ددې تفسير يعني عاملها فائده داده چې خدای پاک و امتحان ته د عبادو ضرورت نه لري لانه عالم الغيب والشهادة لکن معاملته تعالى معاملة المختبر يعني لکه يو څوک چې د بل چا امتحان په تکاليفو شاقهٔ سره اخلي فوجدها مخلصة، او بعض مفسرين يې داسې تفسير کوي ضرب الله قلوبهم بانواع المحن والتکاليف الشاقة لاجل ظهور تقواهم. ولې چې حقيقت تقوی نه ښکاره کېږي مګر په صبر سره پر تکاليفو ... بيت: — بر فلک بر تر بود اسرار او شيئًا لله شيئًا کار او

**حکایت:** د حسن بصري رحمه الله په زمانه کي یوه فقیره ښځه وه چي د مسلمانانو په کورو به ګرځېدله، خپل او خپل د عیال کفاف به یې برابراوه، لکن د دې زړه په دې ډېره خوشحاله کېدی چي چا به ورته وویل خدای دې درکړي، یعني شی به یې نه کړی ور، له دې سببه چي د دې په زړه کي دا عقیده وه چي د دې کور پر خدای ﷻ حواله درکړه د خدای شان لوړ دی ماته په اخرت کي ښه عوض راکوي، خیر څه مده وروسته دا فقیره مړه سوه، نو یو شپه حسن بصري په خوب کي ولیدله چي په ښه لباس سره ملبوسه وه او په ښه کوټیو کي خرامانه ګرځېدله، حسن ورته وویل چي ته فلانۍ نه یې چي د ودی به دي تولوله؟ هغې ورته وویل چي هو زه هغه فقیره یم، الحسن ورته وویل چي دې درجې ته څرنګه ورسېدې؟ دې ورته وویل چي زه چي په قبر کي ښخه کړل سوم ملکي راغلې اول خو یې هغه عمومي پوښتنې راڅخه وکړې من ربک ومن نبیک ومادینک، هغه جوابونه خو ما ورکړه، بیا دوی راته وویل چي له دنیا ځخه دي څه عمل راوړی دی؟ ما ورته وویل چي د بندګانو حوالې مي راوړي دي، نو د خدای عزوجل له خوا ملکو ته خطاب راغلی چي حوالې یې صحیح دي، نو یې ماته دا لوړه درجه راکړه.

**درویش وایي:** چي دا حکایت د هغه حدیث قدسي تائید کوي "انا عند ظن عبدي لي"

لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّ اَجْرٌ عَظِيْمٌ۝

ددوی لپاره مغفرت دی یعني لذنوبهم او لوی اجر، اجر سره د صفته چي نکره یې راوړی لپاره د تعظیم دی، والجملة خبر ثاني دی د "ان" د دې اجر عظیم سبب چي دوی په غض الصوت سره د علیه الصلوة والسلام سره خبري کولې تأدبًا لرسول اللهﷺ، قال البغوي قال انس فکنا ننظر الی رجل من اهل الجنة یمشي بین ایدینا (زموږ په منځ کي) یعني ثابت بن قیس چي قصه یې دمخه تېره سوه الذي نزل فیه هذه الآیة، وقال له رسول اللهﷺ تعیش حمیدًا وتقتل شهیدًا وتدخل الجنة کمامر.

المعجزة لرسول اللهﷺ، انس وایي چي د یوم الیمامة په ورځ یعني د مسیلمة الکذاب سره جنګ ؤ (چي دې مسیلمة د علیه الصلوة والسلام په ژوند کي د نبوت دعوه کړې وه) نو ثابت بن قیس په مسلمانانو کي څه انکسار ولیدی بلکې

يوې طائفې د مسلمانانو هزيمت يې وکړی، نو ثابت رض وويل اف لهؤلاء افسوس دې وي دې کسانو لره، او ثابت رض و سالم مولی حذيفة (يعني چي مريی ؤ د حذيفه رض او هغه يې ازاد کړی ؤ) ما کنا نقاتل اعداء الله مع رسول الله ﷺ مثل ذالک (يعني لکه دې خلکو چي شکست وکړی يعني من المؤمنين) ثم ثبتا (ای ثابت بن قيس و سالم مولی حذيفة رض) وقاتلا حتی استشهد ثابت رض او ده زغره هم اغوستې وه، وروسته تر شهادت دده يو صحابي رض دی په خوب وليدی چي ثابت رض ده ته وويل چي فلاني سړي يعني د مسلمانانو څخه زما څخه يې زغره وکښه، او هغه زغره او مسلمان په يوه طرف کي د عسکرو دي يو آس هم ورسره دی چي په رسۍ کي خپل بازۍ کوي او زما پر زغره يې کټو ايښې ده، او خالد بن وليد رض (چي قومنده د جنګ يې په لاس کي وه) ور واستوه چي دا زما زغره له هغه څخه واخلي، او وروسته ابوبکر الصديق خليفة رسول الله ﷺ ورضی الله عنه ته ووايه چي پر ما د فلاني سړي پور باندي دی هغه پور دي ورکړي (يعني زما زغره دي خرڅه کړي) او زما فلانی مريی زما له خوا ازاد دی، نو هغه صحابي چي دا خوب يې ليدلی ؤ خالد بن وليد رض ته ورغلی دا خوب يې ورته ووايه، خالد بن وليد رض هغه سړي ته ورغلی هغه زغره او آس يې وليدی او زغره يې څني واخستل او خالد بن وليد رض ابوبکر رض ته ورغلی او دده خوب قصه يې ورته وکړه، نو ابوبکر رض دده وصيت ټول له قبول کړی، مالک بن انس رض وايي چي زه نه يم خبر چي د چا وصيت دي بعد الموت قبول سوی وي الا هذه الوصية، والله جل سلطانه اعلم.

الطبراني د زيد بن الارقم رض څخه روايت کړی دی چي د عربو يوه ډله راغله (يعني د صحرايي عربو څخه) چي د رسول الله ﷺ سره يې يو څه کار ؤ، اما وخت داسي وخت ؤ چي رسول الله ﷺ د استراحت لپاره په يوه حجره کي د بعض امهات المؤمنين رض ؤ، نو دوی بعض يوې حجرې ته او بعض بلي حجرې ته ودرېدل او نعرې يې وهلې يا محمد ﷺ اخرج الينا، فانزل الله تعالی هذه الآية لپاره د تقبيح د فعل ددوی.

إِنَّ الَّذِينَ يُنَادُونَكَ مِن وَرَاءِ الْحُجُرَاتِ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ ﴿٤﴾

هغه کسان چي تاته نعرې وهي د شا د حجراتو يا د مخ د خوا څخه د حجرو (د وراء لفظ د اضداد څخه دی شا او مخ دواړو ته ويل کېږي) ډېر ددوی نه پوهېږي،

یا معنی داده چي دوی اعراب صحراء نشینه وه، یا معنی داده چي ستا په عظمت او مراعات الادب نه پوهېدل، وانما اکثرهم لان بعضهم عقلاء لایحبون التعجیل ویراعون الادب مع رسول اللهﷺ.

**پوه سه**: چي حجرات جمع د حجرة ده، هغه قطعة د مځکي ته وایي چي د دېوالونه پر راګرځېدلي وي یعني بام چي يې د هر شي وي غالبًا به لرګي وي، حجرات مشتق دی د حجر څخه چي معنی يې منع ده چي حجره سړی منع کوي له دخول څخه بلا اذن صاحبها، والمراد هـ حجرات نساء النبيﷺ، یعني بعض د حجراتو د مخ د خوا نارې وروهلې او بعض د حجراتو د شا د خوا نارې وهلې.

د جابرؓ څخه روایت دی چي دغه کسان چي نارې يې وهلې عیینة بن حصن الفزاري او اقرع بن حابس وُ.

**سوال**: ناره کونکي خو دوه وه نو نسبت يې و ټولو ته څرنګه وکړی؟

**ځواب**: نسبت د فعل د بعض و کل ته مجاز دی، مثل بنوا فلان قتلوا مع ان القاتل منهم واحد.

**پوه سه**: چي دا یو هیئت وُ چي اوویا (۷۰) کسه وه په مشری د ناموړو کسانو او دوی د غرمې په وخت کي مدینې ته راورسېدل چي رسول اللهﷺ په حجراتو کي د بعض امهات المؤمنین بیده، نو دغو دوو کسانو نارې وهلې یا محمد اخرج الینا، فنزلت هذه الآية.

وَلَوْ أَنَّهُمْ صَبَرُوا حَتَّىٰ تَخْرُجَ إِلَيْهِمْ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ ۚ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ۝

که چېري دوی صبر کړی وای یعني د خپلو خواهشاتو څخه چي تعجیل دی په قضاء کي د حوائجو ددوی او مراعات د ادب د محتاج الیه يې کړي وای یعني رسول اللهﷺ لانه من الله في منزلة لایوازیه احد، حتی چي ته په خپل طبیعت یعني وروسته تر آرام دوی ته راوتلی وای، نو دا به ددوی لپاره خیر وای تر استعجال او نارې وهلو یا محمد اخرج الینا. ولمي په دې کي به حفظ د ادب وای او تعظیم د شان د علیه الصلوٰة والسلام به وای چي په دې کي به خدای ثواب دوی ته ور کړی وای او هغه مرام ددوی به په احسن وجه پوره سوی وای "والله غفور رحیم" چي صرف نصیحت يې ورته وکړی او سرزنش يې ورکړی پر سوء ادب او تعظیم د رسول الله

بنا. على جهلهم وقلة عقولهم يعني هغه خداى دوى ته وبخښل سبب د اخرت د عذاب يې نه وکړځول او خداى مهربان دى.

**يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ جَاءَكُمْ فَاسِقٌ بِنَبَإٍ فَتَبَيَّنُوا**

اى هغه کسانو چي ايمان يې راوړى دى که تاسي ته راتک وکړي يو فاسق سړى په يو خبر سره نو تاسي د ده پر صرف قول اعتماد مه کوئ بلکې معلومات د ده د صدق او کذب وکړئ.

**پوهه:** چي مراد له دې فاسق څخه وليد بن عقبة بن ابى معيط ؤ چي د حضرت عثمان ﷺ د مور له خوا څخه ورور ؤ او سبب د فسق يې دا ؤ چي عثمان رض دى مقرر کړى ؤ والى د کوفې وروسته تر عزل د سعد بن ابى وقاص ﷺ، نو ده د شپې شراب څيښلي وه او سکران ؤ، نو د سهار لمونځ يې و خلکو ته څلور رکعته ورکړى او داسي يې خلکو ته وويل ان شئتم لازيدنكم، په دې باندي عثمان رض خبر سو او دى يې معزول کړى.

**درويش وايي:** چي په خلافت کي د عثمان ﷺ ؤ، اوس به د دې ايت شان نزول بيان کړو اخرج احمد وابن الدنيا والطبراني وابن منده وابن مردويه بسند جيد عن الحارث من ضرار الخزاعي رض حارث وايي قدمت على رسول الله ﷺ فدعاني الى الاسلام فدخلت فيه يعني اسلام مي قبول کړى بيا يې ماته دعوت د زکوة راکړى هغه مي هم قبول کړى، حارث رض بيا وويل و عليه الصلوة والسلام ته يا رسول الله ﷺ زه به ولاړ سم خپل قوم ته زه به يې اسلام و اداء الزکوة ته رابولم نو که يې زما دعوت قبول کړى جمعت زکاته وترسل الي (ته راواستوه ماته يو رسول پر فلاني فلاني وخت چي هغه به تاته راوړي بما جمعت من الزکوة) نو حارث چي زکاتونه سره جمع کړه د هغو کسانو څخه چي د حارث دعوت يې قبول کړى ؤ او هغه وخت پوره سو چي ما عليه الصلوة والسلام ته ټاکلى ؤ چي په دغه وخت کي به رسول را استوې، نو رسول نه راغلى د حارث دا خيال سو ان قد سخطة (يعني ناراضي) من الله ورسوله ﷺ، نو حارث د خپل قوم رئيسان راجمع کړه او دوى ته يې وويل ان رسول الله ﷺ ماته ټاکلى وخت راکړى ؤ چي زه به رسول در واستوم ليقبض ما کان عندنا من الزکات وليس من رسول الله ﷺ الخلف يعني له وعدې څخه ولا ارى

حبس رسوله الا من سخته (يعني ناراضي څخه د رسول اللهﷺ) فانطلقوا الى رسول الله، سبب د څنډ د رسول اللهﷺ په اصل كي دا ؤ چي عليه الصلوة والسلام پر تاكلي وخت الوليد بن عقبة بن ابى معيط چي وروز د عثمانؓ ؤ د مور له خوا ور استولى ؤ لپاره د راوړو د زكات د قوم د حارثؓ، دا الوليد المذكور چي تر يو ځايه پوري ولاړى چونكه دده او د حارث د قوم تر مابين په جاهليت بغض او شحنا پيښنه سوې وه، نو دى وېرېدى چي ما به قوم د حارث قتل كړي، نو بيرته د لارې څخه راوګرځېدى او عليه الصلوة والسلام ته راغلى چي حارث منعني الزكات واراد قتلي، نو عليه الصلوة والسلام يو څو كسه و حارث ته ور واستول چي ته راسه حارث سره د قوم د رئيسانو چي راغلى رسول اللهﷺ ورته وويل چي ماته ته الوليد بن عقبه ابن ابى معيط در واستاوه د زكات د راوړو لپاره، هغه وويل چي حارث او قوم زكات منع كړى او زما د قتل اراده يې هم كړې وه خو په ډېر زحمت مي ځان را وه ايستى، حارثؓ وويل: لا والذي بعثك بالحق ما رئيته ولا رأنى ولا اقبلت الاحين لم يجئ رسول رسول اللهﷺ علينا خشية ان يكون سختة (اى غضبًا) من الله ورسولهﷺ فنزل يا ايها الذين آمنوا ان جائكم الآية.

**پوه سه:** چي مراد له فاسق څخه وليد بن عقبة بن ابى معيط دى، فسق دده يو دا ؤ چي په حيوة كي د رسول اللهﷺ پر حارث او قوم د هغه دروا غ وويل چي زكات يې منع كړى او زما د قتل اراده يې كړې وه، او بل فسق هغه دى چي وړاندي تېر سو چي په خلافت كي د عثمانؓ دده څخه صادر سوى ؤ كما مر تفصيله.

**درويش وايي:** چي ددې آيت شان نزول الحسنؒ په روايت د عبد بن حميد داسي بيان كړى دى چي يو سړى و عليه الصلوة والسلام ته راغلى او داسي يې ورته وويل يا نبي الله ان بني فلان يعني د قوم نوم يې واخستى چي د مخبر د هغو سره بغض او عداوت ؤ په جاهليت هغه قوم لمونځونه پرې ايښي دي وقد ارتدوا وكفروا بالله، نو رسول كريمﷺ د تلوار څخه كار نه واخستى يعني دستي يې فوج كشي نه پر وكړه يعني صرف د خبر رسونكي په خوله يې نه وكړه، بلكي خالد بن وليدؓ يې سره د څو كسانو ور واستاوه او عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي ته په پټه ددوى د لمونځو تحقيق وكړه چي كوي يې او كه نه، كه يې چېري تو له

لمونځونه نه کول فشانک بهم یعني خپل عملیات د جنګ ورسره و کړه لکن لاتعجل علیهم، یعني تر څو چي پوره معلومات درته حاصل سوي نه وي جنګ مه ورسره کوه، نو خالد بن الولیدؓ عند غروب الشمس هغه قوم ته نژدې سو او هورې پټ سو، نو چي د ماښام د لمانځه وخت سو مؤذن راغلی اذان يې وکړی فصلوا صلوة المغرب بجماعة، نو خالدؓ ملګروته وویل چي دې قوم د ماښام لمونځ په اذان او اقامت او جماعت وکړی، نو شاید بل لمونځ به نه کوي، نو دی دلته ورته پټ ؤ چي شفق د ماښام غائب سو یعني د ماخستن وخت داخل سو، اذن مؤذنهم فصلوا صلوة العشاء بجماعة، بیا خالدؓ هورې ورته پټ ؤ لعلهم ترکوا صلوة اخری حتی چي نیمه شپه سوه خالدؓ داخل کړه خپل اسان په کلي کي ددوی، دوی د تهجد په وخت کي ویښ سول څه ناڅه برخه قرآن چي يې زده ؤ هغه يې په لمانځه کي ووایه، بیا خالدؓ ددوی د سهار د لمانځه انتظار وکړی چي سپېدې سوې مؤذن اذان وکړی او لمونځ يې په جماعت سره وکړی چي لمونځونه يې وکړه او ورځ ښه روښا سوه اذاهم بنواصي الخیل یعني د خالدؓ آسان په کلي کي ددوی ګرځېده، فقالوا ماهذا (دا څرنګه اسان دي چي په کلي کي ګرځي؟) چا ورته وویل چي خالد بن ولیدؓ راغلی دی، فقالوا یا خالد مالک (ته څرنګه راغلی يې) خالد ورته وویل چي علیه الصلوة والسلام ته یو سړی راغلی او هغه ورته وویل ستاسي دخوا چي دوی لمونځونه پرې ایښي دي او دوی مرتد سوي دي، ددوی ستوني د ژړا ډک سوه او ډېر يې وژړل، وقالوا نعوذ بالله تعالی ان نکفر ابدًا، نو خالدؓ سره د ملګرو رسول اللهﷺ ته يې ټوله صورت الحال بیان کړی وانزل الله تعالی هذه الاٰیة یا ایها الذین آمنوا الخ.

**فائده:** فاسق هغه چاته وايي چي د ممنوع شیانو څخه د شرع وتلی وي من قولهم فسق الرطب عن قشرها اذا خرجت، قال الراغب الاصفهاني چي فسق اعم دی تر کفر او کثیرًا وقلیل ته د ګنهو ویل کېږي، او په عرف کي هغو ګنهو ته ویل کېږي چي ډېري بدي وي، او بعض علماء وايي چي فاسق هغه چاته وايي چي مرتکب د ګناه کبیره وي.

**درویش وايي:** چي ددې آیت اول شان نزول چي په باره کي د الحارث نازل سوی دی ډېر مشهور دی والله اعلم.

أَنْ تُصِيبُوا قَوْمًا بِجَهَالَةٍ فَتُصْبِحُوا عَلَىٰ مَا فَعَلْتُمْ نَادِمِينَ ۝

دا دلیل دی د هغه آیت چي تبینوا پکښې وُ.

**پوه سه:** چي دلته یاء مضاف محذوف دی ای کراهة ان تصیبوا یا کلمه د لا سره لام تعلیل دی ای لئلا تصیبوا "قومًا" چي هغه قوم له عصیان څخه د امر الله ورسوله پاک وُ کمامر تفصیله في شان هذه الآیة "بجهالة" حال دی له فاعل څخه د تصیبوا ای جاهلین بحقیقة الامر وحال القوم "فتصبحوا" عطف دی علی تصیبوا یعني تاسي ای مؤمنانو وګرځي "نادمین" پښېمانه. دا لفظ دی د تصیبوا چي د افعال ناقصه وُ څخه وُ او ضمیر د تصبحوا یې اسم وُ. یعني که تاسي معامله د قتل وکړئ د هغو خلګو چي هغه له عصیان څخه پاک وه. نو اخیر چي د هغو په حقیقت حال خبر سي پر خپل قتل و قتال به پښېمانه یاست اصل معنی د ندامت نوع من الغم علی ما صدر منک. یعني وایې به چي کاشکي ما دا کار نه وای کړی. نو اول باید احتیاط وکړئ ولهذا ورد في الحدیث النبوي التبیین یعني معلومات کول د یو کار من الله والعجلة تلوار کول به کار د شیطان څخه وي.

**مسئله:** په آیت کي چي فاسق راوړه سو له دې سببه چي خبر د واحد عدل په بعضو موادو کي مقبول دی.

وَاعْلَمُوا أَنَّ فِيكُمْ رَسُولَ اللَّهِ ۚ لَوْ يُطِيعُكُمْ فِي كَثِيرٍ مِنَ الْأَمْرِ لَعَنِتُّمْ

او په دې پوه سئ چي په تاسي کي رسول د خدای موجود دی که چېري دی اطاعت وکړي ستاسي په ډېرو کارو کي نو تاسي به واقع سئ په ګناه او په هلاک کي. بیضاوي وایي چي جمله د لو یطیعکم حال د یوه څخه ده د دوو ضمیرو د فیکم.

**سوال:** په فیکم کي دوه ضمیره کله وه. بلکي یو ضمیر دی د کم دی؟

**ځواب:** فیکم متعلق دی په په کأین پوري، نو ضمیر د کأین یعني المستر فیه چي راجع و علیه الصلوة والسلام ته دی. او بل ضمیر د کم دی چي راجع و مؤمنین ته دی. و ان سره د اسم او د خبره چي رسول الله او فیکم دي مقید دی په حال سره چي لو یطیعکم دی. ساد مسد (یعني قائمقام) د مفعولینو ده د اعلموا (چي افعال قلوب څخه دی چي دوه مفعوله غواړي) بیضاوي زیاته کړې ده چي

والمعنى ان فيكم رسول الله ﷺ في حال يجب تغيرها (چي اطاعت دی ستاسي په ډېرو کارو) يعني ستاسي اراده ده چي عليه الصلوة والسلام ستاسي د رايي متابعت وکړي يعني هغه دوي قصې چي تېلاً نژدې تېري سوې. ولو فعل ذالک لوقعتم في الاثم والهلاک. واعلم ان صيغة المضارع يعني لويطيعکم لپاره د استمرار ده او کلمه د لو لپاره د امتناع د عنت د دوی ده لامتناع استمرار النبي ﷺ على متابعة رأيهم لکن چونکه غضب د مؤمنانو پر بنوا المصطلق انما هو لما سمعوا من الوليد ارتدادهم بغضاً في الله لانفسهم وکان ماسبق من الکلام موهمًا لوقوعهم في الاثم واللثوم استدرک الله ببيان عذرهم.

وَلٰكِنَّ اللّٰهَ حَبَّبَ اِلَيْكُمُ الْاِيْمَانَ وَزَيَّنَهٗ فِيْ قُلُوْبِكُمْ وَكَرَّهَ اِلَيْكُمُ الْكُفْرَ وَالْفُسُوْقَ وَالْعِصْيَانَ اُولٰٓئِكَ هُمُ الرّٰشِدُوْنَ ۝

يعني تاسي چي عليه الصلوة والسلام باعثه کاوه پر قتال د حارث او د ده د قوم او يا پر قتال د بني المصطلق چي د اول اخبار کاذب عقبة بن ابی معيط راوړی وُ چي قوم د حارث مانع د زکوة او زه يې هم وژلم. او د بني المصطلق د ارتداد خبر کاذب وليد راوړی وُ. نو چونکه خدای پاک و تاسي ته ايمان محبوب او ښائسته ګرځولی وُ په زړو کي ستاسي. او خدای مکروه ګرځولی وُ تاسي ته کفر او فسق او عصيان. نو ځکه تاسي عليه الصلوة والسلام باعثه کاوه پر قتال د حارث د قوم او د بني المصطلق. ولي چي دا دواړي طائفې ستاسي په عقيده اهل کفر او فسوق او عصيان وه. نو دا ستاسي باعثه کول بغضاً لله وُ لا لغرض انفسکم "اولئک هم الراشدون" دغه کسان هدايت ته رسېدلي کسان دي.

**درويش وايي**: چي دا وُ حاصل د عذر د دوی عند البيضاوي والمظهري. لکن رسول الله ﷺ د دوی په قول ونه کړه په دې سبب چي شان د عليه الصلوة والسلام تأني او فکر وهل وه په ورته کارو کي او کامل معلومات کول وه. او صرف د فاسق واحد په اخبار د ومره درانه بار ته لکه قتال تلوار نه کاوه. مظهري وايي چي د دې آيت له سياق څخه دا فهمېږي چي فسوق اخف دی تر کفر واقبح من العصيان فالمراد بالعصيان الخروج من الجماعة وارتکاب البدعة في العقائد تر داسي

اندازې چې په کافر کېږي لکه د روافضو يا د خوارجو عقائد چې حد ته د کفر رسېدلي دي، لکن دا خروج من الجماعة اخبث دی من عصيان الجوارح يعني الکبائر وحاصل الآية ان ما صدر منکم من ترک التثبت انما کان لحبکم الايمان وبغضکم الکفر فلا لوم عليکم ولا اثم.

**فائده:** "اؤلئک هم الراشدون" يوه جمله معترضه ده.

**سوال:** انتم الراشدون يې ولې نه وو ايه، سره د دې چې په د مخه آيت کې دواړه اليکم په صيغه د خطاب راغلي دي؟

**ځواب:** تا چې د دوی و امثالو ته يعني چې صفتونه د دوی پکښې وي هم شامل سي.

فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَنِعْمَةً ۭ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ⑧

دا فضل دی د خدای او نعمت دی د خدای او خدای په احوالو د مؤمنانو خبر دی او حکمت لري چې دوی ته يې توفيق ورکړی د فضل او د نعمت حاصلولو ته.

**پوهه:** چې نصب د فضلاً ونعمةً بنا پر دې دی چې مفعول له د حبب او کره دی.

**درويش وايي:** چې شان نزول د راتلونکو آيتو دا دی: په روايت د بخاري او مسلم (چې په اصطلاح کې د اهل حديثو يې شيخان بولي) له انس ﷺ څخه روايت دی چې نبي ﷺ پر خپل خره (چې د يعفور په نامه مشهور وُ) د عبد الله بن ابی سره نژدې تېر يدی، نو عبد الله بن ابی وويل ابی اليک عني (راسره ګوښه سه) فو الله لقد اذاني نتن حمارک (زه په تکليف کړم ستا د خره بد بويي) فقال رجل من انصار چې دلته حاضر وُ، والله لحماره اطيب ريحًا منک (انصاري ابن ابی ته وويل چې په والله د رسول الله ﷺ د خره بنه بوی دی ستا تر بوی) د انصاري د دې خبري څخه يو سړی ته چې د ابن ابی له قوم څخه وُ درد ورغلی، و انصاري ته يې بنکنځل وکړه، وغضب لکل واحد من الانصاري ومن عبد الله اصحاب د هغه، فکان بينهم ضرب بالجريد (د خورما په لرګي او سوکانو او په څپڼو) فنزلت فيهم.

وَاِنْ طَآئِفَتٰنِ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ اقْتَتَلُوْا فَاَصْلِحُوْا بَيْنَهُمَا ۚ

که د يو دوو ډلو د مؤمنانو سره جنګ سو. المخاطب بالصلح سائر المؤمنين غير

المقاتلین والاصلاح بالنصح لهما وان یمنع المبطل من الظلم ویدفع شبهته او دعوت دي ورکړي دواړو ډلو ته الی کتاب الله وسنة رسول اللهﷺ وترک التباغض والتحاسد

**پوه سه:** چي رد ونکی د خبري د عبدالله بن ابی عبدالله بن رواحهؓ ؤ وکان خزرجیًا یعني د بني خزرج د قبیلې ؤ، او ابن ابی د اوس د قبیلې ؤ.

**پوښتنه:** عبدالله بن ابی خو کافر ؤ؟

**ځواب:** دا جنګ چي یې سره وکړی دا دواړي طائفې مؤمنان وه، د اوس او خزرج قبیلې که څه هم مؤمنان وه لکن مراعات د قومیت پر غالب سو، نو ځکه یې طائفتان من المؤمنین وایه.

**سوال:** باید په ځای کي د اقتتلوا اقتتلا په ضمیر د تثنیت ویل سوی وای کما ني قوله تعالی بینهما بضمیر التثنیة؟

**ځواب:** ضمیر د جمع چي یې راوړی یعني اقتتلوا په اعتبار د معنی دی ولي چي هره طائفه جماعت وه فقد روعی في الطائفتین معناهما اولاً ولفظهما ثانیًا.

فَإِنۢ بَغَتۡ إِحۡدَىٰهُمَا عَلَى ٱلۡأُخۡرَىٰ فَقَٰتِلُواْ ٱلَّتِي تَبۡغِي حَتَّىٰ تَفِيٓءَ إِلَىٰٓ أَمۡرِ ٱللَّهِۚ

که چېري تعدي او بغاوت وکړی یوې ډلي پر بلي ډلي باندي یعني د کتاب الله او د سنت د رسولﷺ څخه یې هم بغاوت وکړی یعني دفع د ظلم یې په بندي ګرت سره هم نه کېده، ولي دا ظالمي ډلي اتباع درلوده "فقاتلوا التي تبغي آه" نو تاسي قتال وکړئ، یعني په توره او سلاح سره پر هغه ډله چي باغي وي تر هغه وخته چي رجوع کوي و امر ته د خدای، عن انسؓ قال رسول اللهﷺ انصر اخاک ظالمًا او مظلومًا (ته کومک د وروړ سره کوه که ظالم وي او که مظلوم وي) فقال رجل یا رسول الله انصره مظلومًا د مظلوم سره به کومک وکړو یعني د ظالم څخه به یې خلاص کړو، لکن د ظالم سره څرنګه کومک وکړو، قالﷺ تمنعه من الظلم، د ظلم څخه یې منع کړئ فذالک نصرک معه (ولي د ګناه د ظلم څخه دي خلاص کړی) حتی چي دغه باغیه ډله رجوع کوي و امر ته د خدای یعني صلح ته غاړه ایږدي.

فَإِن فَآءَتۡ فَأَصۡلِحُواْ بَيۡنَهُمَا بِٱلۡعَدۡلِ وَأَقۡسِطُوٓاْۖ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلۡمُقۡسِطِينَ ۝٩

نو که یې رجوع وکړه نو تاسي د مابین خلګ صلح وکړئ په مابین کي د دي

دوو ډلو په عدالت سره، په لفظ کي د عدل اشاره ودې ته ده چي هغه مقاتله د دوی تاسي باعثه ونه ګرځوي پر ترک د عدل ''واقسطوا'' او تاسي عدل کوئ په ټولو امورو کي د متخاصمينو (که څه هم په دنيايي امورو کي تخاصم وي لکه بيع و شراء وغيره ذالک) نو هغه ته به خدای ښه عوض ورکړي.

**فائده:** د قسط معنی جور او ظلم ده والاقساط چي مصدر دی له بابه د افعال دی ازالة الجور يعني همزه لپاره د سلب د مجرد دی چي قسط دی نحو اقردته ای اذلت قراده (منګور)

**إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ فَأَصْلِحُوا بَيْنَ أَخَوَيْكُمْ وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴿١٠﴾**

نه دي مسلمانان مګر ورونه دي، ولي چي ټول يو اصل ته منسوب دي وهو الايمان الموجب للحيوة البديه يعني په جنت کي ولما کان هذا الاصل يعني الايمان بواحدنيته تعالی وسائر المعتقدات الحقه هو النبي ﷺ کان هو ابا المؤمنين وازواجه المطهرات امهات المؤمنين، فلهذا لايجوز نکاح ازواجه لاحد من المسلمين بالاجماع کالام النسبي لايجوز نکاحها للابن ''واتقوا الله لعلکم ترحمون'' او د خدای څخه وبېرېږئ (يعني مخالفت د اوامر او منهياتو د خدای مه کوئ)

**پوه سه:** چي جمله د انما المؤمنون آه تعليل او تقرير ده د امر بالاصلاح ځکه يې وروسته امر بالاصلاح پر مرتب کړی تاکيداً للاصلاح لکن په دې ځای کي وضع د اسم ظاهر چي اخويکم دی په ځای کي د ضمير راوړی يعني داسي يې وويل بينهم فافهم.

**فائده:** لعل چي حرف ترجي دی دلته په معنی د لام کی دی ولي چي تقوی سبب د الفت ده بين المؤمنين والتراحم بينهم. والتراحم موجب د رحمت د خدای عزوجل دی، قال عليه الصلوة والسلام انما يرحم الله من عباده الرحماء، رواه المجدد في مکتوباته، او په بخاري او مسلم کي حديث مبارک دی چي روايت يې جرير بن عبد الله ﷺ کړی دی ''لايرحم الله من لايرحم الناس'' البغوي وايي چي دا ايت چي رسول الله ﷺ دوی ته تلاوت کړی، نو دې دوو فرقو صلح سره وکړه وکف بعضهم عن بعض. روی البغوي وغيره عن سالم عن ابيه ان رسول الله ﷺ قال المسلم اخو المسلم لايظلمه (چي ظلم دي پر کوي) ولا يشتمه (ښکنځل) دي نه ورته کوي ومن کان في حاجت اخيه کان الله في حاجته ومن فرج عن مسلم کربة

(یعني یو غم او تکلیف د دنیا) فرج بها کربة من کرب یوم القیامة.

**پوه سه**: چي تنوین د اول کربة لپاره د تحقیر دی ای کربة حقیرة، او په کربة ثاني کي لپاره د تعظیم دی ای کربة عظیمة.

**مسئله**: له دې دوو آیتو څخه دا معلومه سوه چي د دوو ډلو مسلمانانو تجاوز یو پر بل ایمان نه زائلوي، لما قال الله تعالی: وان طائفتان من المؤمنین آه.

**پوه سه**: چي البغوي له ابن عباس څخه روایت کړی دی چي ثابت بن قیس په غوږو درونډ ؤ یعني کوڼ ؤ، او دی چي به رسول الله ﷺ ته راغلی او نور خلک به تر ده دمخه راغلي وه ده ته به یې ځای ورکاوه، ولي چي خلک یې په عذر خبر وه چي دی کوڼ دی چي علیه الصلوة والسلام ته به نژدې ناست نه وای د علیه الصلوة والسلام خبري یې نه اورېدلې، نو یو ورځ چي ثابت د سهار لمانځه ته راغلی یو رکعت ځني تېر سوی ؤ، نو رسول الله ﷺ چي د لمانځه څخه فارغه سو، نو اصحاب کرام پر راټول سوه.

**درویش وایي**: چي له دې حدیث څخه معلومه سوه چي علیه الصلوة والسلام د سهار تر لمانځه وروسته وعظ او تبلیغ کاوه علی خلاف ائمة مساجدنا في العصر الحاضر، هغه چي د سهار لمونځ وکړي یو ځای تنوزي خوب مکروه خصوصًا في شهر رمضان چي د عصر حاضر ملایان د روژې د سهار لمونځ چي د سهار سپېدې چي ښکاره سوې دوی د سهار لمونځ کوي، وروسته په یوه حجره تنوزي تر پاخه ځابته پوري بیده وي، فیا اسفٰی علی حالهم خصوصًا في شهر مبارک رمضان.

نو ثابت بن قیس بن شماس هغه تېر سوی رکعت کاوه خلکو خپل ځایونه نیولي وه، نو چا و چا ته ځای نه ورکاوه حتی چي یو سړی چي به راغلی او ځای نه ؤ نو په ولاړي به ولاړ ؤ د علیه الصلوة والسلام خبري به یې اورېدلې، ثابت بن قیس چي راغلی نژدې و علیه الصلوة والسلام ته خو ځای نه ؤ، نو د خلکو پر غاړه یې پښې اړولې او دا به یې ویل: تفسحوا ځایونه فراخه کړئ یعني نژدې نژدې سره کښېنئ حتی چي رسول الله ﷺ ته یې ځان ورساوه چي د ثابت او د علیه الصلوة والسلام تر مابین یو سړی ناست ؤ ثابت و هغه ته وویل چي ستا ځای ماته راکړه هغه سړي ورته وویل چي ځای د قرب د علیه الصلوة والسلام ورسېدی نور نو کښېنه، ثابت

مجبورًا د هغه و شا ته کښېنستي ډېر درد هم ورغلی چي هغه سړي ځای نه ورکړی حتی چي مجلس د عليه الصلوة والسلام پای ته ورسېدی ثابت رضي الله عنه هغه سړي په لاس وټومبی او ورته وه يې ويل: من انت؟ ته څوک يې، هغه ورته وويل انا فلان، ثابت رضي الله عنه ورته وويل هغه د فلانۍ زوی يې؟ يعني د مور نوم يې ياد کړی چي د جاهليت په زمانه کي دا لوی پيغور ؤ، هغه سړي سر کښته وځړاوه او په دې پيغور وشرمېدی، ثابت رضي الله عنه ته يې څه نه وويل، فانزل الله تعالی: .

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا يَسْخَرْ قَوْمٌ مِّنْ قَوْمٍ

ای هغه کسانو چي ايمان يې راوړی دی مسخرې يعني پسخند مه وهئ يو قوم په بل قوم پوري.

**پوه سه:** چي په قاموس کي وايي چي قوم و يو جماعت ته وايي نر او ښځي دواړو ته، او الرجال خاصة او ښځي په تبع پکښي داخلېږي، او په صحاح کي وايي (دا هم د لغت کتاب دی) القوم جماعة الرجال ته وايي په اصل کي او په دې آيت يې دليل ويلی دی، ولي ښځي خدای وروسته پر عطف کړي دي، او په مدارک کي وايي چي قوم په عامة القرآن الرجال والنساء جميعًا ته وايي وحقيقة الرجال لقوله تعالی الرجال قوامون علی النساء، او قاضي بيضاوي وايي چي قوم په اصل کي مصدر دی د قام يقوم نعت به يعني صفت واقع کېږي (کزيد عدل) يا جمع دی د قائم لکه زور چي جمع د زائر ده، والقيام بامور الدنيا وظيفة الرجال خاصةً. بيا قاضي بيضاوي د يو سوال جواب ورکړی دی چي قوم هود، قوم صالح، قوم لوط، قوم نوح خو نر او ښځي دواړه مراد دي، نو ده داسي جواب ورکړی دی چي دا يا بناء پر تغليب دی د رجال پر ښځو يا يې اکتفاء په نرو سره کړې ده لانهن توابع الرجال.

**سوال:** ولي يې لفظ د قوم ووايه چي جماعت ته وايي داسي يې نه وويل احد من احد؟

**جواب:** سخريه غالبًا په مجامع کي کېږي.

عَسٰٓى اَنْ يَّكُوْنُوْا خَيْرًا مِّنْهُمْ وَلَا نِسَآءٌ مِّنْ نِّسَآءٍ عَسٰٓى اَنْ يَّكُنَّ خَيْرًا مِّنْهُنَّ

شايد وي به د غه قوم (چي پسخند په وهل کېږي) ښه به وي تر هغو کسانو چي پسخند په وهي، او نه دې ښځي په ښځو پسخند وهي، ښايي چي مسخورات ښځي دې غوره تر ساخراتو ښځو وي.

**وَلَا تَلْمِزُوا أَنفُسَكُمْ وَلَا تَنَابَزُوا بِالْأَلْقَابِ**

اللمز العيب والطعن باللسان يعني لا يعيب بعضكم بعضًا.

**پوښتنه:** په ايت کي خو انفسکم راغلی دی، او ترجمه يې تا په لا يعيب بعضکم بعضًا وکړه؟

**ځواب:** دا ترجمه بناء پر دې ده چي مؤمنان کنفس واحدة دي، نو ه يو سړی پر بل عيب ووايه کان کانه عاب نفسه کقوله تعالى: ولا تقتلوا انفسکم فان المراد في هذه الآية لا تقتلوا اخيکم لانه کقتل النفس، ولي مؤمن چي ته مړ کړې نکه ځان چي مړ کړې... بيت:

جراحات السنان لها التيام	ولا يلتام ما جرح اللسان

"ولا تنابزوا" قال البيضاوي النبز مختص باللقب السوء، يعني لا تدعوا بعضکم بعضًا باللقب لاسوء، قال البغوي" قال عکرمه" هو قول الرجل للرجل يا فاسق يا منافق يا کافر، او الحسن" وايي چي يو يهودي يا نصراني چي به ايمان راوړی نو پس له اسلام به بعضو خلګو ورته ويل يا يهودي يا نصراني، نو مؤمنان نهي سول له دې وينا څخه، او عطاء" وايي: هو ان تقول لاخيک يا حمار يا خنزير.

**درويش وايي:** چي په پښتو کي هم ورته الفاظ سته لکه يو چي بل ته وايي: پنده يا ټريه، يا چوخنکه، يا ملا بوکې ونحو ذالک.

**سوال:** محدثين و سليمان ته وايي الاعمش او واصل ته وايي الاحدب، نو دا لقب سوء د قبيلې نه دی؟

**ځواب:** لقب سوء چي منهي عنه دی هغه دی چي لپاره د استخفاف ورته ووايي او که لپاره د معرفت او تميز ورته ووايي هغه ضرورت دی منهي عنه نه دی علامه بغدادي په روح المعاني کي وايي: وهذا غير النهي السابق (يعني لا يسخر قوم من قوم آه) که څه هم راوړې نهي مخصوص په مؤمنانو سره دی، دليل يې دا دی چي سخريه احتقار الشخص مطلقًا على وجه مضحک چي خلک پر ده خاندي دده په حضور کي، واللمز التنبيه على معائبه سواء کان مضحک املاء وسوا کان بحضرته املا انتهى، نو عطف د لا تلمزوا پر لا يسخر عطف د عام پر خاص دی.

بِئْسَ الِاسْمُ الْفُسُوقُ بَعْدَ الْإِيمَانِ

بد دی نوم د فسق پس له ايمان څخه يعني سړی ته وايي يا يهودي وروسته تر ايمان د هغه، يا سړي ته وايي يا شارب الخمر وروسته تر توبې د هغه.

**درويش وايي:** چې پر دې تفسير مراد له ايمان څخه عام دی چې توبې ته هم شامل سي، عن ابی ذر رض قال قال رسول الله ﷺ لايرمی رجل رجلاً بالفسوق ولايرميه بالكفر (يعني نسبت د فسق دي څوک نه کوي وچا ته او نه نسبت د کفر دي ورته کوي) الا ارتدت عليه ان لم يکن صاحبه کذالک (مګر نه چې دا دوې کلمې راګرځي و ده ته که هغه سړی داغسي نه وي) رواه البخاري. وعن ابن عمر رض قال قال رسول الله ﷺ من دعی رجلاً بالکفر او قال يا عدو الله وليس کذالک (يعني هغه سړی داغسي نه وي) الا جاء عليه (دا کلمه و ده ته راځي) متفق عليه. -

وَمَن لَّمْ يَتُبْ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ ⑪

او که چا توبه ونه کښله يعني د مذکوره منهياتو څخه چې سخريه، لمز او نبز دی، نو دغه کسان ظالمان دي.

**پوه سه:** چې ظلم وضع د شي ده بې ځايه، نو ده کښښلو عصيان په ځای کي د طاعت او ځان يې پيش کړی و عذاب ته.

**فائده:** ضمير د لم يتب يې مفرد راوړی نظر و لفظ ته د مَن او ضمير د الظالمون يې جمع راوړی نظر و معنی ته د من ومثله کثير في القرآن الکريم ولسان العرب. ذکر البغوي رح ان رسول الله ﷺ چې به غزاء ته تلی يا به بل سفر ته چې خلګ مسلمانان به ورسره وه نو يو سړی چې به مسکين وُ، دوو غني کسانو ته به يې وسپاری چې دا مسکين به ستاسي خدمت کوي او تر تاسي د مخه په دی قرارګاه ته ستاسي ورځي، او هوري به ددوی خوراکي شيان يا د ابو ترتيبات نسي، نو دا دوه غنيان به دده څخه اندازه د خورک وغيره نه غوارې، نو سلمان الفارسي رض چې مسکين وُ ضم يې کړی و دوو غنيانو ته په بعض اسفارو کي نو سلمان رض و منزل ته قرارګاه ته د مخه ځان ورساوه، چونکه ستړی وُ پرېوتی بيده سوی وُ، نو د هغو غنيانو لپاره يې خوراکي شی يا اوبه نه وُ برابر کړي هغو غنيانو ورته وويل: ما

صنعت شيئًا، كوم شى دي برابر كړى؟ سلمان رض ورته وويل: لا غلبتني عيناى يعني بې اختياره بيده سوم، نو هغو ورته وويل چي ورسه و رسول الله ﷺ ته د هغه څخه زمونږ لپاره طعام را وړه، سلمان رض ورغلى د رسول الله ﷺ څخه طعام وغوښتى يعني د هغو دوو غنيانو لپاره چي سلمان رض يې خادم ؤ، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي ته ورسه اسامه بن زيد رض ته كه د هغه سره شى فاضل د طعام ؤ در به يې كړي، اسامه رض خازن د عليه الصلوة والسلام ؤ يعني پر مطعوماتو د سفر، نو سلمان رض و هغه ته ورغلى، هغه ورته وويل ما عندي شيئ، سلمان رض بيرته هغه دوو ملګرو ته ورغلى او ورته وه يې ويل چي ما چي د رسول الله ﷺ څخه طلب د طعام وكړى ستاسي لپاره هغه حواله پر اسامه رض راكړه اسامه رض وويل چي زما سره شى فاضل نسته چي تاته يې دركړم، نو ملګرو ورته وويل چي د اسامه رض سره خو شى ؤ لكن بخيلي يې وكړه، نو دوو غنيانو سره وويل چي سلمان داسي سوى پاله دى چي د ابو ډك څاه ته يې څوك ور واستوي هغه ډك څاه به پر وچ سي، بيا دا دوه كسه راهي سوه چي د سلمان رض د دې خبري څېړنه وكړي چي رشتيا يې ويل كه دروا غ، خو اخيرًا و عليه الصلوة والسلام ته ورغله د طعام د غوښتني لپاره عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي د غوښو بوى ستاسي د خولو څخه څي؟ هغو ورته وويل والله يا رسول الله ماتنا ولنا يومنا هذا لحمًا، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي د سلمان او اسامه غوښې مو نه وخوړلې، يعني غيبت او بهتان مو پر ووايه چي سلمان چي پر ډك څاه ورسي هغه به وچ سي او پر اسامه باندي چي د اسامه سره خو فافضل طعام ؤ لكن بخيلي يې وكړه، فانزل الله تعالى هذه الآية.

**يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اجْتَنِبُوْا كَثِيْرًا مِّنَ الظَّنِّ اِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ اِثْمٌ**

اى هغه كسانو چي ايمان مو راوړى دى پرهېز وكړئ له ډېره څخه د ظن (مراد له ظن څخه دلته بد ګماني ده لكه د غو دوو كسانو چي وكړى كما في حديث رواه ابو هريرة رض ان رسول الله ﷺ قال اياكم والظن فان الظن اكذب الحديث) په تحقيق بعض الظن ګناه ده يعني چي بد ګماني بې دليله پر مسلمان كوي.

**پوهـه:** چي دا جمله مستأنفه ده لپاره د امر يعني اجتنبوا الخ، والاثم ګناه ته وايي چي كونكى يې مستحق د عقوبت وي لكه په ځاى كي غيبت او بهتان.

**فائده سنيه:** پوه سه! ظن چي مقابل د يقين دی پر څو قسمه دی (۱) مايجب اتباعه وهو حسن الظن بالله تعالى ورسوله والمؤمنين والمؤمنات، او يا هغه شی چي په دليل شرعي څو ثابت وي چي په هغه کي يوه شبهه وي لکه خبر واحد په اصطلاح د محدثينو او په قياس سره د شرائطو چي په اصول الفقه کي ذکر سوي دي، چي په هغه موضوع دليل قاطع نه وي نو بايد حسن ظن سړی عمل په وکړي په عملياتو کي لکه اودس غسل وغيرهما (۲) ما يحرم اتباعه کسوء الظن بالمؤمنين والمؤمنات خصوصًا الصالحين والصالحات والظن في الالهيات والنبوات حيث يخالفه دليل قاطع (۳) د دواړو څخه مخالف وي لکه ظن په امورو کي د معاش يعني چي فلانی تجارت وکړم ډېره ګټه به راته وکړي، يا امريکا ته ولاړ سم ډېري روپۍ به وګټم وامثالها.

**پوښتنه:** ګناه خو بعض ظن دی وهو القسم الثاني او الله عزوجل داسي وويل يا ايها الذين آمنوا اجتنبوا كثيرًا من الظن؟

**ځواب:** دا خدای عزوجل احتياطًا او مبالغةً وويل فيجتنب المؤمن عما هو اثم او ما يشبه به، قال رسول الله ﷺ الحلال بين والحرام بين وبينهما امور مشتبهة الى اخير الحديث الطويل رواه البخاري وغيره.

**وَلَا تَجَسَّسُوا وَلَا يَغْتَبْ بَّعْضُكُمْ بَعْضًا**

**پوه سه:** چي اصل د دې لفظ تتجسسوا وُ، حذف منه احدى التائين، والمعنی تاسي بحث او تلاش مه کوئ د عيبو د مسلمانانو، باب د تفعل دی لپاره د تکلف يعني مسلمان خپل عيب پټ ساتي ته نو تکلف مه کوه په ښکاره کولو کي د هغه د عيب، له زيد بن وهب رض څخه روايت دی چي موږ وويل و ابن مسعود رض ته چي ته څه وايه د الوليد بن عقبه بن ابی محيط په باره کي چي تر ږيري يې شراب تويېږي؟ فقال ابن مسعود رض ان نهينا عن التجسس، موږ منع کړل سوي يو يعني په قرآن کي له تجسس څخه فان يظهر لنا شيئ نأخذه به، که په دې کي موږ ته يو شی (يعني شرب الخمر) موږ يې نسو په شي (يعني د شرب الخمر حد ورکوو) وفي الحديث النبوي کان رسول الله ﷺ في دعائه اللهم استر عوراتنا (خدايه پټ کړې سوږ عيبونه) وآمن روعاتنا (او په امن بدلې کړې زموږ ډېري)

**درویش وایي:** چي که څه هم په علیه الصلوة والسلام کي عیب نه ؤ لکن تعلیمًا للامة یې دا دعاء وکړه.

راویان د مناقبو د عمر رضی الله عنه وایي چي یوه شپه چي ده شب ګښتي کوله کما هو عادته في بعض اللیالي، نو ده ولیدل چي په یوه سرای کي څراغ لګېدی او دی ورغلی د دروازې تر چوله یې ورته وکتل چي یو څو کسه ناست دي شراب نوشي کوي، نو عمر رض وپوهېدی چي زه څرنګه چارچلند وکړم د دغو کسانو سره نو مسجد نبوي ته راغلی نو د عبدالرحمن بن عوف رض یې له کور څخه راویستی، نو هغه یې هم وروستی هغه کور ته هغه ورته کتل چي شراب نوشان په شرابو څیښلو بخت وه نو عمر رض و عبدالرحمن بن عوف رض ته وویل: کیف تری ان نعمل، ستا څه رایه ده چي زه د دغو خلکو سره څه وکړم؟ عبدالرحمن بن عوف رض ورته وویل انا قد آتینا ما نهی الله عنه یعني لاتجسسوا، نو مونږ او تا خو هم تجسس وکړی و اطلعنا علی عورة قوم ستروا ...... ولا یجوز لنا کشف ستر الله، عمر رض ورته وویل ما اراک الا قد صدقت، نو دواړه څني راهي سول.

ترمذي له ابن عمر رضی الله عنهما څخه روایت کړی دی چي نبي الله ﷺ وویل: یا معشر المسلمین من آمن بلسانه ولم یغض الایمان الی قلبه او ایمان زړه ته نه دی رسېدلی تاسي غیبت د چا مه کوئ یعني د مسلمانانو، ولا تتبعوا عوراتهم، تاسي تلاش مه کوئ د پټو رازو د مسلمانانو فانه من تتبع عورات المسلمین یتبع الله عوراتهم خدای ج به د هغه سړي د عوراتو تتبع وکړي او رسوایي ولو في جوف رحله.

"ولا یغتب بعضکم بعضًا" ای لایذکر بعضهم بعضًا في غیبته بسوء، وعن ابی هریرة رض ان رسول الله ﷺ قال یعني حاضرینو ته چي اصحاب کرام رضی الله عنهم دي اتدرون ما الغیبة؟ قالوا الله ورسوله اعلم قال" ذکر اخاک بما یکره، چا ورته وویل: ان کان في اخي ما اقول؟ که زما په ورور کي دغه بد کار چي ذکر کوم یې موجود ؤ، رسول الله ﷺ ورته وویل که دي په ورور مسلمان کي هغه شی موجود ؤ او تا یې بیان وکړی، فقد اغتبته وان لم یکن فیه ماتقول فقد بهته نو بهتان دی پر وایي یعني بهتان خو تر غیبت سخت ګناه ده.

**درويش وايي:** چي هم دا وجه ده چي په ايت کي خداى عزوجل غيبت ذکر کړی نه بهتان حديث متفق عليه دی او په دې باب کي نور ډېر احاديث صحيحه راغلي دی چي استيصاب د ټولو د فقير تر علم بالا دی.

اَيُحِبُّ اَحَدُكُمْ اَنْ يَّاْكُلَ لَحْمَ اَخِيْهِ مَيْتًا فَكَرِهْتُمُوْهُ ط

آيا خوښه ده د يوه ستاسي چي خوري غوښي د ورور چي هغه مړ وي.

**پوه سه:** چي دا يو مثال دی او تصوير دی د هغه ګناه چي غيبت کونکي ته رسېږي، د غيبت څخه د ورور مسلمان، على افحش وجه واشنعه طبعًا وعقلاً وشرعًا مع مبالغات من فنون شتى (١) چي اسناد د فعل واحد ته وکړي اشعارًا بان احدًا من الاحدين لايفعل ذالک يعني چي د ورور غوښي دي خوري (٢) استفهام تقريري من حيث انه لايقع الا في مسلم عند کل سامع حقيقة او ادعاء (٣) تعليق د محبت بما هو في غاية الکراهة (۴) تمثيل الاغتياب بأکل لحم الانسان (۵) وجعل المأکول لحمه اخًا للآکل (۶) او بل چي مأکول لحمه ميت هم وي (٧) وتعقيب ذالک بقوله "فکرهتموه" حملاً على الاقرار وتحقيقًا لعدم محبة ذالک من احد.

**درويش وايي:** چي له انس بن مالک ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل لما عرج بي (چي زه خداى پاک اسمانو ته بوتلم) زه پر يو قوم تېر سوم چي نوکان يعني د ګوتو يې له مسو څخه وه يعني تېره وه او خپل مخان او د نورو ځايو غوښي به يې په ګروول، نو ما ورته وويل دا څوک دي چي په داسي عذاب اخته دي؟ فقال اى الله تعالى او جبرئيل: دا هغه کسان دي چي د انسانانو غوښي يې خوړلې او د خلګو په ابرو يې کي به يې بحث کاوه يعني غيبت به يې کاوه د ورور مؤمن، رواه البغوي.

قال ميمون بينا انائم يعني په دې مابين کي چي زه بيده وم د يو حبشي مړه جثه يعني بدن پروت ؤ، يو قائل ماته وايي کل دا وخوره قلت يا عبد الله لم اکل؟ اى بنده د خداى زه يې ولي وخورم، قال بما اغتبت عبد فلان ما ورته وويل ما ذکرت فيه خيرًا، ولاشرًا قال بما سمعت ورضيت چي د هغه وغيبت ته دي غوږ نيولی ؤ او په راضي وې، راوي وايي چي ميمون د هيڅ چا غيبت نه کاوه نه يې څوک پرېښو چي د ده په حضور کي د چا غيبت وکړه سي. ګويا ده يوه ورځ څرنګه اتفاقًا و غيبت

ته غوږ نيولي وُ، نو دا خوب يې وليدی.

**فائده:** د غيبت كفاره داده: عن انس رض ان رسول اللهﷺ قال ان من كفارة الغيبة ان يستغفر لمن اغتبته يعني ان يقول الله اغفر.

وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۚ إِنَّ اللّٰهَ تَوَّابٌ رَّحِيمٌ ﴿١٢﴾

د خدای ج څخه وبېرېږئ بترک ما نهيتم عنه والندم على صدر منكم.

**درويش وايي:** چي دا قول د خدای تعميم بعد التخصيص دی لكه چي د مخه په آيتو كي تېر سو.

**بوه سه:** چي تواب صيغه د مبالغې ده. والمعنى يقبل توبتكم مبالغ في قبول توبتهم حيث يجعل التائب من الذنب كمن لا ذنب له كما في الحديث النبوي الصحيح "الرحيم" مهربانه دی حيث منعوهم من المعاصي التي تضرهم في الآخرة مثل الغيبة والتجسس.

**درويش وايي:** چي البغوي رح وايي چي مقاتل رح وايي چي ورځ د فتح د مكې چي راغله رسول اللهﷺ بلال رض امر كړی چي د مكې بام ته وخېژه او اذان وكړه. بلال رض هم داغسي وكړه، نو عباد بن اسيد ووېل: الحمد لله الذي قبض، حمد دي وي و خدای ته چي زما پلار يې د مخه مړ كړی چي دا ورځ يې نه په وليده، او حارث بن هشام ووېل: اما وجد محمد غير هذا الغراب الاسود (غير د دې تور كارګه بل مؤذن مراد بلال حبشي رض وُ) او سهيل بن عمرو ووېل ان يرد الله شيئًا يغيره، قصد يې دا وُ چي فتح د مكې به بيرته په لاس ورسي يعني بيرته به يې موږ ونسو، او ابو سفيان ووېل چي زه څه نه وايم اخاف ان يخبر به رب السماء (چي خدای ج د اسمان به محمد ته خبر وركړي فاتاه جبرئيل عليه السلام فاخبر رسول اللهﷺ) نو عليه الصلوة والسلام دغه نامورې كسان راوغوښتل او پوښتنه يې ځني وكړه هغو اقرار وكړی بما قالوا فانزل هذه الآية، او په دې آيت كي خدای ج دوی ته زجر وركړی تفاخر بالانساب كما في الجاهلية، والتكاثر في الاموال، او عيب ووېل پر چا په فقر سره.

يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَاكُم مِّن ذَكَرٍ وَأُنثَىٰ وَجَعَلْنَاكُمْ شُعُوبًا وَقَبَائِلَ لِتَعَارَفُوا ۚ

ای خلكو موږ تاسي پيدا كړي ياست د يوه نر او د يوې ښځي څخه، يعني آدم

و حواء مراد د ضمیر المتکلم مع الغیر څخه نوع د تولہ بشر ده، بیا وروسته تر آدم او حواء کل واحد منکم من اب وام فلا مریة لاحد علی الآخر ولا وجه للتفاخر في الانساب، او داسي هم کېدای سي چي دا ایت دي اثبات او ټینګول وي د اخوت چي مانع د غیبت وکرځي.

**درویش وایي:** چي عرب په نسب کي شپږ طبقې دي، وایي چي اعلاها الشعب چي یو جمع عظیم ته وایي چي یوه اصل ته رسېږي (لکه په پښتو کي لفظ د پښتون یا پټان چي اصل یې فتحان دی) او وروسته بیا هغه پر قبائلو مشتمل دی لکه لفظ د عرب، او قبیله بیا و عمائرو ته وېشل کېږي (لکه په پښتنو کي غلجي او دراني) او عمائر بیا بطونو ته شامل دی، لکه په پښتو کي سلیمانخیل، الکوزي وغیرهما. او بطن بیا افخاذ ته شامل دی لکه په پښتنو کي قیصر خیل یا علي خیل وغیره په غلجي کي، والفخذ شامل و فصائلو ته والفصیلة مجمع العشائر ولیس بعد العشیرة.

**یوه سه:** چي د (تتعارفوا اصل یې تتعافوا ؤ یوه تا یې ځني حذف کړه، والمعنی چي تاسي سره وپېژنئ قرب النسب وبعده لا للتفاخر لکه په پښتنو کي چي دراني قبائل پر غلجي قبائلو فخر کوي)

إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِندَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ

په تحقیق هغه عزتمند په نېز د خدای ستاسي هغه دېر تقوا داره دی ثم وثم الی ان ینتهی الی نفس المؤمن، وفي الحدیث الصحیح ان ربکم واحد وابوکم واحد لافضل لعربي علی اعجمي ولا لاعجمي علی العربي ولا لاحمر علی اسود ولا لاسود علی الاحمر الا بالتقوی وعلی هذا اجماع العلماء کذا في بحر العلوم، وقال الشاعر العربي:

الناس من جهة التمثال سواء ... ابا هـــمــو آدم والام حــواء

فان یکن لهــموا من اصلهم ... نسب یفاخرون فالطین والماء

از نسب آدمیانی که تفاخر ورزند، هر کرا تقوی بیشتر باشد او درمرتبه فضل بیشتر باشد.

ولنعم ماقیل: ... الشرف بالفضل والادب لا بالمال والنسب

وعن سمرة بن جندب رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ الحسب بالمال (ای جاه د دنیا) والکرم بالتقوی (ای عزت په اخرت کي) رواه احمد والترمذي. وقال ابن عباس رض

كرم الدنيا الغناء وكرم الآخرة التقوى وعن ابن عمر رضي ان رسول اللهﷺ طاف يوم الفتح (اى فتح مكة) على راحلة يستلم الاركان بمحجنة (په لكړه سره) فلما فرغ (من الطواف) د اوښې د چوكېدو ځاى نه ؤ، نو د خلګو پر لاسو راكښته سو، ثم قام فخطب الناس وقال الحمد لله اذهب عنكم عبية الجاهلية وتكبرها، الناس رجلان (يعني خلك دوه قسمه دي) بر تقي كريم على الله وفاجر شقي مهين على الله (سپک دي په نېز د خداى) ثم تلى يا ايها الناس انا خلقناكم من ذكر و انثى الى اخيرها، ثم قال اقول قولي هذا و استغفر الله لي ولكم، رواه الترمذي والبغوي.

وعن ابى هريرة رضي قال قال رسول اللهﷺ امر الله مناديًا (ناره كونكي يعني ملكه) قال الا اني جعلت نسبًا وجعلتم نسبًا فجعلت نسبي اكرمكم اتقاكم فابيتم تقولوا فلان بن فلان خير من فلان بن فلان فاليوم ارفع نسبي اين المتقون (يعني چي جنت ته يې واستوم) او مسلم د ابى هريره رضي څخه روايت كړى دى قال قال رسول اللهﷺ ان الله لا ينظر الى صوركم واموالكم ولكن ينظر الى قلوبكم (چي په زړه كي دي اخلاص سته) واعمالكم.

## إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ

په تحقيق خداى عليم او خبير دى ببواطنكم وفضائلكم، امام بغوي وايي چي ځني كسان د بني اسد د قبيلې سره د آل و عياله و عليه الصلوة والسلام ته راغله په يو كال كي د كاختى، فاظهروا الاسلام لكن لم يكونوا مؤمنين في السر يعني په زړه كي مسلمانان نه وه، نو دوى د كثرت په سبب د مدينې كوڅې مرداري كړې په قاذوراتو سره، اوپه مدينه كي نرخونه د خوراكي شيانو ډېر لوړ سوه، نو دوى به سهار او مازديګر رسول اللهﷺ ته راتله او دا به يې ورته ويل چي نور عرب چي تاته به راتله پر اوښانو به سپاره وه، و جئناك بالاثقال (يعني د رانه شيان چي د كډې او د كورو شيان دي) او په عيالو سره او موږ ستا سره جنګ ونه كړى لكه بنو فلان او بنو فلان، دا دوى احسان اچاوه پر عليه الصلوة والسلام او غرض يې صدقه غوښتل وه، ويقولون اعطنا اعطنا، فانزل الله عالم الغيب والشهادة.

قَالَتِ الْاَعْرَابُ اٰمَنَّا ؕ

وايي صحراء نشينان چي موږ ايمان راوړی دی، او السدي وايي چي دا آيتونه په هغو اعرابو کي نازل سوي دی چي په سورة الفتح کي خدای ذکر کړي دي، وهم اعراب جهينة ومزينة واشجع وغفار (دا ټوله د قبائلو نومان دي) قالوا آمنا ددې غرض لپاره چي خپل ځانونه او مالونه او عيالونه له جنګه د عليه الصلوة والسلام په امن کي وساتي، نو هغه ؤ چي عليه الصلوة والسلام سره د (۱۴۰۰) کسانو سره عمرې ته تلی دغو قبائلو ته يې هم خلک ورواستول چي تاسي هم راووځئ (دوی د اهل مکې له بيري څخه نه راووتل) او بل ددوی دا ظن ؤ چي عليه الصلوة والسلام او مسلمانان به بيا مدينې ته را ستانه نه سي، يعني کفار مکه به دوی ټوله ختم کړي. لکن هغسي ونه سوه بلکې عليه الصلوة والسلام او مؤمنان ورسره په حديبيه کي د کفارو سره صلح وکړه کما مر بيانه بالتفصيل في تفسير سورة الفتح.

قُلْ لَّمْ تُؤْمِنُوْا وَلٰكِنْ قُوْلُوْٓا اَسْلَمْنَا وَلَمَّا يَدْخُلِ الْاِيْمَانُ فِيْ قُلُوْبِكُمْ ؕ

ووايه ته يا محمد (ﷺ) دوی ته تاسي ايمان نه دی راوړی، ولي ايمان خو صفت د زړه دی عبارة عن تصديق القلب، والاقرار رکن زائد دی لاجراء احکام المؤمنين على من اقر بكلمتي التشهد يعني اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمداً رسول الله.

**پوه سه:** چي اسلام عبارت دی له انقياد ظاهر څخه.

"ولما يدخل الايمان في قلوبكم" او هرګز نه دی داخل سوی ايمان ستاسي په زړو کي، دا جمله حال ده له فاعل څخه د قولوا يا عطف ده پر لم تؤمنوا لپاره د تاکيد د هغه.

وَاِنْ تُطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ لَا يَلِتْكُمْ مِّنْ اَعْمَالِكُمْ شَيْـًٔا ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝

او که تاسي اطاعت او فرمانبرداري وکړه په اوامرو او منهياتو کي د خدای او د رسول د خدای نه کموي خدای ستاسي له اعمال حسنه څخه هيڅ شی يعني ثواب کم نه د رکوي او خدای بخښونکی د ګنهو دی د بندګانو او مهربان دی پر دوی.

إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ ثُمَّ لَمْ يَرْتَابُوا

نه دي مؤمنان مگر هغه کسان چي ايمان يې راوړی وي پر خدای بالتوحيد وسائر الصفات الجمالية والجلالية له تعالى او پر رسول د خدای په رسالت سره يعني بالقلوب مخلصين غير منافقين والامتثال لاوامرهما "ثم لم يرتابوا" وروسته شک نه لري فيما جاء به الرسول ﷺ.

**فائده:** کلمه د ثم چي يې راوړه ددې لپاره چي دا عدم ارتياب به جاري وي په ټولو ازمنه متراخيه ؤ کي الى اخير اجزاء حيوتهم لکه په ابتداء کي د ايمان.

وَجَاهَدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ۚ أُولَٰئِكَ هُمُ الصَّادِقُونَ ﴿١٥﴾

او دوی جهاد کوي د کفارو سره په خپلو مالو او ځانو سره په لاره کي د خدای يعني په ترويج د دين د اسلام، او دا هم ترجمه کېدای سي چي مجاهده د شيطان او د خواهشات نفسيه کوي چي په قرآن کريم کي يې تعبير په هولی کوي. يا مجاهده کوي يعني د عبادات قلبيه او ماليه او بدنيه ؤ. نو پر دې تقدير دا آيت امتثال د ټولو اوامر الهيه ؤ او پرهېز کول د ټولو منهياتو ته شامل دی "أولئک" دغه کسان چي موصوف په دغو صفاتو سره وي دوی دي صادق په دعوی کي د ايمان کامل.

قُلْ أَتُعَلِّمُونَ اللَّهَ بِدِينِكُمْ وَاللَّهُ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۚ

ته ورته ووايه دغو اعرابو ته آيا تاسي خدای ته ورښياست خپل دين بقولکم آمنا، په داسي حال کي چي خدای خبر دی په هغه څه چي په اسمانو کي دي او هغه چي په مځکه کي دي. يعني الله عزوجل خبر دی په ټولو ما في السمٰوات وما في الارض سره فكيف لايعلم ايمانكم.

وَاللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿١٦﴾

او الله په هر شي خبر دی. عطف على ما سبق يعني والله يعلم تاكيدًا للرد على الاعراب.

يَمُنُّونَ عَلَيْكَ أَنْ أَسْلَمُوا ۖ

دوی پر تا احسان واچاوه د خپل اسلام.

**درويش وايي:** چي دا آيت په حال پوري د اعرابو مربوط نه دی، بلکې د دې شان نزول الطبراني په روايت د الحسن ؒ څخه داسي ذکر کړی دی. ان ناسا من العرب قالوا يا رسول الله اسلمنا ولم نقاتلک وقاتلوک بنو فلان قالوا ذالک بعد ما فتحت مكة، فنزلت يمنون عليک الى اخير الآية.

قُلْ لَّا تَمُنُّوْا عَلَيَّ اِسْلَامَكُمْ ۚ بَلِ اللّٰهُ يَمُنُّ عَلَيْكُمْ اَنْ هَدٰىكُمْ لِلْاِيْمَانِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۱۷﴾

بلکې خدای پر تاسي احسان اچوي د دې چي هدايت يې در کړی تاسي ته يعني توفيق يې در کړی د ايمان او په زړو کي يې تصديق در پيدا کړی، که تاسي رشتيا واياست، په "ان كنتم آه" کي اشاره ودې ته ده چي ټوله به په دعوی کي اوس هم صادق نه وي.

**پوه سه:** چي ان شرطيه دی جزاء له ماقبل څخه فهمېږي يعني فالله يمن عليكم الى اخيرها د دې سببه چي د ټولو ايمان اوس هم مشکوک دی، دا آيت خدایؒ راوړی.

اِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ غَيْبَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌ ۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۸﴾

او خبر دی خدای په غيب د اسمانو او د مځکي، او خدای دانا او خبر دی په ما تعملون سره.

**فائده:** مراد له غيب السموات والارض څخه ماغاب عن المخلوق لانه لايتصور الغيب عن الله.

**پوه سه:** چي کلمه د ما که موصوله وي نو عائد يې محذوف دای بما تعملونه، او که مصدريه وي نو معنى يې داده بعملكم و على التقديرين معنى او حاصل يې دادی لايخفى عليه شيئ.

**درويش وايي:** بحمد الله وتوفيقه تفسير د سورة الحجرات وپای ته ورسېدی په وخت کي د ځاښت ورځ د پنجشنبې اول د ذی القعدې د مياشتي سنه (۱۴۳۲) حين كان عمري (۹۸) كاله، ورپسي سورة ق شروع کېږي ان شاء الله تعالى.

اللهم وفقني جميع اجزاء القرآن بالخير والعافية.

سُوْرَةُ قٓ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ خَمْسٌ وَّ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ اَرْبَعُوْنَ اٰيَةً وَّثَلٰثُ رُكُوْعَاتٍ

الحمد لله حمدًا كثيرًا جزيلاً جميلاً طيبًا مباركًا فيه ومباركًا عليه كما يحب ربنا ويرضٰى والصلوة والسلام على سيد نوع البشر الذي وصل به الله عزوجل الى مقام قاب قوسين او ادنى الذي قال عزوجل فيه مازاغ البصر وما طغٰى سيدنا ونبينا ومولانا محمدًا ﷺ وعلى آله واهل بيته واصحابه اجمعين وازواجه امهات المؤمنين وجعلني الله بفضله وكرمه من مجيه في الدنيا والآخرة وما ذالك على الله بعزيز برحمتك يا ارحم الراحمين آمين آمين امين ... بيت:

افاقها گردیده ام بسیار خوبان دیده ام اما توچیزی دیگری

قٓ ۚ وَالْقُرْاٰنِ الْمَجِيْدِ ۟

**درویش وایي:** چي تفصیل د مقطعات قرآنیه ؤ او اختلاف د علماؤ فیها په اول کې د سورة البقره د تفسیر تېر سو، والحق چي دا حروف سِر بین الله تعالی و رسوله ﷺ لایعلم تأویله الا الله.

**فائده:** مظهري وایي چي بعض راسخین في العلم يې هم په تأویل خبر دي، فقیر وایي چي دا خبره دده خلاف المذهب ده، ولې په نېز د احنافو کثرهم الله وقف پر الا الله لازم دی. نوري توجیهاتي چي علماء کرامو کړي دي په هغو سره خدای خبر دی "والقرآن" الواو للقسم، له ابن عباس څخه روایت دی چي والقرآن قسم دی "المجید" ای ذو المجد والشرف، او لکونه کلام الرب المجید، او یا له دې سببه چي څوک چي قرآن زده کړي او په معانیو ځان خبر کړي او عمل يې په احکامو سره وکړي هغه ته خدای عزوجل مجد او بزرګي ورکوي.

**بوه سه:** چي جواب د قسم محذوف دی ای لصدق رسوله المنذر او یا دا لتبعثن الی غیر ذالک.

بَلْ عَجِبُوْٓا اَنْ جَآءَهُمْ مُّنْذِرٌ مِّنْهُمْ

**بوه سه:** چي بل په معنی د قد دی ای قد عجبوا کفار مکة "ان جاءهم" منصوب دی په نزع د خافض ای من ان جائهم "منذر منهم" بیرونکی یعني محمدًا ﷺ من جنسهم او من قومهم چي دد دې څخه د دوی غرض دا ؤ چي دوی د مخه تر دعوی د نبوت په

عدالت دده حتی چي دوی دمخه تر دعوی د نبوت آمين مکه باله، يعني ان من كان كذالک لايکون الا ناصحًا لقومه او ببريږي چي دوی ته دي د خدای عذاب را نه سي، په حديث کي د بخاري راغلي دي چي يوه ورځ عليه الصلوة والسلام د صفا پر غره ودرېدی او پتو يې بنوراوه او سبطو (قومو) ته يې نوم په نوم ناري وهلې يا بني هاشم يا بني عبد مناف الى غير ذالک، نو دوی ټوله ورغله چي څه پيښه ده چي محمد ﷺ تو دي تو دي پر له پسې ناري وهي، دوی چي ورغله عليه الصلوة والسلام ورته وويل: تاسي راته ووا ياست که ما تاسي ته وويل چي يو لښکر ما وليدی په دې شېله کي (وفي رواية وراء هذا الجبل) چي پر تاسي د غارت کولو اراده لري تاسي زما تصديق کوئ؟ هغو ورته وويل: نعم ما جربنا عليک كذبا، بلکې صادق يې همېشه، عليه الصلوة والسلام ورته وويل فاني نذير لكم بين يدي عذاب شديدًا (يعني که ايمان نه راوړئ) ابو لهب ورته وويل تبًا لک (يعني هلاکت دي وي تا لره) الهذا جمعتنا او په څو شکو يې عليه الصلوة والسلام وويشتى. وفيه نزلت سورة تبت يدا ابي لهب تر پايه پوري. رواه البخاري ومسلم عن ابن عباس رضي الله عنهما.

فَقَالَ الْكٰفِرُوْنَ هٰذَا شَيْءٌ عَجِيْبٌ ﴿٢﴾

دا يو كار دی د تعجب وړ.

**پوهسه:** چي هذا اشاره ده دې ته چي خدای ﷻ محمد ﷺ مختاره کړی د نبوت لپاره.

**درويش وايي:** چي په يو بل آيت کي راغلي دي من بيننا ددوی زعم باطل دا ؤ چي مستحق د رسالت خو بايد يو مالدار سرمايه دار سړی وای لکه وليد بن المغيرة په مکه کي، يا يو لوی قومي مشر وای لکه عروة بن مسعود الثقفي په طائف کي، ددوی جاهلانو دا گمان نه ؤ چي رسالت فضل الهي دی يؤتيها من يشآء من عباده يا اشاره وبعث بعد الموت ته کما يدل عليه هذه الآية.

ءَاِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا ۚ ذٰلِكَ رَجْعٌۢ بَعِيْدٌ ﴿٣﴾

دا آيت متعلق دی په محذوف سره تقديره انرجع الى الحيوة. والمعنى آيا چي مو ړ مړه سو او ګرځو خاوري "ذالک" دغه رجع وبيرته ژوند ته "رجع بعيد" يعني بعيده ده له عادت او له امکان څخه.

**درويش وايي**: چي له دوی څخه چي به چا سوال وکړی چي ته چا پيدا کړی يې؟ دوی به ويل چي خدای پيدا کړی يم، نو دوی جاهلان په دې نه پوهېدل چي هغه ذات والا قدرت عظيمه چي پر او بو يې نقشبندي ده يعني نطفه د مور او پلار، ولقد خلقنا الانسان في احسن تقويم کړې ده هغه ذات مقتدر پر خاورو د هغه صورت انساني نقشبندي نسي کولای؟ فانكارهم انكار بعيد من العقل والنقل فافهم هداک الله.

قَدْ عَلِمْنَا مَا تَنْقُصُ الْاَرْضُ مِنْهُمْ ۚ

په تحقيق موږ خبر يو په هغو اجزاء د دوی چي ځمکي خوړلي وي د غوښو د مړو د دوی او له هډوکو څخه وغيرها.

**درويش وايي**: چي رد دی د استبعاد د دوی چي اجزاء تفرقت فلا تعلم حتى تعاد بزعمهم الفاسد، حاصل د رد يې دادی چي د دوی اجزاء متفرقه موږ ته معلوم دي اذ لا يعزب من علمنا شيئ فلا علينا جمعها واعادة الروح فيها.

وَعِنْدَنَا كِتٰبٌ حَفِيْظٌ ۝

او زموږ سره يو کتاب ستر چي محفوظ دی له شيطانانو څخه او د اندارس او تغير څخه (نو فعيل په معنی د مفعول دی) او بعض مفسرين وايي چي فعيل په معنی د فاعل دی ای حافظ لتفاصيل الاشياء كلها چي لوح محفوظ يعلم به من عنده من الملائكة ثم رد الله سبحانه انكارهم بنبوة محمد ﷺ، فقال:

بَلْ كَذَّبُوْا بِالْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ فَهُمْ فِيْٓ اَمْرٍ مَّرِيْجٍ ۝

بلکې دوی تکذيب کاوه په حق سره چي نبوت د عليه الصلوة والسلام دی چي ثابت دی په معجزاتو سره چي خارق د عادت الهي دی کشق القمر وشهادة الاحجار في يد ابی جهل، مظهري وايي چي دا اضراب دی د اضراب اول څخه ولي هغه شی چي ثابت وي په ادلة قطعية ؤ سره فوق دی تر نفس تعجب والاستبعاد.

"لما جائهم" څنګه چي دوی ته راغلی (لماجائهم ظرف دی د كذبوا) نو دوی په يو امر کي دي چي په هغه کي دوی مضطرب دي، يعني عليه الصلوة والسلام ته موږ څه ووايو يعني ګاهي به يې ويل چي شاعر دی او ګاهي به يې ويل چي ساحر دی، ګاهي به يې ويل چي معلم دی يعني بل يې ورښيي، ګاهي به يې ويل چي

مجنون دی کاهي به يې ویل چې مفتر دی یعني په قصده دروغ وايي چې دا اقوال سره ضد او نقیض دي، اوس خدای پاک ددوی د تکذیب رد وکړی، اوس د خپل قدرت دلیل وايي پر بعث بعد الموت.

أَفَلَمْ يَنظُرُوا إِلَى السَّمَاءِ فَوْقَهُمْ كَيْفَ بَنَيْنَاهَا وَزَيَّنَّاهَا وَمَا لَهَا مِن فُرُوجٍ ۝

**پوه سه:** چې همزه د استفهام والتوبيخ ده یعني فکر نه وهي والانکار پر دغه فکر نه وهلو، او کلمه د فاء عطف ده پر مقدر تقديره اکذبوا بالبعث (هذا هو المقدر فلم ينظروا حين كذبوا)

فائدة في جميع الآيات القرآنية چې وروسته تر همزه د استفهام يو د حروف عاطفو څخه راسي معطوف عليه يې مقدر دی په مناسبت د مقام سره كما مثلنا في هذه الآية وقد ذكرت هذه الفائدة مكرراً في هذا التفسير لكي لا يغفل المتعلم منها.

"الى السماء فوقهم" اسمان ته تر دوی لوړ، لفظ د فوقهم يا حال دی د سماء څخه او ظرف متعلق به "كيف بنينها" څرنګه موږ پيدا کړي دي پورته بېله ميله و تنبې "وزيناها" او ښائسته کړی مو دی په لمر، سپوږمی او ستورو سره. نشته څیري ځایونه او چاودي په اسمان کي بلکې یوه سطح املس پر محيط ده مع ان طول زمان بنائها يقتضى الفروج وكلمة من زائده لاستغراق النفي.

وَالْأَرْضَ مَدَدْنَاهَا وَأَلْقَيْنَا فِيهَا رَوَاسِيَ وَأَنبَتْنَا فِيهَا مِن كُلِّ زَوْجٍ بَهِيجٍ ۝

"الارض" منصوب على شريطة.

**فائده:** د منصوب على شريطة معنى داده چې اصلاً لفظ الارض منصوب دی په مدناها سره بیا یې هغه عامل مقدم ځني حذف کړی وروسته یې ذکر کړی.

**پوښتنه:** ددې حذف او بیرته راوړلو فائده څه ده؟

**ځواب:** فائده یې داده چې قاري چې لفظ د الارض منصوب په عامل کي د نصب یې حیران او مترددسي او طالب ته د عامل وروسته چې ذکر سي هغه انتظار یې زائل سي، اهل معاني وايي چې هر علم چې وروسته تر طلب او انتظار حاصل سي هغه الذ وي او اوقع في الذهن وي، والى هذا اشار العارف الجامي":

چه خوش باشد که بعد از انتظاری　　با امید رسد امیدواری

وترجمة الآية: مځکه موږ کش کړې ده طولاً وعرضًا تاچي مستقر د انسانانو او حيوانانو او ددوی د محتاج اليه وګرځي، او موږ اچولي دي يعني پيدا کړي مو دي په مځکه کي يعني فوقها جبال ثوابت چي مځکه ونه ښوري لکه په بل ځای کي د قرآن کريم چي راغلي دي "وانبتنا فيها من کل زوج" او موږ شنه کړي دي په مځکه کي له هره صنفه څخه د نباتاتو او د درختو څخه رزقًا للانسان والحيوان "بهيج" حسن الصورة والبهيجة السرور.

تَبْصِرَةً وَّذِكْرٰى لِكُلِّ عَبْدٍ مُّنِيْبٍ ۝

"تبصرة وذکری" دواړه لفظه منصوب دي علة غاية له ماقبل څخه فان المقصود من خلق الاشياء کونها تبصرة بينائي وتذکرة يعني دال وګرځي پر وجود د صانع مقتدر قديم واجب الوجود کامل الصفات وحکيم "لکل عبد منيب" چي رجوع يې و پېژندلو ته د خدای وي چي فکر په مخلوقاتو کي د خدای و وهي وانما خص العبد المنيب لانه المتنفع بها. چه خوش گفته سعدي شيرازي:

برگ درختان سبز درنظر هوشیار هر ورقی دفتریست معرفت کردگار

وَنَزَّلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً مُّبٰرَكًا فَاَنْۢبَتْنَا بِهٖ جَنّٰتٍ وَّحَبَّ الْحَصِيْدِ ۝

او موږ نازلي کړي دي له اسمان څخه او به مبارکي، يعني کثير النفع چي مراد ځني نفع د انسانانو او د حيوانانو ده کما قال "فانبتنا به جنات" موږ را شنه کړي دي په هغو او بو سره باغونه د رقم رقم مېوو لکه خورما، انګور، انار وغيرها.

**درويش وايي:** چي مظهري وايي چي د حب اضافت و حصيد ته اضافت د عام دی و خاص ته، ولي حب مطلق دانو ته وايي او حصيد چي معنی يې محصود ده يعني په لورو سره رېبل کېږي، تولي داني چي له مځکي څخه راوزي تولي داني نه کوي، بلکي خاصي داني چي د انسانانو منتفع به لکه غنم، اوربشي، جوار، ورجي وغيره، نو دی وايي چي دا داسي اضافت دی لکه اضافت حق اليقين (چي حق تر يقين عام دی لان الظنون قد يکون حقًا وليس بيقين) وکل الدراهم وعين الشيئ، او بعض مفسرين په نقل د مظهري وايي چي دا اضافت من قبيل مسجد الجامع بمعنی مسجد الصلوة الجامع وصلوة الاولی بمعنی صلوة الساعة الاولی انتهی.

او روح المعاني یې داسې ترجمه کړې ده ای حب الزرع الذي من شانه ان یحصد بالمناجل من البر والشعیر وامثالها ، فالاضافة لما بینهما ای الحب والحصید من الملابسة والحصید بمعنی المحصود صفة لموصوف مقدر دی الزرع، بیا ده اشاره ورد ته د هغه تفسیر کړې ده چې د قسم څخه د مسجد الجامع یې بولي یا مجاز په اعتبار د ما یؤل الیه یې بولي. دی وایي لا من قبیل مسجد الجامع ولا مجاز باعتبار ما یؤل الیه کما توهم آه فتأمل وخذ ما صفی ودع ما کدر.

وَالنَّخْلَ بَاسِقَٰتٍ لَّهَا طَلْعٌ نَّضِيدٌ ۝

عطف دی پر جنات، د باسقات معنی طویلات ده یا په معنی د حاملات دی چې ډېره مېوه پورې څړېږي.

**سوال:** خورما خو په جنات کې داخله وه نو تخصیص یې په ذکر سره ولې وکړی؟

**ځواب:** وجه د تخصیص یې داده چې د خورما منافع ډېرې دي او درختې یې ډېرې ځکې دي، روی عن النبي ﷺ باسانید صحیحة کلها عن علي رضي الله عنه قال ان النبي ﷺ قال اکرموا عمتکم (عمه د پلار خور بولي) النخل فانها خلقت من فضلة طینة آدم ابیکم ولیس من شجر شجرة اکرم علی الله من شجرة ولدت تحتها مریم بنت عمران (یعني د عیسیٰ په زېږولو کې) چې هغه هم د خورما درخته وه کما جاء في القرآن العزیز، علیه الصلوة والسلام زیاته کړه چې ستاسې ښځې چې لنګې سي خورما ورکوئ که لنده خورما نه وه بیا تمر یعني وچه خورما ورکوئ. او پښتانه لنګي ښځي ته لېټی ورکوي "لها طلع" د خورما درختې لره مېوه سته (یعني خورما) طلع یې بولي لانه یخرج من النخل اولاً "نضید" پوړ پر پوړ پراته وي (اشارة الی کثرة ثمرها)

رِّزْقًا لِّلْعِبَادِ ۖ وَأَحْيَيْنَا بِهِ بَلْدَةً مَّيْتًا ۚ كَذَٰلِكَ الْخُرُوجُ ۝

"رزقا للعباد" علت او مفعول له د انبتنا دی یا مفعول مطلق د انبتنا دی لکن من غیر لفظه. فان الانبات رزق یعني في المآل یعني اخیر کې "کذالک الخروج" په مثل سره د خروج د نباتاتو د مځکې څخه وروسته تر وچ والي د مځکې یعني نبات نه وُ پر باندې چې دا موت بولي د مځکې لکه د ژمي په وخت کې د خروج څخه مراد خروج دی د مړو له مځکې یعني له قبرو څخه. قیاس د غائب پر شاهد باندې

دی، په بخاري او مسلم کي له ابو هریره ؓ څخه روایت دی قال قال رسول اللهﷺ ما بین النفختین ای نفخة الصعق یعني مرګ ونفخة البعث بعد الموت اربعون، خلګو ورته وویل: یا ابا هریرة ؓ اربعون یومًا قال ابیت، دا نسم ویلای، قال اربعون شهرًا قال ابیت دا نسم ویلای. قالوا اربعون سنة؟ قال ابیت دا نسم ویلای.

**پوښتنه:** چي له ابیت څخه د ابو هریره ؓ څه مراد وُ؟

**ځواب:** د ابو هریره ؓ صرف لفظ د اربعون له قول څخه د رسول اللهﷺ په یاد وُ اربعون یومًا وغیره یې له ذهن څخه وتلې وه نو ځکه یې ابیت ووایه تحرزًا عن الکذب علی رسول اللهﷺ قال ابو هریره ؓ نقلاً عن رسول اللهﷺ ثم ینزل الله من السماء (یعني مطرًا) وفي روایة مثل مني الرجال فینبتون. دا مړي له قبرو څخه راووځي) کما ینبت البقل من الارض (لکه نبات چي له ځمکي څخه راوځي) ولیس من الانسان شيئ الا یبلی (مګر خاوري کېږي) الا عظمًا واحدًا وهو عجب الذنب (چي کوچنی ګردی هډوکی دی چي هغه نه خاوري کېږي) نو دا هډوکی ګویا تخم دی په ځمکه کي منه یرکب الخلق، په دې راتلونکي آیت کي خدای عزوجل تسلي ورکوي و رسول اللهﷺ ته او عذاب د بعضو کفارو او وعید د ما اصاب امثالهم (ای امثال اهل مکة).

كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ وَأَصْحَابُ الرَّسِّ وَثَمُودُ ۝

تکذیب وکړی د مخه تر کفارو د مکې قوم د نوح، یعني نوح ؑ چي زر کاله په پنځوس کم یې قوم ته تبلیغ د توحید وکړی هغو دده مسلسل تکذیب کاوه فاخذهم الطوفان وهم ظالمون.

**درویش وایي:** چي په رس کي اختلاف دی قال صاحب القاموس چي رس هغه څاه (کوهي) ته وایي چي په ډبرو پوخ سوی وي، وقال البغوي ؒ الرس بئر لم تطو بالحجارة والاجر (پخې خښتي) بعض مفسران وایي چي رس یو څاه ؤ په عدن کي لامة من بقایا ثمود، او دوی بادشاه درلودی عادل حسن السریة چي نوم یې عُلیس ؤ پر وزن د زبیر او دا څاه ډېر ښار ته او به ورکولې او د صحرا ځمکو ته وجمیع ما فیها من الدواب والغنم والبقر، او ډېرو خلګو به کار کاوه شپه او ورځ.

**درویش وایي:** لکه په اوسنی زمانه کي باوري یا برمه او شاوخوا کوچني لښتي او

حوضونه يې ورته جوړ کړي وه وما کان لهم ماء غيره، فقال له الملک لما جائه الموت
چي مرګ ورته راغلی يعني علی مقتضی کل نفس ذائقة الموت دوی يې جسد ټول په
داسي روغنو غوړ کړی تاچي صورت يې يادګار دوی ته پاته سي او وروسته نسي او
بد بويه هم نسي او ددوی دا عادت ؤ چي يو ملک محترم به ددوی څخه مړ سو بدن بې
په تېلو ورککن کړی، شيطان ددوی دا فعل غنيمت وګڼی ودخل في جثة الملک بعد
ايام کثيرة، نو څوک چي به د بادشاه زيارت ته راغله شيطان به خبري ورسره کولې په
لهجه د ملک چي اني لم امت زه نه يم مړ سوی بلکې له تاسي څخه غائب سوم چي زه
ووينم چي تاسي څه کار کوئ په غياب کي زما ففرحوا اشد الفرح، نو دوی خوشاله
سوه په سختي خوشالی سره او امر يې وکړی و خپلو خاصو خلګو ته يعني دده په
ژوندون کي چي زما او د زائرينو تر منځ يوه پنډه پرده وځړوئ، په دې کي غرض د
شيطان دا ؤ چي په تغير د صورت ونه پوهېږي د مرګ په سبب، نو خلګو ودراوه يو بت
دده پر صورت چي نه يې خوړک کاوه او نه يې اوبه څښلې او دا بت به خبري کولې من
وراء الحجاب چي زه نه مرم ابدًا او زه خدای يم ستاسي. فصدق کثير منهم يعني
تصديق يې وکړی دده د الوهيت، او مؤمن مکذب دده اقل قليل وه، نو دا دوې ډلې به
همېشه په قيل و قال او اختلاف کي وې او يو د بله سره به يې ګاهي ګاهي جنګونه هم
کول، فبعث الله اليهم نبيًا يوحی اليه في المنام دون اليقظة چي وحي به ده ته راتلې په
خوب کي نه په ويښه چي نوم يې حنظلة بن صفوان ؤ نو هغه دوی ته اعلان وکړی چي
دا صنم بت دی لا روح فيه ولا ينفع ولا يضر خبري چي ستاسي سره کوي هغه شيطان
دی، وان الملک لا يجوز ان يکون شريکًا لله، نو ددوی نبي دوی وېرول له عذاب څخه د
خدای في الدنيا والآخرة او ډېر وعظ يې ورته کاوه هغو به دې نبي ته ازار رساوه او
سره د ډېر ازاره نبي حنظله خپل وعظ ته دوام ورکاوه کما هو شان الانبياء علی نبينا
وعليهم السلام حتی چي دوی هغه نبي قتل کړی او څاه ته يې واچاوه چي هغه يې قبر
سو، نو په دې حال نقمة د خدای نازل سو نو د شپې چي بيدېدل هم ماړه او هم اوبه وه
سهار چي راوېښ سوه د څاه اوبه وچي سوي وې رسۍ يې ټوټې ټوټې پرته وه او په
منځکو کي يې ځوزان، او زمې او نوري درختي خار داره ولاړي وې، او ټوله نراد
ښځي او عيالونه ددوی د تندي او د لوږي څخه مړه سوه وهکذا اخذ العزيز المقتدر.
**درويش وايي:** چي نقله صاحب روح البيان عن التکملة وهو نقله من المقري والله

اعلم، وقال البغوي" روی ابو روق عن الضحاک "كان بئرًا بحضر موت في بلدة يقال لها حاضورا او هغه څلور زره کسه چي ايمان يې راوړی ؤ پر صالح عليه السلام او له عذاب څخه د قوم صالح" يې نجات پيدا کړی ؤ راغلي وه حاضورا ته، نو صالح عليه السلام هوري وفات سو نو د حضورا نوم يې بدل کړی په حضرموت سره لان صالح" حضره ومات فبنوا حاضورا د حاضورا ښار کوټې يې جوړ کړی او دوی کښېنستل پر هغه ځاه باندي يعني مقيم سوه، او دوی د ځان لپاره يو آمر وټاکی او هوري دوی مقيم وه دهرًا طويلًا وتناسلوا حتى چي ډېر سوه، نو يې عبادت د بتانو مختار کړی او کافران سوه نو خدای" دوی ته نبي را واستاوه چي نوم يې حنظلة بن صفوان ؤ نو هغه نبي چي هر څو کوشش وکړی د دوی د ايمان په راوړلو کي، نو دوی حنظلة بن صفوان په بازار کي قتل کړی، نو خدای" دوی ټوله هلاک کړه او نوع د هلاک يې مفسرانو نه ده بيان کړې او معطل پاته سو ځای د دوی و خربت قصورهم، د دوی په باره کي خدای پاک په بل ځای کي د قرآن عزيز وايي: وبئر معطلة وقصر مشيد، او وهب بن منبه" وايي كانوا اهل بئر (التنوين للتعظيم) و اصحاب مواشي يعبدون الاصنام نو خدای پاک دوی ته شعيب عليه السلام را واستاوه (دا هغه شعيب" نه دی چي د موسیٰ عليه السلام خسر ؤ) نو شعيب" دوی ته دعوت ورکړی د ايمان نو دوی په خپل طغيان کي سرسخته وه او په ازار کي د شعيب" ډېر کوشان وه، نو دوی پر شا و خوا د هغه ځاه په خپلو کورو کي ناست وه ځاه ونړيدی فخسف الله بهم وبديارهم مواشيهم (يعني خدای دوی ټوله په مځکه کي خسف کړه سره د اموالو) انتهى قول وهب بن منبه والله اعلم.

"وثمود" يعني قوم د ثمود تكذيب وکړی د ټولو رسولانو اگرچه رسول د دوی يو ؤ چي صالح عليه السلام ؤ لكن تكذيب د يوه رسول تكذيب دی د ټولو لاتفاقهم في المعتقدات.

**يوه سه**: چي د ثمود لفظ بې تنوينه راوړی لانه غير منصرف للعلمية والتانيث بتأويل ثمود بالقبيلة، په بل ځای کي د قرآن عزيز داسي خدای عزوجل وايي: اذ قال لهم اخوهم (يعني په اعتبار د نسب نه د دين) صالح الا تتقون اني لكم رسول امين فاتقوا الله واطيعون قالوا انما انت من المسحرين، ما انت الا بشر مثلنا فأت بآية ان كنت من الصادقين، نو دوی نوع د ايت يعني معجزې داسي ورته بيان کړه چي له دغه غره څخه به اوښه راوځي او هغه به هم د ومره وي لکه دا غر او د هغې به د لسو مياشتو بچی په نس کي وي چي لنګه سي جونګی به يې د ومره وي

لکه مور چي يې ده، د دوى په خيال د قدرت بلکې د امکان څخه وتلې خبره ده، خير هغه د دوى مذکوره شرائط ټول له پر ځاى سوه.

**درويش وايي:** چي بعض راويان د قصې وايي چي دا اوښه چي به چوکه سوه ميل په ميل کي مربع مځکه يې ونيوله. قصه خورا اوږده ده په مختصره توگه صالح ﷺ ورته وويل: ولا تمسوها بسوء، تاسي دې اوښي ته ضرر ونه رسوئ يعني مړه يې نه کړئ، نو دوى يعني ثمود ديانو په مشرى د قذار بن سالف هغه اوښه په ډېرو کسانو مړه کړه جونگي يې ميدان کړه صالح ﷺ خلگو ته وويل چي جونگى يې راگر ځوئ، خو جونگي تر هغه غره پوري ځان ورساوه درې ناري يې وکړې بيرته په هغه غره ننوتى، کريمه: فعقروها دوى اوښه مړه کړه فاصبحوا نادمين فقال لهم صالح تمتعوا في داركم ثلثة ايام ذالک وعد غير مکذوب، نو خداى ﷻ نجات ورکړى سره د څلور زره (۴۰۰۰) مؤمنانو، کريمه: واخذت الذين ظلموا الصيحة يعني جبرئيل ؑ يوه نعره پر وکړه، کريمه: فاصبحوا في ديارهم جاثمين، مړه چي پر زنگنو يې لاسونه ايښي وه له بيري څخه د نعرې د جبرئيل ؑ.

**سوال:** ايوبي ته د قرآن کريم آيتونه راوړې او ترجمه يې نه کوې؟

**ځواب:** د دې آيتو ترجمه په وړاندي جلدو کي د تفسير ايوبي تېره سوې ده.

وَعَادٌ وَّفِرْعَوْنُ وَاِخْوَانُ لُوْطٍ ﴿۱۳﴾

**درويش وايي:** چي "عاد" د يو قوم نوم دى چي کافران وه خداى ﷻ دوى ته نبي هود ﷺ ؤ چي د دوى هم نسب ؤ راواستاوه، او عاد ته يې تنوين ورکړى لا نه منصرف يو علميت پکښې سته، تانيث نسته ور سره لانه بمعنى القوم دون القبيلة لکه په ثمود کي چي قريبًا د مخه تېره سوه چي ثمود غير منصرف دى للعلمية والتانيث باعتبار تأويله بالقبيلة.

**سوال:** دا دوه اعتباره خو په هر يوه کي د ثمود او عاد جاري دي نو ولي په ثمود کي تانيث معتبر کي بتاويل د قبيلة چي غير منصرف سو کما مر او په عاد کي يې تانيث معتبر نه کړى بلکې په تأويل د قوم يې وگرځاوه چي منصرف سو يعني په تنوين سره يې ووايه؟

**ځواب:** دا تغاير مبني دى پر لسان العرب باندي ولا مناقشة على اللسان ومعنى

الآیة کذب عاد المرسلین (جمعیت د مرسلین آنفًا تېر سو) کریمه: اذ قال لهم اخوهم (في النسب لا في الدین) هود الا تتقون اني لکم رسول آمین فاتقوا الله واطیعون، هغو پر خپل کفر او شرک دوام وکړی یعني ایمان یې رانه وړی. کریمه: فاهلکوا بریح صرصر عاتیة (په ډېر تند باد سره چي د ملکو تر کنټرول وتلی ؤ) کریمه: سخرها علیهم (ریح مؤنث سماعي دی ځکه یې ضمیر د مونث ورته راجع کړی) کریمه: سبع لیالي وثمانیة ایام (د اتو ورځو په مابین کي اووه شپې راځي) کریمه: حسومًا (پرله پسې) کریمه: فصاروا صرعی (ای هلاک شده) کریمه: کانهم اعجار نخل خاویة (لکه تنې د درختي د خورما چي له بېخه وخېژي) تشبیه یې د خورما د درختي سره په اعتبار د طول قامت د دوی ده.

"وفرعون" یعني وقومه چي عمالقه یې بلل، چي موسی[ع] او دده ورور هارون[ع] خدای[ع] نبیان ورته راواستول، کریمه: وقال اذهب الی فرعون انه طغی فقل هل لک (ای رغبة) الی ان تزکی واهدیک الی ربک فتخشی.

**پوښتنه**: فرعون ته رسول خو دوه وه موسیٰ[ع] او هارون[ع] چي د ده ورور ؤ نو په قل اذهب کي او په اهدیک کي چي متکلم واحد د مفرد ضمیر چي یوازي و موسی ته راجع دی ولي یې راوړی؟

**ځواب**: اصل رسول خو موسیٰ[ع] ؤ او هارون[ع] پر منزله د وزیر ؤ چي موسی ته چي نبوت ورکړه سو داسي خواست یې وکړی واجعل وزیرًا من اهلی هارون اخی آه، کریمه: فاراه الآیة الکبری (التي هی العصا) کریمه: فاذا هی حیة تسعی وادخل یده في جیبه یخرج بیضاء من غیر سوء (یعني لیس) ایة اخری فکذب وتولی وقال انا ربکم الاعلی فاوحی الله الی موسی ان اسری بعباده لیلا واضرب بعصاک البحر (فانفلق) فکان کل فرق کالطود العظیم، نو بیا موسی[ع] په کچو کي د بحر پرې ایستل بني اسرائیل پس نجات ورکړی خدای عزوجل و موسی او بني اسرائیلو ته کریمه: فاتبعهم فرعون وجنوده فغشیهم من الیم ما غشیتم فلما ادرکه الغرق قال امنت انه لا اله الا الذي امنت به بنوا اسرائیل وانا من المسلمین (فقال الله تعالی) کریمه: الآن وقد عصیت من قبل وکنت من المفسدین فالیوم نحیک ربک ببدنک لتکونن ایة لمن خلفک آه.

"واخوان لوط" او قوم والا ؤ د لوط"يعني كذبوا المرسلين، كريمه: اذ قال لهم اخوهم لوط الا تتقون اني لكم رسول امين فاتقوا الله واطيعون اتأتون الذكران من العالمين (يعني باللواطة) وتذرون ما خلق لكم ربكم (يعني من النساء الزوجات) كريمه: بل انت قوم عادون (اى من الحلال اى الحرام ته تجاوز كوئ) قالوا لئن لم تنته يا لوط لتكنن من المخرجين قال اني لعملكم من القالين (اى المبغضين للواطة) كريمه: فانجاه الله واهله الا امرأته كانت من الغابرين (اى باقين في العذاب) فامطرنا عليهم حجارة من طين (چي د ختو وي او په اور پخې سوي وې).

وَّأَصْحٰبُ الْأَيْكَةِ وَقَوْمُ تُبَّعٍ

او تكذيب د رسولانو يې وكړى د ايكة خلكو، چي يو لوى پراخه ځنګل ؤ د درختو او نبي يې شعيب ؑ ؤ، چي وه يې ويل دوى ته، اخوهم يې نه وو ايه لكه په د مخه انبياؤ كي چي به يې ويل لان شعيب لم يكن من قومهم "اني لكم رسول امين" فاتقوا الله واطيعون الى اخير القصة المشهورة كما في آخر من القرآن العزيز.

"وقوم تبع" دا عطف دى پر ماقبل يعني كذبت قبلهم قوم نوح آه، فالمعنى كذبت قبلهم قوم تبع.

**يوه سه:** چي اسناد د تكذيب يې و قوم ته د تبع وكړى لان التبع كان مؤمنًا بالاتفاق وقومه كفارًا، البغوي ؒ وايي قال قتادة ؒ هم بنوا الحميري وكان ملوک اليمن د خپل لښكر سره راروان ؤ او د الحيرة ښاريې جوړ كړى او د سمرقند ښاريې هم جوړ كړى دى، دى چي يې تبع باله لكثرة اتباعه وعساكره د يمن بادشاهان هر يو تبع بولي لانه يتبع صاحبه د تبايعه قصې ډېري دي چي د تولو بيانول به طول ته مفضي سي خو دا اوسنى چي اخير د تباعه وو ؤ نوم يې ابو كرب (دا يې اسم كنيه ؤ) اسعد بن مليک بن يكرب ؤ، ابن اسحاق وايي ان تبع بن الحسان الحميري تبع اول دى الذي ملک الارض كلها شرقها وغربها، وروسته تبع د مكې د خوني د كعبې مبار كي د نړيدو له لټه كي سو چي سبب يې راويان داسي بيانوي چي بني هذيل چي يوه قبيله وه د عربو هغو تبع ته وويل چي د كعبې تر خونه لاندي يوه خزانه ده چي موږ ته په تاريخ كي معلومه ده، نو كه ته د كعبې خونه ونړوې نو هغه خزانه چي هم سره زر او نور قيمتي جواهرات پكښي سته ستا د مملكت بدلو يه سرمايه وي.

**پوښتنه:** دا نو دوی رښتیا ورته ویل؟

**ځواب:** دوی درواغ ورته ویل قصد یې دا ؤ چي هر چا چي د کعبې مبارکي د نړولو قصد وکړی هغه خدای خرابوي چي سورة الفیل یې په قرآن کریم کي شاهد دی "الم تر کیف فعل ربک باصحاب الفیل" الی اخیر السورة، نو د هذیل د قبیلې دا غرض ؤ چي د تبع د ستوت او غلبې څخه به خلاص سو، او بل سبب دا بیانوي چي تبع چي به پر هر ښار ورغله د ښار خلکو به یې استقبال کاوه او دده اطاعت به یې کاوه، او اهل مکه داسي ونه کړه، تبع بوزیر خود گفت که این چه شهر است وچه قوم اند که درخدمت وطاعت ما تقصیر نمودند باوجودی آنکه جهانیان سرهای خود بر خط طاعت ما نهاده اند، وزیر گفت که ایشان را خانه است که اورا کعبه گویند، مگر دوی د هغې خوني په سبب تکبر کړی دی چي ستا په خدمت کي حاضر نه سوه، د تبع په زړه کي دا وه چي خونه به نړوې او نران دد ې ښار به وژنم او ښځي به یې په حصارت څني بیایم، هنوز تبع این اندیشه تمام نکرده بود که رب العزت اورا بدرد سر مبتلا نمود تاکه او طاقت آن درنماند واب بدبوی از چشم وگوش وبینی وی کشاده شد که هیچ کس بنزدیکی او قرار نبود یعنی از بد بویی آن آب روان از بینی و گوش و دهان طبیبان که همراه او بودند همه و همه از معالجت وی عاجز گشتند.

گفته که بیماری او از چهار طبع بیرون افتاده یعنی دموی، صفراوی، بلغمی و سودایی، وروسته یو ډیر پوه سړی ؤ وریاندي راغلی او ورته وه یې ویل ایها الملک ته د زړه حال و ماته ووایه زه دد ې درد دوا کولای سم، تبع ورته وویل چي زما په زړه کي دا وه چي دا خونه به نړوم او نر یې وژنم او ښځي به یې په حصارت بیایم، دانشمند گفت زینها رای ملک این اندیشه مکن واز ین نیت برگرد وتوبه کنید که این خانه خدای قادر است، که آنرا بحفظ خویش میدارد وهر که قصد خراب این خانه کند دمار ازوی برآرد، تبع پند را قبول کرد واز آن قصد که در دل داشت توبه کرد فوراً همه دردها که ملک درسر و بشر ودهان وغیره داشتد رفع و دفع شدند، وتعظیم خانه خدا و اهل مکه بجا آوردند وایمان آورد بدین ابراهیمؑ، او هغه قوم د هذیل چي تبع ته یې شیطانت کړی ؤ تر کعبې لاندي یې د هغو لاسونه ورپرې کړه او پښې یې

هم ورپرې کړې او په سترګو يې تاوده مېخونه ورچخ کړه بيا يې په دار کړه او تبع په شعب البطائح کي واړول (چي د يوې فراخي شېلې نوم دی) او د مکې مکرمې خونې کعبې شريفې دروازه نه درلوده دروازه يې پکښې کښېښول او بيت الله الشريف ته يې ليک داره کشميري پوښ ورکړی وهو اول من کسى البيت او تبع شپږ ورځې د مکې په ښار کي تيري کړې او هر ورځ يې زر زر اوښان خيراتول.

**مروښ وايي:** چي تبع په دين کي د يهودانو داخل سوی دی، او قصه يې پر بل ډول بيان کړې ده، والله اعلم، راويان د صحيح قصې وايي: چي وروسته د مکې تر قيام تبع راهي سو د يثرب پر خوا چي د مدينې منورې پخواني نوم دی، ودرآن وقت شهر وبناهای نبوده يک چشمه آب بوده وتبع لشکر خود بسر آن چشمه فرو آوردند راويان د قصې وايي چي د تبع سره تقريبًا دوه زره تاريخ پوهان ورسره وه چي په تاريخ قديم کي دوی ليدلي وه چي په نامه د يثرب د عربو او يهودو په محکه کي دار الهجرة د نبي اخير الزمان به وي او ځای د نزول د قرآن به وي څلور سوه کسه چي په دوی کي عالمتر او فاضلتر وه يو د بله يې سره وويل چي د دې يثرب څخه به موږ مفارقت نه کوو، شايد امکان سته چي موږ به نبي اخير الزمان ﷺ ووينو يا زموږ زامن يا لمسيان ئم وئم دی ووينې، دا موضوع دا څلور سوه دانشمندانو و تبع ته عرض کړه تبع منظور کړه، او امريې وکړی چي څلور سوه سرايونه دې بناء سي چي د هر عالم سرای جلاوي او د تبع سره ورسره مينځيانې څلور سوه يې ازادې کړې او هر عالم ته يې يوه په نکاح ورکړه او تبع دوی ته وصيت وکړی چي تاسې دلته په يثرب کي اوسېږئ، راويان د قصې وايي چي انصار رض د مدينې منورې له نسل څخه د دغو څلور سوو عالمانو دي، او تبع په خپله يو مکتوب نوشته کړی چي مضمون يې داسې ؤ: ای پيغمبر اخير الزمان ای برګزيده خداوند جهان ای هغه نبي چي په ورځ د قيامت شفاعت کوونکی د ګناه کارانو يې، زه پر ملت ستا يم او ستا د نيکه ابراهيم يم، زه که تا ووينم او که دې نه ووينم هامه هېروه په ورځ د قيامت او پر کاغذه يې زرين مهر ولګاوه او پر مهر داسې نوشته وه: لله الامر من قبل ومن بعد يومئذ يفرح المؤمنون بنصر الله او پر لفافه داسې نوشته کړه الى محمد بن عبد الله خاتم النبيين و رسول رب العالمين ﷺ من تبع امانة الله في يد من وقع الى ان يوصله الى صاحب وابو ايوب الانصاري رضي الله عنه چي عليه الصلوة والسلام دده کورته کښېنته سو يعني په ورځ کي د هجرت

د فرزندانو څخه د هغه عالمو چي تبع ته يې نصيحت کړی و تا چي خدای تبع د هغه ناجوړی څخه جوړ کړی کمامر، ابو ايوب ﷺ د تبع خط و عليه الصلوة والسلام ته ورکړی عليه الصلوة والسلام وعلي ته ورکړی چي وو ايه هغه چي وو ايه خبري د تبع عليه الصلوة والسلام واوريدلي او تبع ﷺ ته يې دعاء وکړه.

**درويش وايي:** چي ابو حاتم رقاشي څخه حکايت کوي چي دی وايي چي ابو کرب اسعد الحميري من التبايعة في اليمن آمن بالنبي ﷺ قبل ان يبعث بسبع مائة سنة (۷۰۰) کاله د مخه، او سيدتنا و امنا عائشة ﷺ وويل لاتسبوا تبعًا فانه کان رجلاً صالحًا، سعيد بن جبير ﷺ وايي چي تبع الحميري اول سړی و چي پر کعبه شريفه يې پوښ واچاوه، روی البغوي بسنده عن سهل بن سعد قال رسول الله ﷺ لاتسبوا تبعًا فانه قد اسلم.

كُلٌّ كَذَّبَ الرُّسُلَ فَحَقَّ وَعِيْدِ ﴿۱۴﴾

ای کل واحد او کل قوم، په "کل" کل تنوين عوض د مضاف اليه دی.

**پوهه:** چي افراد د ضمير په کذب کي په اعتبار د لفظ د کل دي چي مفرد دی او رسل يې په صيغه د جمع راوړی لان تکذيب الواحد منهم تکذيب الکل لاشتراکهم في العقائد "فحق وعيد" يعني وجب عذابي الموعود وکل ذالک يحل (حلول کوي يعني نزول کوي بهؤلاء الکفار مکذبي الرسل)

اَفَعَيِيْنَا بِالْخَلْقِ الْاَوَّلِ ۚ بَلْ هُمْ فِيْ لَبْسٍ مِّنْ خَلْقٍ جَدِيْدٍ ﴿۱۵﴾

رد دی پر مشرکينو چي د بعث بعد الموت څخه منکر دي. په قاموس کي وايي: عي عن الامر عجز عنه.

**فائده:** الهمزة للانکار على العجز والعي والفاء للعطف والتعقيب، وهذه الآية لکه مضمر ن قوله تعالى افلم ينظروا الى السماء کيف بنيناها الآية، والحاصل بنينا السماء بلا فروج ومددنا الارض والقينا فيها رواسي وانزلنا من السماء ماء وانبتنا فيها ما ذکر من قبل فلم نعيى بخلقها الاول لکه چي کفار يې ويني او اقرار هم په کوي فکيف نعي بالاعادة بعد الموت والحال ان اول الخلق ليس باهون من الاعادة فما للکافرين حيث ينکرون الاعادة.

"بل هم في لبس" بلکې کفار په شک او شبه کې دي (بلکې په شدید انکار کې دي) د نوي خلقت څخه، قال رسول الله ﷺ یقول الله تعالی کذبني ابن آدم (خدای پاک وایي، د درواغو نسبت وکړی ماته انسان او ده ته زما دا تکذیب نه ښاییدی) وشتمني ولم یکن له ذالک، اما تکذیبه ایای فقوله لن یعیدني کما بدءني ولیس اول الخلق باهون من الاعادة، واما شتمه ایاي فقوله اتخذ الله ولدًا (ای عیسی والملائکة) وانا الله احد الصمد الذي لم الد ولم اولد ولم یکن لي کفوًا احد، رواه البخاري، وترجمة الحدیث ظاهرة ان شاء الله تعالی.

وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ وَنَعْلَمُ مَا تُوَسْوِسُ بِهِ نَفْسُهُ

لام موطئه د قسم محذوف دی، او په تحقیق موږ پیدا کړی دی انسان، او موږ خبریو او علم لرو دده پر پټو خبرو چې وسوسه وراچوي په خیر و شر نفسه یعني تکلم نه په وکړي.

**بوه سه:** چې اکثر استعمال د وسوسه په امور کې د شر او د ګناه او د الهام استعجال په کارو کې د خیر دی.

**بوه سه:** چې وسوسه صوت خفي ته وایي، والمراد ههنا هغه خبره د شر ده چې د سړي په زړه کې ور وګرځي.

**فائده:** کلمه د ما موصوله ده والهاء زائدة ولې چې توسوس په خپله متعدي دی، والضمیر في به عائد الی ما الموصولة ولې خالق د انسان او د وسوسو خدای جل جلاله دی.

وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِيدِ ﴿١٦﴾

او موږ نژدې یو و انسان ته یعني په اعتبار د علم پر احوالو دده، حبل دلته په معنی د رګ دی، واضافة الی الورید بیانیة من قبیل شجرة الاراک ویوم الجمعة ټوله جمله د نحن اقرب آه حال من فاعل خلقنا.

**بوه سه:** ورید یو رګ دی چې په زړه پورې متصل دی چې هر وخت چې هغه قطع سي سړی مري او وریدان دوه دي چې پر یوه او بله خوا دي د غاړې او دده پر اته دي د مخ پر خوا متصلان دي په ورید رګ پورې راشوه سوي دي له سر څخه، ورید یې په دې بولې چې روح په دوی کې راځي.

**بوه سه:** چې حبل الورید کنایه ده له نهایت قرب څخه، شیخ سعدي وایي:

دوست نزدیکتر زمن بمنست — وین عجب ترکه من ازو دوام
چـه کـنم باکه تـوان گفت — که او بامـن ومـن مـهجورم

إِذْ يَتَلَقَّى الْمُتَلَقِّيَانِ عَنِ الْيَمِينِ وَعَنِ الشِّمَالِ قَعِيدٌ ﴿١٧﴾

ظرف لقوله ونحن اقرب آه.

**پوه سه:** چي مفعول د يتلقى محذوف دى يعني دده خبري او عمل اى يأخذان له ملتقيانو څخه مراد هغه دوې ملكي دي چي كرام كاتبين يې بولي چي د هر انسان ښه او بد نوشته كوي "عن اليمين وعن الشمال" پر راسته طرف چي كاتب الحسنات ملكه ده او پر چپه طرف چي كاتب السيئات ملكه ده.

**پوه سه:** چي عن اليمين او معطوف پر هغه متعلق دى په قعيد پوري او مراد له قعود څخه مراد ضد د قيام نه دى.

**فائده:** قعيد پر وزن د فعيل دى په معنى د فاعل دى لكه جليس په معنى د المجالس، او قعيد په معنى د لازم دى يعني دا دوې ملكي د انسان سره لازم دي د مرګ تر وخته پوري.

**پوښتنه:** قعيد خو مفرد دى نو پر ملكين چي دوې دي څرنګه يې حمل صحيح كيږي؟

**ځواب:** بعض مفسرين وايي چي د فعيل پر يوه او پر ډېرو اطلاق صحيح دى كما في قوله تعالى "والملائكة بعد ذالك ظهير" چي ملائكه جمع دى او ظهير مفرد دى، او بعض علماء وايي چي اصل د كلام داسي ؤ: عن اليمين قعيد وعن الشمال قعيد فحذف الاول لدلالة الثاني عليه.

**فائده:** په دې آيت كي اشاره ودې ته ده چي خداى "كه څه اقرب تر حبل الوريد دى لكن دا دوې ملكي يې د انسانانو د ښو عملو او بدو عملو لپاره ورسره كړي دي لپاره د يو حكمت چي الزام الحجت پر انسانانو دى په ورځ د قيامت كي ورنه خداى عزوجل په داسي كارو د انسانانو خبر دى چي دا ملكي په هغو كارو نه دي خبري لانه تعالى يعلم ما في الصدور.

مَا يَلْفِظُ مِنْ قَوْلٍ إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيبٌ عَتِيدٌ ﴿١٨﴾

اى لا يلفظ الانسان من فيه.

**پوه سه:** چي من زائد دی او قول مفعول به دی د يلفظ والتقدير لا يلفظ قولا
"الا لديه" په نېږد دهغه "رقيب" دی ملک منتظر تا چي په عمل نامه کي يې
نوشته کړي "عتيد" ای حاضر معه.

**فائده:** استثناء مفرغ ده صفت لقول، والتقدير مايلفظ من قول في حال من
الاحوال الا لديه رقيب.

**فائده:** الحسن" وايي چي په دوه حاله کي ملکي له انسان څخه ګوښه کېږي،
يو په حال کي د قضاء حاجت او بل په وخت کي د جماع، او مجاهد" وايي چي هر
شی د انسان ملکي نوشته کوي حتی چي د مرض په وخت کي ګنګېروی کوي، او
عکرمه" وايي چي ملکي نه نوشته کوي مګر هغه قول يا فعل چي ثواب يې پکښې
وي يا عذاب يعني امور مباحه نه نوشته کوي، روايت کړی دی بغوي" عن ابی
امامة" قال قال رسول الله ﷺ كاتب الحسنات على يمين الرجل (ای والانثی)
وكاتب السيئات على يسار الرجل (ای والانثی) وكاتب الحسنات امير على
كاتب السيئات فاذا عمل حسنة كتبها صاحب اليمين عشرا (بدون المشورة
كاتب اليسار) واذا عمل سيئة قال صاحب اليمين لصاحب الشمال پرېږده
يعني مه يې نوشته کوه تر اووه ساعته پوري لعله يسبح ويستغفر.

**درويش وايي:** چي تصريح يې په انثی ونه کړه لان النساء تبع للرجال في كثير
من احكام القرآن الا ما يختص بهن كالحيض والنفاس وغيرهما.

وَجَآءَتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ بِالْحَقِّ

او راغله سختي د مرګ، مراد ځني شدت دی چي د سړي عقل زائلوي له دې
سببه يې تعبير په سکرة ځني وکړی استعارةً، ولي چي مسکر لکه خمر چي سړی
وڅښئي عقل يې زائلېږي.

**پوه سه:** چي جاء وجائت ونفخ وكشفنا که څه هم مستقبل دي تعبير يې په
ماضي وکړی ليتقن وقوعها "بالحق" كلمة الباء اما للتعدية كما في قولك جاء
الرسول بالخبر، فالمعنى حضرت الموت وحضرت سكرة الموت بحقيقة الامر
الذي نطق به كتاب الله، كريمه "كل نفس ذائقة الموت" او بحقيقة الحال من
سعادة الميت وشقاوته او يا کلمه لپاره د ملابست ده كما في قوله تعالى في صفة

الزيتون تنبت بالدهن اى متلبسة بالدهن، والمعنى ههنا متلبسة بحقيقة الامر او بالحكمة، او يا مراد له حق څخه موت و مابعده من البعث والجزاء بالجنة او النار.

**حكايت:** يو سړی عمر ﷺ ته دده د خلافت په وخت کي راغلی، فقال اني احب الفتنة واكره الحق واشهد بما لم اره، عمر﵁ دی بندي کړی ولي چي ظاهر د خبرو د هغه خلاف الشرع وه، نو دا قصه و حضرت علي﵁ ته ورسېده، فقال: يا عمر حبسته ظلمًا دا سړی تا په ظلم بندي کړی دی، عمر﵁ ورته وويل: و كيف ذالک؟ علي﵁ ورته وويل لانه يحب المال والولد، وقال الله تعالى انما اموالكم و اولادكم فتنة، ويكره الموت وقال الله تعالى وجائت سكرة الموت بالحق ويشهد بالله انه واحد ولم يره، نو هغه سړی يې د ډېر عذر ويولو وروسته د عمر﵁ له بنده ازاد کړی، او عمر﵁ دا وويل لو لا علي لهلک عمر.

ذٰلِكَ مَا كُنْتَ مِنْهُ تَحِيْدُ ﴿۱۹﴾

اشارة الى الحق بمعنى الموت او الجزاء "ما كنت" ايها الانسان "منه تحيد" يعني تېښتېدې د هغه څخه يعني موت دي نه خوښاوه.

**درويش وايي:** چي كه مراد له انسان څخه كافر وي خو دا تولي خبري پر حقيقت دي، او كه لپاره د جنس وي نو دا په اعتبار د اغلب افرادو دی، قال المولوي المعنوي في المثنوي:

**بس رجال از نقل عالم شادمان وزبقايش شادمان زين كودكان**

**حكايت:** بعض اولياء الله ته په وخت كي د زكندن عزرائيل﵇ ځان ورښكاره کړی هغه داسي ورته وويل:

**پيش تر آ پيش تر آ جان من لبيک در حضرت سلطان من**

وَنُفِخَ فِي الصُّوْرِ ذٰلِكَ يَوْمُ الْوَعِيْدِ ﴿۲۰﴾

او پوه به کړل سي په صور کي د اسرافيل﵇ (اى نفخة البعث) "ذالک" يعني وقت ذالک النفخ لان ذالک اشارة الى النفخ والمضاف محذوف كما قلت ليصح حمل يوم الوعيد عليه "يوم الوعيد" يعني يوم تحقق الوعيد چي رسولانو به كفارو ته ويل يعني په ورځ د عذاب د كفارو.

وَجَآءَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّعَهَا سَآئِقٌ وَّشَهِيْدٌ ﴿٢١﴾

او رابه سي هر نفس يعني كه مؤمن وي او كه كافروي په داسي حال كي چي دده سره به ورسره وي، سعيد بن منصور او عبد الرزاق او ابن جرير وابن ابى حاتمؒ په خپلو تفاسيرو كي د عثمان بن عفان ﷺ څخه په تفسير كي دددې آيت داسي وويل: سائق يسوقها الى امر الله تعالى وشهيد چي شاهدي اداء كوي پر عمل د هغه نفس.

لَقَدْ كُنْتَ فِيْ غَفْلَةٍ مِّنْ هٰذَا فَكَشَفْنَا عَنْكَ غِطَآءَكَ فَبَصَرُكَ الْيَوْمَ حَدِيْدٌ ﴿٢٢﴾

ته وې، اى كافره (باضمار القول اى يقال له) په غفلت كي له دغه عذاب څخه ددې ورځي (يعني منكروې وانكارك عن البعث بعد الموت) موږ ايسته كړه پرده د غفلت ستا له سترګو څخه يعني پرده د غفلت له امورو څخه د آخرت چي ته په شهواتو كي غرق وې او د هغو شهواتو سره دي الفت ؤ، او د رسولانو چي مؤيد بالمعجزات به وه پر هغو به دي غوږ نه نيوه چي په نن پسي سبا سته، او دا قول د خداىؒ ستاسي په باره كي نازل سوى دى: ختم الله على قلوبهم وعلى سمعهم وعلى ابصارهم غشاوة. وقوله كلا بل ران على قلوبهم وقوله وفي اذانهم وقر.

"فبصرك اليوم حديد" نو ستا سترګي ايها الكافر نن ورځ تېزېدې هر شى چي په دنيا كي څني منكروې هغه به وينې.

وَقَالَ قَرِيْنُهٗ هٰذَا مَا لَدَيَّ عَتِيْدٌ ﴿٢٣﴾

او ووايي هغه ملكه چي په دنيا كي دده سره ملګرې وه دغه د دنيا كافر زما په نېز حاضر دى.

**بوه سه:** چي هذا اشاره يا و شخص ته ده كما مريا و ديوان او عملنامې ته ده.

اَلْقِيَا فِيْ جَهَنَّمَ كُلَّ كَفَّارٍ عَنِيْدٍ ﴿٢٤﴾

واچوئ (خطاب من الله عزوجل للسائق والشهيد او للملكين من خزنة النار اويا خطاب ويوې ملكي ته.

**سوال:** القيا خو تثنيه ده يعني فاعل يې مثنى نه دى؟

**ځواب:** تثنيه د فاعل لپاره د تاكيد دى لكه تثنيه د فعل چي لپاره د تاكيد

راتلای سي ''عنید'' هر لوی کافر چي معاند د حق به وُ په دنیا کي، کفار صیغه د مبالغې ده، او عنید فعیل دی په معنی د مفعول دی.

مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ مُّرِيبٍ ﴿٢٥﴾

چي منع کونکی به وُ د مال یا زکوٰة مفروضه یا نور واجب په مال کي د ده کنفقة ذی الرحم المحرم الفقیر یا شل یا ړوند وغیره ''معتد'' ظالم وي چي توحید ته خدای ؒ یې غاړه نه ایښوول ''مریب'' چي شک به یې وُ په خدای ؒ کي یا في دینهٗ.

الَّذِي جَعَلَ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ فَأَلْقِيَاهُ فِي الْعَذَابِ الشَّدِيدِ ﴿٢٦﴾

هغه څوک چي ګرځول به یې په دنیا کي د خدای عزوجل سره اله یعني معبود لکه مشرکین د مکې یا مشرکین د ټولي نړی، نو واچوئ دغه کسان په عذاب سخت کي د جهنم، توجیه د القیا انفًا تېره سوه.

قَالَ قَرِينُهُ رَبَّنَا مَا أَطْغَيْتُهُ وَلَٰكِن كَانَ فِي ضَلَالٍ بَعِيدٍ ﴿٢٧﴾

وویل ملګري د ده (له قرین څخه مراد ملک مؤکل به دی. کذا قال ابن عباس رض وسعید بن جبیر ومقاتل، سعید بن جبیرؒ وایي چي دا خبره ملک هلته کوي چي کافر وایي رب ان الملک زاد علی في الکتابة فیقول الملک) ''ربنا ما اطغیته'' یعن یما یې نسبت و کفر او طغیان ته نه دی کړی یعني دی په خپل اختیار طاغي ؤ ''ولکن کان في ضلال بعید'' لکن دی په خپله په ضلال کي ؤ چي بعید له حق څخه ؤ، او بعض مفسرین وایي چي مراد له قرین څخه هغه شیطان دی چي د ده ملګری ؤ یعني کافر وایي چي زه ګمراه کړی وم زما شیطان، نو شیطان وایي ربنا ما اضللته ولا اغویته لکن کان في ضلال بعید البتة ما څه کومک ورسره و کړی، ولي چي اغوا د شیطان په هغه چا کي تاثیر کوي چي ناپوه وي مائل و فجور ته وي، کما قیل حکایة عن قول الشیاطین ماکان لي علیک سلطان الا ان دعوتکم فاستجبتم لي فلا تلوموني بل لوموا انفسکم.

قَالَ لَا تَخْتَصِمُوا لَدَيَّ وَقَدْ قَدَّمْتُ إِلَيْكُم بِالْوَعِيدِ ﴿٢٨﴾

وایي (یعني الله عزوجل وایي) زما په حضور کي چي موقف د حساب دی

تاسي دعوی یو پر بل مه سره کوئ چي یا کافران و وایي چي ملکو پر موږ ظلم کړی دی ناحقه شیان یې راپسي نوشته کړي دي حتی چي ملکي ربنا ما اطغیته آه (موږ طغیان نه دی کړی چي په دوی پسي مو ناحقه شیان نوشته کړي وه) یا کافران و وایي چي موږ خو شیطانانو خطایستلي ۇ حتی شیطانان دا و وایي ربنا ما اطغیته آه "وقد قدمت الیکم بالوعید" ما تاسي ته د مخه خبر د وعید درکړی ۇ یعني په دنیا کي په کتابو کي خپل او پر ژبه د رسولانو، نو اوس تاسي کوم حجت نه لرئ چي ځانو نه له عذابه خلاص کړئ چي ځاهي په ملکو پوري دروا غ غوټه کوئ او ځاهي د کفر و شیطانانو ته نسبت کوئ.

مَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ لَدَيَّ وَمَا أَنَا بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيدِ ﴿٢٩﴾

نه بدلیږي هغه قول چي ما کړی ۇ زما په نیز په قیامت کي (چي هغه قول دا دی: ان الله لا یغفر ان یشرک به ویغفر ما دون ذالک لمن یشاء، نو تاسي مشرکان د بخښني د شرک طمع مه کوئ په اعذار کاذبه ۇ سره) او نه یم زه ظلم کونکی پر بندګانو باندي چي زه دي د کفر عذاب ناحقه چا ته ورکړم.

**سوال:** ظلام صیغه د مبالغې ده نفي د مطلق ظلم د خدای څخه نه کوي؟

**ځواب:** دا صیغه دلته لپاره د نفي د مطلق ظلم ده.

**پوښتنه:** نو خدای عزوجل صیغه د مبالغې ولي راوړه؟

**ځواب:** دا تعریض دی پر کفارو چي ظلام تاسي یاست چي د خالق السموات والارض سره مو بتان جمادات په عبادت کي شریک کړي وه، کما قال الله عزوجل بل اؤلئک هم الظالمون.

يَوْمَ نَقُولُ لِجَهَنَّمَ هَلِ امْتَلَأْتِ وَتَقُولُ هَلْ مِن مَّزِيدٍ ﴿٣٠﴾

هغه ورځ چي موږ و وایو دوږخ ته چي آیا ته ډک سوې، ظرف دی د ماقبل څخه یا منصوب په اذکر سره دی.

**درویش وایي:** چي چونکه خدای عزوجل وعده کړې وه "انه لیملأن جهنم من الجنة والناس" فهذا سوال د خدای له جانبه څخه دی لتصدیق خبره وتحقیق وعده "وتقول" ای جهنم (مؤنث سماعي دی) عطاء، مجاهد او مقاتل وایي چي "هل" استفهام انکاري

دی یعني امتلئت نو نور ځای په ما کي نسته یعني لایتصور المزید من الامتلاء.

**سوال:** جهنم پر دې تقدیر چي په ما کي نور ځای نسته، خبري یې ولي اوېدې کړه خو داسي کافي وه چي لا؟

**ځواب:** جهنم چي دا خبره وکړه تأدبًا مع الله سبحانه وتعالی او بل ددې لپاره چي جواب مطابق د سوال سره سي.

**درویش وايي:** چي په دې کي اختلاف دی د علماؤ چي دا سوال او جواب د خدای پاک او د جهنم تر مابین محمول پر حقیقت دي او ځرنګه بعض علماء وايي چي آیت محمول دی علی منهاج التمثیل والتخیل د تهویل د امر د جهنم یعني چي خلګ او کفار له جهنم ځخه وېرېږي یعني کافران د انس او جن. والحق عند اهل الله چي دا سوال او جواب محمول پر حقیقت دی یعني خدای عزوجل په دوږخ کي د نطق توان اېښی دی کما ینطق الجوارح والاعضاء بالمعاصي علی صاحبها فان الله علی کل شیئ قدیر، او دا مسلم عند الکل ده چي امور د اخرت کلها او جلها علی خلاف امور الدنیا، وقد دلت الاحادیث علی تحقیق الحقیقة فلا وجه للمعدول الی المجاز والتمثیل کما ثبت في الاحادیث چي دوږخ هجوم او حمله کوي پر کافرانو او ملائکه یې په ځنځیرانو کشوي، او دا هم په حدیث شریف کي راغلي دي چي مؤمن چي پر پل صراط تېرېږي دوږخ ورته وايي: جز یا مؤمن فان نورک اطفاء لهبی، تېرېږه ای مؤمنه ولي ستا نور د ایمان زما لمبې را وژني ونحو ذالک مما یدل علی حیاتها ای جهنم عند الله وادراکها بل ان مطلق الجمادات لها تلک الحیوة کما تشهد الحجارة الصغیرة في ید ابی جهل بنبوة ﷺ.

**درویش وايي:** چي مظهري له بخاري او مسلم ځخه یو حدیث رانقل کړی دی چي په هغه کي بعض متشابهات الفاظ سته. او دې ته یې هم اشاره نه ده کړې چي دا د متشابهاتو ځخه دي نکل علمه الی الله تعالی، او تأویل متأخرینو یې هم نه دی ذکر کړی، او په ظاهري ترجمه سره یې مجسمه استدلال وايي یعني چي خدای جسم دی پښې لري لاسونه لري، دلته هغه ټول بالتفصیل نسي ذکر کېدای ځکه چي سبب د درد سر ګرځي و متعلمینو ته د تفسیر ایوبي او یا به ځه ناځه شک په جهت کي د خدای عزوجل پیدا سي. فلذا ترکنا ذکره، وقد ورد کلموا الناس علی قدر عقولهم.

وَاُزْلِفَتِ الْجَنَّةُ لِلْمُتَّقِيْنَ غَيْرَ بَعِيْدٍ ﴿۳۱﴾

نژدې سي (عطف دی علی نفخ) جنت د متقیانو لپاره، یعني متقي عن الشرک وسائر انواع الکفر. لفظ د غیر منصوب دی ای مکانًا غیر بعید او زمانًا غیر بعید.

هٰذَا مَا تُوْعَدُوْنَ لِكُلِّ اَوَّابٍ حَفِيْظٍ ﴿۳۲﴾

دغه (ای الثواب والازلاف) هغه شی دی چي ستاسي سره یې وعده کړل سوې وه (یعني په دنیا کي علی الایمان والعمل الصالح) "لکل اواب" بدل دی د من المتقین څخه باعادة الجار.

**پوه سه:** چي اوب رجوع ته وایي او اواب صیغه د مبالغې ده ای رجاع الی الله عما سواه ظاهرًا وباطنًا یعني لا کالمنافق، وقیل رجاع من المعاصي الی الطاعات، او سعید بن المسیب وایي چي گناه وکړي او بیرته توبه څني وکاږي.

توبه کن امروز تو هرگز نه گو که فردا کنم
شاید بمیری صبحدم فردا نیابی در شمر

"حفیظ" یعني دائم الحضور لایغفل عن الله طرفة عین (یو چشم زدن) او ابن عباس رض وایي: الحافظ لاوامر الله وفي روایة اخری عنه رض چي خپل په گنهو کي فکر وهي تا چي د ټولو څخه توبه وکاږي.

مَنْ خَشِيَ الرَّحْمٰنَ بِالْغَيْبِ وَجَآءَ بِقَلْبٍ مُّنِيْبٍ ﴿۳۳﴾

هغه څوک چي د رحمٰن جل جلاله څخه بېرېږي په غیاب کي په زړه مخلص سره مقبل علی الطاعة "بقلب منیب" بدل بعد البدل دی د متقین څخه.

**پوه سه:** چي مراد له غیبت څخه یا دا دی چي خدای یې نه دی لیدلی او څني بېرېږي، او یا دا معنی ده په غیبت کي یې زړه دی څني بېرېږي لا کالمنافق، او یا دا معنی ده چي په غیاب کي د خلکو څني بېرېږي لا کالمرائي (ریا کار)

ادْخُلُوْهَا بِسَلٰمٍ ذٰلِكَ يَوْمُ الْخُلُوْدِ ﴿۳۴﴾

داخل سئ و جنت ته (ادخلوها بتقدیر قول یعني یقال،) بسلام: والمعنی متلبسین بسلام یعني سالمین من العذاب ای عذاب النار او د ټولو غمو څخه او د زوال څخه د نعمت ای به سلام پر تاسي د ملکو د خوا، کریمه: سلام علیکم

فادخلوها خالدین یا د رب العالمین د خوا، کریمه: سلام قولاً من رب رحیم.
"ذالک" اشارة الدخول بتقدیر المضاف ای وقت ذالک الدخول في الجنة.
**سوال:** خلود د دوی په جنت کي وروسته دی لا وقت الدخول؟
**ځواب:** معنی د یوم الخلود داده ای مقدرًا خلودکم في الجنة کما في قوله تعالی: فادخلوها خالدین، نو په دې آیت کي خو خالدین حال دی له ضمیر څخه د فاعل، نحات وایي چي دا حال مقدره دی، بخاري او مسلم د ابن عمر رضی الله عنهما څخه روایت کړی دی قال النبي ﷺ یدخل اهل الجنة الجنة واهل النار النار، بیا یو اعلان کوونکی په مابین کي د جنت او دوږخ ودرېږي او وایي: یا اهل النار لاموت (نو دوی ته زیات غم سي علی غم) ویا اهل الجنة خلود بلا موت (فیزدادهم فرحًا علی فرح)

لَهُم مَّا يَشَآءُونَ فِيهَا وَلَدَيۡنَا مَزِيدٞ۝

جنتیانو ته دی هغه شی چي د دوی خوښ وي او زموږ د خوا زیادت سته، نو مزید مصدر میمي دی یا شی زائد سته، نو مزید صیغه د فاعل ده، مراد له مزید څخه هغه نعمتونه دي چي د دوی یې په زړو کي تصور نه سوای کولای مما لاعین رئت ولا اذن سمعت ولا خطر علی قلب بشر، عن ابی هریرة رضی الله عنه قال رسول الله ﷺ ان ادنی مقعد اهل الجنة منکم ان یقول له (ای المرب جل وعلا) تمن فیتمن ویتمن یعني مکرره تمنی وکړي، نو خدای عزوجل ورته ووایي چي تمنی دي ختمه سوه؟ بنده ورته وایي هو، نو رب تبارک وتعالی ورته ووایي لک ماتمنیت ومثله معه، رواه مسلم.
وقال جابر وانس رضی الله عنهما المراد بالمزید النظر الی وجه الله الکریم.
**درویش وایي:** چي د مزید په معنی کي مختلف روایات راغلي دي، خو تر ټولو مختار روایت یې دادی چي مزید مراد رؤیة د خدای ج دی کما مر وهو مذهب جابر وانس رض کما اخرج مسلم وابن ماجة عن صهیب رض عن النبي ﷺ. قال اذا دخل اهل الجنة الجنة یقول الله تبارک وتعالی تریدون شیئًا ازیدکم تاسي اراده لرئ چي زه یو شی درزیات کړم، دوی ورته ووایي چي زموږ مخان دي نه دي راسپین کړي او موږ دي نه یو داخل کړي وجنت ته، او موږ دي له اور څخه نه یو خلاص کړي، د دوی مطلب دا وي چي بالاتر مذکوره به نو بل زائد شی څه وي، قال فکشف الحجاب ای حجاب د کبریاء پورته کړي فما اعطوا شیئًا احب الیهم من

النظر الى ربهم ثم تلى هذه الآية للذين احسنوا الحسنى وزيادة.

**درويش وايي:** چي د رؤيت د جمال رباني په باره كي د ابى بكر الصديق رض او ابن عباس او حذيفة بن اليمان او ابن مسعود رض څخه او د غه رنګه د ابن خزيمة او ابن مردوية عن ابى موسى الاشعري رض بلكې تر دې بالا روايتونه په مختلفو سندو راغل دي او دا هم مذهب دی د اهل والجماعة كثرهم الله وخالفهم المعتزلة، قال الطوسي في كتابه التجريد ورؤية الله تعالى كما يزعمونه اهل السنة والجماعة باطل وروسته يې ډېر دلائل نقليه (دده په زعم) او عقليه متثبتًا باذيال الفلاسفة راوړي دي او اهل السنة والجماعة پر خپل وارد دلائلو د طوسي جواب وركړى دى او پر مذهب د اهل حق دلائل عقليه او نقليه راوړى وتفصيل الكل لايليق بهذا التفسير چي مبني يې پر اختصار ده مهما امكن وان شئت التفصيل فطالع شرح العقائد وشرح المقاصد چي دواړه د علامه ثاني سعد الدين التفتازاني رح وكذالك كتاب المواقف للقاضي عضد الملة والدين وشرحه للسيد الجرجاني رح وكتاب الملل والنحل لعبد الكريم الشهرستاني رح لكن ندر وجوده في المطابع.

وَكَمْ اَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ مِّنْ قَرْنٍ هُمْ اَشَدُّ مِنْهُمْ بَطْشًا فَنَقَّبُوْا فِى الْبِلَادِ ؕ

لفظ د كم خبري مفيد د كثرت دی يعني ډېر موږ هلاک كړي دي د مخه تر قوم ستا يا محمد ﷺ "من قرن" اى من اهل قرن (قرن سل كاله ته وايي) چي هغه اهل وه سخت او ډېر تر قوم ستا په قوت كي لكه عاديان او ثموديان او فرعون وغيرهم، وفي القاموس نقب في الارض اى ذهب فيها لكه چي د انقب او نقب بالتشديد هم د غه معنى ده.

**پوښتنه:** باب د تفعيل د څه حكمت لپاره مختاره سو او مجرد يا باب د افعال نه راوړه سو؟

**ځواب:** په خواص الابواب كي د شافيه وايي چي باب د تفعيل غالبًا لپاره د تكثير وى نو دلته هم د غه معنى مناسبه ده اى ذهبوا في البلاد يعني ډېر سفرونه يې كول په ښارو كي لپاره د سياحت يا تجارت، بعض مفسرين رح وايي په ځمكه كي به ګرځېدى چي د كومي ځمكي، ښار او قريې به ښه آب و هوا وي چي له مرګه پكښي خلاص سو. او بعض مفسرين وايي چي كلمه د فاء لپاره د سببيت ده فان شدة بطشهم سبب دى للتصرف في البلاد ولي چي د هيڅ چا څخه نه بېرېدى.

هَلْ مِنْ مَّحِيْصٍ

يعني نقبوا قائلين هل من محيص، وفي القاموس المحيص المهرب (ځای د تېښتې من امر الله وعذابه او من الموت) والاستفهام للانکار يعني نشته ځای د تېښتې:

نه بربد رفتی سحر گاه وشام سرير سليمان عليه السلام
به آخير نديدی که برباد رفت خنک آنکه با دانش ودار رفت

حاصل دا چې اهل مکه عبرت وانه خلي او خپل شرک ته دوام ورکړي نو بايد وبېرېږي چې پر موږ به هم د قرون ماضيهٔ ورته عذاب مسلط سي.... بيت:

پند گير از مصائب ديگران ..... تا نگيرند ديگران زتو پند

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَذِكْرٰى لِمَنْ كَانَ لَهٗ قَلْبٌ

يعني ما ذکر في قصصهم اوفي ما ذکر في هذه السورة من العبرة والاخبار وهلاک القرى "لذکرٰى" نصيحت او پند دی، د هغه چا لپاره چې ده لره زړه وي، که څه هم زړه خو هر انسان لري، لکن مراد له قلب څخه هغه زړه دی چې په عاقبت کې د امورو فکر وهي کما ورد في الحديث القدسي: لايسعني ارضي ولا سمائي (يعني پوره ادراک زما د شيانو او صفاتو نسي کولای اسمان او نه مځکه) ولکن يسعني قلب عبدي المؤمن چې صاف زړه وي له کدورات نفسيهٔ څخه چې په اصطلاح د صوفيهٔ وېې فاني في الله بولي.

اَوْ اَلْقَى السَّمْعَ وَهُوَ شَهِيْدٌ

عطف دی پر صله د من چې کان دی يا غوږ ونسي و قرآن کريم ته او زړه حاضر وي ولو بتکلف لاتغافل، او يا معنى داده چې شاهد په صدق سره وي د قرآن کريم.

وَلَقَدْ خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِيْ سِتَّةِ اَيَّامٍ ۖ وَّمَا مَسَّنَا مِنْ لُّغُوْبٍ

لام موطئه يعني جواب د قسم محذوف دی، په تحقيق سره موږ پيدا کړي دي اسمانونه (وما فيها من الشمس والقمر والنجوم) او مځکه او په ماېين کې د اسمانو او مځکې (من کرة الهواء والصواعق والسحاب والبرق وغير مما لم يعلمه الا الله تعالى) په شپږو ورځو کې.

**سوال:** د مخه تر اسمانو او په وخت کي د خلق د اسمانو او مځکي نو ورځ کله وه؟

**ځواب:** قال المفسرون ای في مقدار ستة ايام الذي في علم الله، او موږ نه يو مسه کړي يعني موږ په دې خلق عظيم کي ستړيا يا تکليف نه دی را رسېدلی.

**درويش وايي:** چي صحيح داده چي شروع د خلق العالم له ورځي څخه د يکشنبې سوی دی وتمامه يوم الجمعة.

**درويش وايي:** چي په بعض احاديث صحيحه ؤ کي راغلي دي چي په اخير د ساعت د ورځي د جمعې بعد العصر خلق آدم وهذا بظاهره ليس بصحيح لان خلق آدم كان بعد زمان طويل من خلق السموات والارض ولي چي پر مځکه سلطنت د جن زمنًا طويلاً و ابليس كان على حاله يعبد الله في الارض ويعرج الى السماء ويدخل وكان اسمه عزازيل وبعد ذالک خُلق آدم من الطين كما في قوله تعالى واذ قلنا للملائكة اني جاعل في الارض خليفة الى اخير الآيات فكيف يصح انيكون خلق آدم في اخير ساعة من يوم الجمعة بعد العصر؟

**ځواب:** ليس المراد خلق آدم بعد العصر من يوم الجمعة المتصلة بخلق السموات وغيرها بل المراد خالق آدم يوم الجمعة بعد العصر في علم الله ولو بعد زمن طويل.

فَاصْبِرْ عَلٰى مَا يَقُوْلُوْنَ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ الْغُرُوْبِ ۚ

صبر وکړه پر هغه چي دوی وايي ای اليهود ان الله تعالى اعني (ستړی) سو بعد خلق السموات والارض فاستراح، او يا صبر وکړه على ما يقول المشركون في امر البعث بانه لابعث ولا نشور ولا ثواب ولا عذاب، ولي هغه ذات چي قادر ؤ پر خلق د اسمانو او مځکي في ستة ايام فهو قادر على بعثهم والانتقام منهم.

"وسبح" ای صل (ذكر جزء دی مراد ځني کل دی متلبسًا بحمد ربک) د مخه تر ختلو د لمر يعني صلوة الفجر، او د مخه تر لمر لوېدو (ډېر مفسرين وايي چي مراد ځني صلوة العصر دی، لکن ابن عباس وايي چي د قبل الغروب څخه مراد الظهر والعصر كلاهما ای كل واحد في وقته فلا يصح قول المظهري چي دا مبني پر دې دی چي د ماپښين د لمانځه وخت او د مازديګر د لمانځه وخت يو دی عند الضرورة)

وَمِنَ الَّيْلِ فَسَبِّحْهُ وَأَدْبَارَ السُّجُودِ ۝

او په بعض کي د شپې تسبيح وايه د خداى (يعني صل صلوة المغرب والعشاء فهذه الآية شاملة للصلوات الخمس على قول ابن عباس رض او مجاهد وايي چي مراد د صلوة الليل څخه نوافل د تهجد دي وليس بذالک) او وروسته تر سجود يعني لمونځو، والظاهر ان المراد به النوافل الراتبة بعد بعض الفرائض كالعشاء والمغرب والظهر، او دا احتمال هم سته چي مراد دي مطلق تسبيح وي يعني قل سبحان الله وبحمده روى البخاري ومسلم عن ابى هريرة رض قال قال رسول الله ﷺ من قال حين يصبح وحين يمسي سبحان الله مائة مرة لم يأتي احد يوم القيامة بافضل مما جاء الا احد قال مثل ما قال او زاد عليه، وروى الشيخان عن ابى هريرة رض مرفوعًا يعني الى رسول الله ﷺ من قال سبحان الله وبحمده في يوم مائة مرة حطت (وبه رژېږي) يعني وبه بخښل سي ګنهونه وان كانت مثل زبد بالبحر (که څه هم وي ګنهونه دده څګ د درياب، او بخاري و مسلم د ابى هريرة رض څخه دا روايت هم کړى دى قال رسول الله ﷺ كلمتان خفيفتان على اللسان ثقيلتان في الميزان حبيبتان الى الرحمن (دوې کليمې دي چي سپکي دي پر ژبه او درنې دي په ترازو کي يعني په ورځ د قيامت عند وزن الاعمال، او خداى ته ډېري محبوبي دي، چي هغه دوې کلمي دي) سبحان الله وبحمده سبحان الله العظيم.

**درويش وايي:** چي دا دوې کليمې په اخيري حديث کي د بخاري ذکر کړه سوي دي، او علماء وايي چي په دې دوو کلمو کي اسم اعظم د خداى هم موجود دى والله اعلم، وعن ابى هريرة رض قال قال رسول الله ﷺ چي که چا ووېل وروسته تر فرضي لمانځه سبحان الله (۳۳) واره، والحمد لله (۳۳) والله اكبر (۳۳) واره، نو دا ټول نهه نيوي (۹۹) واره سوه ثم قال في تمام المائة لا اله الا الله وحده لاشريک له الملک وله الحمد وهو على كل شيئ قدير، ور وبه بخښل سي ګنهونه دده که څه هم لکه د درياب څګ دومره وي.

وَاسْتَمِعْ يَوْمَ يُنَادِ الْمُنَادِ مِنْ مَّكَانٍ قَرِيبٍ ۝

ته غوږ ونسه يا محمد (ﷺ) هغه ورځ چي نعره وکړي.

**پوه سه:** چي دا صيغه د امر ده او وروسته په تأويل د مفرد يا په تقدير د مضاف مفعول به دی يعني اسمع ما يتلی عليک، پر اول تقدير او اسمع لحديث پر دوهم تقدير، مظهري وايي چي فائده د استمع تنبيه او تهويل د تعظيم المخبر به دی "المناد" بعض قراء په حال كي د وقف او وصل په ياء سره وايي يعني المنادي وهو قرائة ابن كثيرؒ او نور قراء يې په حذف د ياء وايي في الحالين لدلالة الكسرة عليها هو الملک النافخ في الصور وهو اسرافيلؑ. بعض مفسرين وايي چي دا نفخ يې نداء وبلل، ولي دا علامه د خروج و محشر ته ده لکه اذان د مؤذن چي علامه د دخول وقت الصلوة يا اعلانات د کوچ و بار په عساکرو کي مثلاً ډول وټکوي. او بعض مفسرين وايي چي نداء حقيقة بعد نفخ الصور يعني اسرافيلؑ ګوتي په غوږو کي ورکړي او لوړه ناره وکړي ايها العظام البالية (يعني زاړه يا وراسته) والاوصال المنقطعة (هغه پیوندونه چي اوس قطع سوي دي) واللحوم المتمزقة (او غوښي چي له بدنه جلا سوي دي) ان الله يأمركم ان تجتمعوا الفصل القضاء. او بعض مفسرين وايي چي اسرافيلؑ نفخ الصور کوي او جبرئيلؑ ناره کوي.

"من مقام قريب" له هغه ځایه چي نژدې دی و اسمان ته تر ټولو مځکي وهو صخرة بيت المقدس، ولي چي بيت المقدس هغه تر ټولو ځایو د مځکي نژدې دی و اسمان ته بعض وايي دوولس (۱۲) ميله او بعض وايي اتلس (۱۸) ميله بيت المقدس مابين دی د کرې د مځکي قاله عليؓ.

**يَوْمَ يَسْمَعُونَ الصَّيْحَةَ بِالْحَقِّ ذَٰلِكَ يَوْمُ الْخُرُوجِ**

بدل دی من يوم ينادی ای الاموات يسمعون دعوة الداعي باذن الله تعالى ولي چي اموات او جمادات په استماع اذا ارد الله تعالى كالاحياء فان الموجودات كلها لاتخلو عن نوع من الحيوة "الصيحة" ای صيحة اسرافيلؑ "بالحق" متعلق بالصيحة او مراد له حق څخه البعث للجزاء دی "ذالک يوم الخروج" دا ورځ ده د وتلو له قبرو څخه.

**فائده:** اجتمع الامة المرحومة قبل ظهور فرق اهل الهواء والبدع كالمعتزلة والروافض والشيعة وغيرهما چي عذاب القبر پر روح او جسد دواړو باندي دی. ودليله ما اخرج الشيخان عن انسؓ چي له غزاء څخه د بدر عليه الصلوة والسلام

فارغ سو (او څوارلس ورځې یې هورې تېرې کړې) او په دې دوران کې د علیه الصلوة والسلام په امر مؤمنانو اوویا (۷۰) کسان مشرکان چې په دې غزاء کې وژل سوي وه ویو څاه ته یې واچول چې په بدر کې ؤ (داویو څاه نه ؤ بلکې یو خرابه څاه ؤ) او په اخیره ورځ د علیه الصلوة والسلام اوښه چا ورځین کړې چې پر سپور به سي، علیه الصلوة والسلام پیاده روان سو اوښه یې تر جلو نیولې وه، علیه الصلوة والسلام د قلیب بدر پر غاړه ودرېدی، او قتلی د بدر ته یې په نامه نامه داسي وویل: یا فلان بن فلان الی اخیر ما هنالک من القتلی هل وجدتم ماوعدکم ربکم (یعني من عذاب القبر في هذا البئر) حقًا یعني واقعًا ثابتًا فاني وجدت ما وعدني حقًا یعني من النصر والغلبة، قال عمر رضی الله عنه ورسول الله ﷺ کیف تکلم اجرامًا لا روح لها فقال ما انتم باسمع منهم غیر انهم لا یستطیعون علی ان یرد علي شیئًا.

إِنَّا نَحْنُ نُحْيِ وَنُمِيتُ وَإِلَيْنَا الْمَصِيرُ ﴿٤٣﴾

اعني صحیة اسرافیل کمامر.

**پوه سه:** چې نحن تاکید د ضمیر متکلم په انا کې مور ژوندی مفعول محذوف دی ای الخلق یعني په رحم کې د مور او بیا یې وژنو په نېږ د اتیان الاجل او ما ته مو رجوع ده په قیامت کې.

يَوْمَ تَشَقَّقُ الْأَرْضُ عَنْهُمْ سِرَاعًا ذَٰلِكَ حَشْرٌ عَلَيْنَا يَسِيرٌ ﴿٤٤﴾

هغه ورځ چې څیرې سي ځمکه له مړو څخه وبالفارسیة شگافته شود "ذالک" دغه حشر دفعةً واحدةً.

**پوه سه:** چې د تشقق اصل یتشقق ؤ ثم ابدل التاء بالشین وادغم في الشین، "علینا" جار و مجرور متعلق دي په یسیر پوري، قدم علیه للاختصاص یعني دا خدای ته اسانه دی لا الی غیره تعالی لانه تعالی عالم بکل شيئ لاجزاء الموتی ههنا قادر علی جمعها واحیانها، لپاره د تسلي د علیه الصلوة والسلام.

نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَا يَقُولُونَ وَمَا أَنتَ عَلَيْهِم بِجَبَّارٍ

موږ خبر یو په هغه شي چې کفار مکه کاهي دی شاعر بولي، کاهي یې کاهن بولي، کاهي یې ساحر بولي او کاهي یې مجنون بولي او کاهي یې مفتر بولي، او

نه يې ته پر دوی زور کونکی يعني چي ته دوی پر ايمان مجبوره کړې بل عليک الانذار وقد فعلت ذالک کما هو حقه وعرقت الجبين في التبليغ.

**فَذَكِّرْ بِالْقُرْاٰنِ مَنْ يَّخَافُ وَعِيْدِ ﴿٤٥﴾**

نو چي کافران ستا و انذار او تخويف ته غوږ نه نسي، نو ته نصيحت کوه په قرآن سره و هغه چا ته چي زما له عذابه بيريږي يعني المؤمنين لانهم ينتفعون به.

**تو گوئی آن چه دانی سخن سودمند — وگر هيچ کس را نيايد پسند**

**فائده سنيه:** تاريخ اسلامي خبري کوي هم په صحيح ډول چي رسول کريم ﷺ په اکثرو اوقاتو کي په خطبه کي د جمعې د ورځي سورة قٓ وايه، او عمر ﷺ به په خطبه کي اذا الشمس کورت ترپايه پوري وايه، وکان عثمان ﷺ په خطبه کي به يې اخيري ايتونه د سورة النساء ويل يعني يستفتونک الآية، وکان علي ﷺ سورة الاخلاص به يې وايه، جلال الدين السيوطي ؒ په کتاب الوسائل کي وايي: اول من قرء في اخير الخطبة الثانية ان الله يأمر بالعدل والاحسان الى اخير الآية عمر بن عبد العزيز ؒ (السلطان العدل وان لم يکن صحابيًا) ولزمه الخطباء الى عصرنا هذا وفي الحديث الصحيح من قرء سورة قٓ (يعني في کثير من الاوقات) هون الله تارات الموت وسکرات الموت اى آفاته وغشيانه کما في حواشي السعدي المفتي.

**درويش وايي:** چي تفسير د سورة قٓ بعون ذى الالطاف په اولو ورځو کي د مياشتي د ذى القعدة الحرام په وخت کي د څاښت د ورځي د هفتې سنه (١٤٣٢) هجري قمري پای ته ورسېدی.

تفسير ايوبي حنفي د نصيراحمد احمدي لخوا سکين او pdf سو. د دعا محتاج احمدي! واتساپ ٠٧٤٩٨٤٩٥٦٩

سُوْرَةُ الذّٰرِيٰتِ مَكِّيَّةٌ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ هِيَ سِتُّوْنَ اٰيَةً وَّ ثَلٰثُ رُكُوْعَاتٍ

وَالذّٰرِيٰتِ ذَرْوًا ﴿١﴾

الواو للقسم، والذاريات ومابعدها صفات حذفت موصوفاتها او دا صفات يې په ځای کي ور درولي دي.

**سوال:** که يې موصوفات ذکر کړي وای نو په تعين کي د موصوفاتو به يې اختلاف د مفسرينو نه وای، او سره دديې چي په موصوفاتو کي اختلاف سته کما سيأتي فما الحکمة في عدم الموصوفات في القرآن؟

**ځواب:** دا د بلاغاتو څخه د قرآن دی تاچي نفس د سامع و هر مذهب ممکن ته ولاړ سي او د موضوعاتو د تعين په فکر وهلو سره به دوی ته خدای مثوبات ورکړي نو موصوف د الذاريات الرياح بادونه دي، ذروا مفعول مطلق دی عامل يې الذاريات دی، والمراد الرياح تذرو والتراب وغيره چي خاوري پاشي يا نور سپک شيان، او د غنمو وغيره دانې د پراره جلا کوي چي په پښتو يې بادي بولي، کذا في التفسير الکاشفي، په پښتو ژباړه.

**فائده:** کعب الاحبار وايي که خدای عزوجل درې ورځي متوالي د مځکي څخه باد بند کړي ما بقی علی الارض شيئ الا انتن (بد بويه سوي به وای) او بعض مفسرين وايي چي مراد د الذاريات څخه هغه ښځي دي چي چي عيالونه يې کېږي يعني وچي نه وي، ولي چي دغه ښځي و دنيا ته عيالونه راپاشي، ففي هذه الآية على التقدير المذکور اشارة على فضل الولود على العقيم.

فَالْحٰمِلٰتِ وِقْرًا ﴿٢﴾ فَالْجٰرِيٰتِ يُسْرًا ﴿٣﴾

د وقر معنی ثقل دی مفعول به دی، والمعنی الرياح الحاملات للسحاب الثقيل يا هغه ښځي چي حاملات د نطفو وي او د اجنه في ارحامهن يا هغه وريځي دي چي درنې وي او باد و باران پکښې وي.

**پوهسه:** چي يسرًا صفت د مصدر محذوف دی يعني جريًا سهلاً يعني هغه بادونه چي په آرام او کرار چلېږي يا هغه ښځي دي چي حاملات وي او په خدمت

کي د ازواجو کرار کرار کرځي لثقل حملهن يا هغه کښتی دي چي په درياب کي په سهولت سره چليږي.

فَالْمُقَسِّمٰتِ اَمْرًا ﴿٤﴾ اِنَّمَا تُوْعَدُوْنَ لَصَادِقٌ ﴿٥﴾

**فائده:** امرًا مفعول به د ماقبل دی که څه هم لفظ به مفرد دی لکن دلته په معنی د جمع دی او مصدر دی، نو په مصدر کي مفرد، تثنيه او جمع سره برابر وي. يعني الرياح التي تقسم الامطار بتصرف السحاب. او يا مراد ځني ملائکه دي چي بارانونه او ارزاق سره وېشي.

**درويش وايي:** چي "ان ماتوعدون" جمله مؤکد ده په ان سره جواب د قسم ده او کلمه د ما موصوله ده او عائد يې محذوف دی، والتقدير ای الذي توعدونه من البعث بعد الموت او حساب او يا ثواب للمؤمنين والعقاب للکافرين لام په لصادق کي لپاره د تاکيد دی، فارسي ترجمه يې داده: هر آئينه راست و درست است ودرآن هيچ خلافی نيست او که ما مصدريه سي لکه صاحب الارشاد چي وايي نو توصيف د وعد چي مصدر دی په صادق سره د قبيل د عيشة راضية دی، يعني اسم فاعل چي لصادق دی مسند دی يې په خپله مفعول به ته گرځولی دی لان الوعد مصدوق لکه په عيشة راضية کي، ولي چي په هغه آيت کي خو هم عيشة مرضي به لا فاعل فافهم.

وَّاِنَّ الدِّيْنَ لَوَاقِعٌ ﴿٦﴾

معطوف دی پر ان ما توعدون يعني پر اعمالو من الکفر والاسلام والمعاصي والطاعات کائن لا محالة.

وَالسَّمَآءِ ذَاتِ الْحُبُكِ ﴿٧﴾

او قسم دی په اسمان سره.

**پوهه:** چي حبک جمع ده د حبيکة لکه طرق چي جمع د طريقة ده يا جمع د حباک ده لکه مثل چي جمع د مثال ده، والمراد بالحبک لاري دي چي محسوسه په اسمان کي دي چي لاري د ستورو دي، او يا لاري معقوله دي چي يسئلها انظار بنظر دقيق الى المعارف، البغوي وايي قال ابن عباس وقتاده وعکرمه "ذات الخلق الحسن السمتوي، يقال النساج (کنی باپ) اذا نسج الثوب (يا کمبله، يا

سترنجي يا د اغوستلو جامه) فاجاد ښه يې سمه جوړه کړي، داسي خلک وايي ما احسن حبکه، جواب د قسم دادى:

إِنَّكُمْ لَفِي قَوْلٍ مُّخْتَلِفٍ ۙ

په تحقيق تاسي په يو قول مختلف کي ياست په شان کي د نبي ﷺ چي قولونه ستاسي د حق څخه خلاف دى او په خپل مابين کي هم سره منافي دى او يا په شان کي د قرآن په قول مختلف کي ياست.

**پوه سه:** چي مخاطب په انکم سره کفار د مکې دي يعني په شان کي د رسول الله ﷺ بې کاهي ويل چي لېوني دى، او کاهي به يې ويل چي ساحر دى يا کاهن دى او د قرآن په باره کي به يې کاهي ويل چي سحر دى او کاهي به يې ويل چي شعر دى او کاهي به يې ويل چي کهانت دى او کاهي به يې ويل چي اساطير الاولين دى.

يُؤْفَكُ عَنْهُ مَنْ أُفِكَ ۗ

اى يصرف عن الرسول او القرآن يعني په منلو کي، يعني تصديق نه کوي پر رسول (چي خداى ج را استولى دى لپاره د هدايت د خلکو، او پر قرآن چي کلام الله دى) "من افک" يعني صرف في علم الله تعالى يعني حرمة الله تعالى عن الايمان بمحمد ﷺ او بالقرآن.

قُتِلَ الْخَرَّاصُونَ ۙ

**پوه سه:** چي خرص په پښتو کي اټکل ته وايي چي په عربي تخمين بولي او ظن من غير دليل موجب ليقين ته هم وايي چي دلته په معنى د کذاپون دى چي اصحاب د قول مختلف دى من کفار اهل مکة او قتل دعاء ده بالقتل لغةً دلته په معنى د لعن ده في عرف العرب.

الَّذِينَ هُمْ فِي غَمْرَةٍ سَاهُونَ ۙ

دا صفت موضحة دى د خراصون، او غمرة په لغت کي هغه اوبو ته وايي چي سړى پکښي ډوب سي، والمراد ه الجهل والغفلة دى چي دوى پکښي ډوب دي "ساهون" اى غافلون عما امروا به من الايمان بالرسول والقرآن.

يَسْـَٔلُوْنَ اَيَّانَ يَوْمُ الدِّيْنِ ؕ يَوْمَ هُمْ عَلَى النَّارِ يُفْتَنُوْنَ ۝

دوى يعني الخراصون پوښتنه کوي د محمد ﷺ څخه (يا استعجالاً يا انكاراً يا استهزاءً) کله ده ورځ د جزاء الاعمال لکه ته چي وايې.

**پوه سه:** چي جمله د يسئلون منصوب محلاً ده د الخراصون څخه، يا بيان د علت د لعنت د دوى كما هو معنى قتل كمامر.

**پوه سه:** چي كلمه د على په معنى د باء ده او يوم بدل دى د يوم الدين څخه.

**سوال:** مبدل منه خو مرفوع ؤ، نو بدل يې ولي منصوب دى؟

**ځواب:** نصب يې بناء پر دې دى چي مضاف و اسم غير متمكن ته دى چي هم دى كما في النحو، او معنى د يفتنون يحرقون ده يعني لكه سره زر چي په اورسره امتحان کېږي نو ځکه يې لفظ د فتنة راوړى چي معنى يې امتحان دى يحرقون يې نه وو وايه، حاصل معنى الآية يسئالون متى يوم تعذبنا چي ته موږ ته يا محمد وايې چي تاسي ته جزاء دركول كېږي.

ذُوْقُوْا فِتْنَتَكُمْ ؕ هٰذَا الَّذِيْ كُنْتُمْ بِهٖ تَسْتَعْجِلُوْنَ ۝

وڅکئ خپله فتنه (اى مقولاً لهم، هذا القول اذا عذبوا، ويونكى دا دې قول خزنة النار دى)

**پوه سه:** چي هذا مبتداء ده او الذي كنتم يې خبر دى، دا جمله داخله ده تحت القول المضمر كمامر او هذا اشارة و عذاب ته چي د لفظ څخه د فتنې وفهمېدى، اى هذا العذاب ماكنتم به تستعجلون به في حيوتكم الدنيا او تاسي به ويل استهزاءً متى هذا الوعد آه.

**درويش وايي:** چي عادت د ذو الجلال (اى الصفات الجلالية) والاكرام (اى الصفات الجمالية) جاري په دې سره دى چي احوال د كفارو ذكر كړي وروسته د مؤمنانو حال هم ذكر كوي جمعًا بين الجلال والاكرام، نو وايي.

اِنَّ الْمُتَّقِيْنَ فِيْ جَنّٰتٍ وَّعُيُوْنٍ ۝

په تحقيق متقين له شرک او معاصيو څخه به په باغو کي وي چي په هغو کي مېوې رنګارنګ وي لا مقطوعة ولا ممنوعة او په جاري ويالو کي چي څلور دي: من ماء غير آسن ومن عسل مصفى ومن لبن خالص و خمر.

أٰخِذِيْنَ مَآ اٰتٰىهُمْ رَبُّهُمْ ؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَبْلَ ذٰلِكَ مُحْسِنِيْنَ ؕ
حال دی من الضمير المستتر في الظرف ای الجار و المجرور چي في جنات دی كما في كتب النحو چي عامل د جار او مجرور چي حذف سي ضمير يې جار او مجرور ته نقل كېږي يعني قبلوي هغه شي چي خدای عزوجل دوی ته وركړی من الخير و الكرامة راضين به "انهم كانوا قبل ذالک" دا جمله تعليل دی د ماقبل دوی، يعني دوی وه په دنيا كي د مخه تر دخول د جنت "محسنين" يعني عابدين لله تعالی په حضور قلبي او په اخلاص سره كما جاء في الحديث الطويل الذي رواه عمر ﷺ، الاحسان ان تعبد الله كانه تراه فان لم تكن تراه فانه يراک الحديث.

كَانُوْا قَلِيْلًا مِّنَ الَّيْلِ مَا يَهْجَعُوْنَ ۝
**پوه سه:** چي كلمه د ما زائده ده او يهجعون خبر د كان دی، او هجوع د شپې خوب ته وايي، او قليلاً منصوب دی علی الظرفية ومن الليل صفة له ای كانوا يهجعون هجوعًا قليلاً من اوقات الليل، او صوفيه كرام يې داسي ترجمه كوي چي ټوله شپه به ويښ وه لان من كان في عبادة او ما يتوصل به (وهو النوم القليل) اليها لايكون نائمًا فتدبر فيه، هداک الله تعالی.

وَبِالْاَسْحَارِ هُمْ يَسْتَغْفِرُوْنَ ۝
كلمه د باء په معنی د في ده (يعني في الاسحار) او سحر السدس الآخير من الليل، او قاموس والا وايي سحر قبيل الصبح ته وايي ومعنی الآية چي دوی يعني المتقين سره د لږ خوبه په شپه كي او د ډېرو لمونځو په شپه كي چي په سحار كي داخل سي بالمعنی المذكور شروع په استغفار وكړي هضمًا لانفسهم (لپاره د شكست د خپلو نفسو) او عمل خپل لږ بولي تر ما يليق بشانه تعالی يعني ځانونه داسي ګڼي لكه يو سړی چي د شپې ګناه وكړي او سهار بخښنه غواړي ولې چي د دوی كامل علم وي پر عظمت د شان د خدای" وفي بناء الفعل پر ضمير د هم اشاره وده ته ده چي دوی احقاء دي بان يثنوا بالاستغفار، ولې چي ضمير راوړه لپاره د اختصاص دی، چه خوش ميگويد آن كه گفته:

عـذر تـقـصير خدمت اوردم　　كه ندارم بطاعت استظهار

عاصیان از گناه تــوبه کنند عارفان از طاعت استغفار
بنده همان به که تقصیر خویش عــذر بدرگاه خدا آورد
ورنه سـزاوار خـداونـدیش کس نه تواند که بجا آورد

حافظ شیرازي میگوید

درکوی عشق شوکت شاهی نمي خرد
اقـرار بندگی کـن و دعوی جاگری
هــر گنج سعادت که خدا داد بحافظ
ازیمن دعای شب و ورد سحری بود

وفي البخاري عن عبادة بن الصامت رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ من تعار من الليل ويقول (که څوک راویښ سو د شپې او داسي یې ووېل) لا اله الا الله وحده لاشريک له له الملک وله الحمد وهو على کل شيئ قدير، وسبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله والله اکبر ولاحول ولاقوة الا بالله العظيم، ثم قال رب اغفر لي استجيب له، خواست یې خدای عزوجل قبلوي، او که یې او دس تازه کړی او لمونځ یې وکړی (يعني التهجد) قبلت صلوته، او ابو داؤد له ام المؤمنين عائشي رضي الله عنها څخه روايت کړی دی چي علیه الصلوة والسلام چي به د شپې راویښ سو داسي به یې وېل: لا اله الا انت سبحانک الله وبحمدک استغفرک لذنبي واسئلک رحمتک اللهم زدني علمًا ولاتزغ قلبي بعد اذ هديتني وهب لي من لدنک رحمةً انک انت التواب.

**درویش وایي:** چي موږ باید فکر وکړو چي سید المرسلین شفیع المذنبین محبوب رب العالمین ﷺ دا دعاء کول چي تاسي وا ورېده نو موږ باید څه وکړو، که ممکنه وای سرې اوښکي د وینو باید چي تر سترګو جاري وای.

**درویش وایي:** چي په فضیلت کي د صلوة اللیل یعني التهجد احادیث صحیحه په کثرت سره سته، وفي نقل کلها اطناب ممل للقارئين للتفسير.

وَفِيٓ أَمۡوَٰلِهِمۡ حَقّٞ لِّلسَّآئِلِ وَٱلۡمَحۡرُومِ ۝

او په مالو کي د دوی حق وي (یعني زکوة یا نفلي صدقه) د سائل لپاره یعني پر خلکو سوال کوي یا محروم وي یعني که څه هم مسکین خو وي لکن سوال نه کوي (کریمه: الذين يحسبهم الجاهل (يعني بما لهم) اغنياء من التعفف (اي

الكف عن السوال) نو محسنين چي ددوی پر حال علم ولري نو هغو ته د خپلو مالو څخه حق ورکوي)

وَفِي الْأَرْضِ آيَاتٌ لِّلْمُوقِنِينَ ﴿٢٠﴾

او په مځکه کي دلائل سته د وجود د صانع ﷻ او د قدرت مطلق د هغه کسانو لره چي درجې ته د يقين ځان رسول غواړي. ولي دوی چي په سترګو دا ايات ويني او په خلق کي د مځکي په غور سره فکر وکړي دهر شيان د قدرت پکښي سته (۱) چي دا مځکه خدای غوړولې ده لکه فرش (۲) دا چي تقريبًا يوه ربع له اوبو څخه ښکاره کړې ده ليسكن عليه عباد الرحمن (۳) چي اجزاء د مځکي يې مختلف ګرځولي دي په كيفياتو يعني بعض اجزاء خوړې مځکي وي د نباتاتو نافعه لپاره لکه غنم، وريشي، جوار وغيرها من المواد الغذائية للآدميين ورعى المواشي فيها، او بعض اجزاء ترخې او تروې دي چي بيله غزو، اوزميو او ښورکيانو بل شی نه پکښي شين کيږي (۴) په مځکه کي د ننه خدای عزوجل معدنيات پيدا کړي لکه معدن د وسپنې، د ميسو بلکې د سرو زرو معدن هم پکښي سته الى غير ذالک (۵) او نباتات او حيوانات او چينې او لوی و کوچني رودونه نو دغه ډله د متقينو چي په دغو آياتو کي فکر وکړي دليل يې ګرځوي پر وجود صانع واجب الوجود وعلمه و ورته واراد ته و فرط رحمته وحكمته، كريمه: كل يوم هو في شان فبای الاء ربكما تكذبان.

وَفِي أَنفُسِكُمْ ۚ أَفَلَا تُبْصِرُونَ ﴿٢١﴾

عطف على ما في الارض، يعني ستاسي په ځانو کي هم ايها الناس آيات او دلائل سته لما قالوا ان الانسان انموذج العالم الكبير انسان بايد فكر وکړي له ابتداء څخه د خلق خپل تر مرګ پوري، چي اول نطفه وه بيا علقه سوه بيا مضغه سوه بيا هډوکي پکښي پيدا سوه ثم کسونا العظام لحمًا ثم نفخ فيه الروح بيا چي مده د حمل پوره سوه بيا خدای و حمل ته لار د خروج ورښيه بيا ددې انسان په زړه کي هدايت پيدا کړی و خپل معاش رضيعًا وفطامًا واكتساب اقواته او غذاء کول په خوړک او څښاک سره او لار د بقاء د نوع په نکاح سره والى سبيل آخرته بارسال الرسل وانزال الكتب الى غير ذالک من اختلاف الالسنة والصور والالوان والطبائع والعقول، نو په دې کي د فکر وهولو و درجې ته ايقان ورسيږي الذي لا درجة فوقه، فتبارک

احسن الخالقين "افلا تبصرون" آيا تاسي نه وينئ اثار د قدرت د خداىٔ ايها الخراصون، لکه دا اثار چي محسنون او موقنون ويني کلمه د فاء لپاره د عطف ده پر مقدر باندي، تقديره اتنکرون قدرة الله على البعث فلا تبصرون.

وَفِي السَّمَاءِ رِزْقُكُمْ وَمَا تُوعَدُونَ ﴿٢٢﴾

او په اسمان کي رزق ستاسي دى، ابن عباس رض او مقاتل رح وايي چي مراد له رزق څخه باران دى چي سبب د رزق دى، نو ذکر مسبب دى مراد ځني سبب دى، دا خبره مبني پر دې ده چي په شرع شريفه کي وايي ان المطر ينزل من السماء، او بيضاوي رح وايي وقيل المراد بالسماء السحاب وريځ ده، وبالرزق المطر، مظهري وايي چي بناء پر مذهب د فلاسفهؤ دى.

**درويش وايي:** چي په شرع شريفه کي داسي نه دي راغلي چي تول له بارانونه له اسمان څخه کېږي، بلکې له اسمان څخه او به پر وريځ راځي او له وريځي څخه پر مځکه راشوه کېږي، نو د بيضاوي رح قول ولي پر مذهب د فلاسفهؤ مبني دى، آيا مظهري دا قول د روح البيان چي د مظهري تر تفسيره پر مقدم دى نه يې ده ليدلې او که يې نه مني؟ قال روح البيان اى اسباب رزقكم على حذف المضاف يعني به الشمس والقمر وسائر الكواکب واختلاف المطالع والمغارب الذي يترتب عليه اختلاف الفصول (اى الربيع والصيف والخريف والشتاء) التي هي مبادي حصول الارزاق انتهى قول روح البيان، قال الشيخ سعدي قدس سره موافقا لقول روح البيان:

**آبر وباد ومه وخورشيد وفلک در کارند**
**تا توناني بکف آرى وبغفلت نخورى**
**همه از بهر تو سرگشته وفرمان بردار**
**شرط انصاف نباشد که تو فرمان نه برى**

**پوه سه:** چي وما توعدون عطف دى پر رزقکم باندي، فالتقدير وفي السماء ماتوعدون، يعني په اسمان کي دي ما توعدون، کلمه د ما موصوله ده عائد يې محذوف دى اى ما توعدونه.

**درويش وايي:** چي په متفق الآراء د مفسرينو رح بې تکلف او بې تأويله توجيه داده چي په ماتوعدون سره مخاطب محسنين دي او بل عبارت متقين دي او په بل

روايت مؤمنين دي، نو معنى د آيت داده چي هغه شى چي ستاسي د هغه شي چي ستاسي سره يې وعده كړه سوې ده يعني د خداى ﷻ له خوا څخه هغه شى په اسمان كي يعني الجنت، ولي چي جنتونه پرلوړه خوا دى د اووم آسمان تحت عرش الرحمن قريب و سدرة المنتهى ته چي قرارگاه د جبرئيل ؑ دى، سعدي شيرازي قدس سره د معراج النبي ﷺ په باره كي وايي:

چنان گرم در تيه قربت براند — كه درسدره جبرئيل ازو باز ماند
بدو گفت سالار بيت الحرام — كه اى حامل وحى برتر خرام
بگفتا فراتر مجالم نه ماند — بماندم كه نيروى بالم نماند
اگر يک موى برتر پرم — فروغ تجلى بسوزد پرم

لكن سره د بې تكلف توجيه البغوي ؒ وايي چي عطاء ؒ وايي ماتوعدون من الثواب والعقاب، او مجاهد ؒ وايي من الخير والشر او الضحاک ؒ وايي من الجنة والنار، ددې حضراتو كرامو ؒ تفاسير بناء پر دې دي چي خطاب د ماتوعدون عام دى مؤمنانو او كافرانو دواړو ته شامل دى نو پر دوى دا سوال واردېږي چي محل د عقاب خو دوږخ يا د شر خو هم دوږخ دى والنار يعني دوږخ خو په اسمان كي نه دى بلكې تحت الارضين دى؟ نو ددې حضراتو د قول تأويل دادى چي مكتوب في السماء يا مقدر في السماء، او صاحب تبيان گفته كه مكتوب است درلوحى كه در آسمان چهارم است، او صاحب د روح البيان يې تأويل داسي كړى دى امر العقاب (يني د كفارو امر د عقاب په دنيا كي نازلېږي د اسمان له خوا څخه) ده زياته كړې ده چي نفس عقاب د كافرانو بعض اوقات هم د اسمان له خوا څخه وي لكه صيحه د جبرئيل ؑ د اسمان له خوا څخه او طوفان نوح ؑ او قذف بالحجارة لقوم لوط د اسمان له خوا څخه، او د اور باران پر اصحاب الايكة د اسمان له خوا كما في الامم الماضية انتهى.

**درويش وايي:** چي ددې مقام وعر (يعني سخت) تحقيق او تفصيل كه حاسد نه وي نو بې له خواصو څخه د تفسير ايوبي و گمې ولا فخر لي بهذا لانه من مواهب العزيز الجبار عزوجل.

فَوَرَبِّ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ اِنَّهٗ لَحَقٌّ مِّثْلَ مَآ اَنَّكُمْ تَنْطِقُوْنَ ﴿۲۳﴾

نو په رب د اسمانو او د مځكي قسم دى، خداى عزوجل لپاره د تاكيد قسم په

خپل ذات سره اخلي، يا په تقدير د قول قسم د عليه الصلوٰة والسلام په ذات د خدای اخلي، والتقدير قل يا محمد ﷺ لهم فورب السماء آه "انه لحق" ای ما توعدون ثابت او يا مامر من امر الايات في قوله تعالی وفي الارض آيات الخ.

**پوه سه:** چي بعض له قراء سبعه ؤ ځخه لفظ د مثل مرفوع وايي چي صفت د حق يې بولي او اغلب قراء يې په نصب سره وايي كما في المصاحف المطبوعة چي حال يې بولي د ضمير مستكن ځخه په لحق كي يا صفت د مصدر محذوف دی يعني انه لحق حقًا مثل نطقكم شبه الله سبحانه الرزق وغيره مما وعد به واخبر به بنطق الانسان يعني ان كل انسان حين ينطق لايشک في انه ناطق كذالک ينبغي للانسان ان لايشک فيما اخبر الله تعالی به كمامر. وبالفارسية: همچنان شک نيست شمارا درسخن خود شک نيست در روزی دادن خداوند و ديگر اخبار او، وفي الحديث: ابی ابن آدم ان يصدق ربه حتی اقسم له فقال ورب السماء آه (يعني انكار وكړی بني آدم يعني الكافر) وقال الحسن في هذه الآية بلغني ان رسول الله ﷺ قال قاتل الله اقوامًا اقسم الله لهم بنفسه فلم يصدقوا انتهی.

**درويش وايي:** ويناسبه ماحكی في تفسير المدارک عن الاصمعي چي پښتو ژباړه يې داده: چي اصمعي وايي چي زه د جامع مسجد ځخه د بصرې راروان وم چي يو اعرابي پر اوښه سپور په مخه راغلی فقال ممن الرجل؟ د چا د قبيلې سړی يې، ما ورته وويل من بني اصمع، ده راته وويل چي له كومه راروان يې؟ ما ورته وويل: من موضع يتلی فيه كلام الرحمن، ده راته وويل چي ته تلاوت د كلام الرحمن راته وكړه، ما سورة الذاريات ورته شروع كړی، دې ځای ته چي ورسېدم وفي السماء رزقكم. ده راته وويل بسته، نو بس دستي يې ناقه راكش كړه ذبح يې كړه او غوښي يې ټولې پر من اقبل و ادبر باندي وېشلې او توره او قوس يې مات كړه او بس راهي سو. اصمعي وايي چي زه چي بيا حج ته ولاړم مع آمر الرشيد او شروع مي په طواف د بيت الله الشريف وكړه چي ناګاه مي يو اواز تر غوږ سو رفيق رفيق (يعني ملګري) ما چي وكتل هغه اعرابي ؤ ماته يې سلام وواېه يعني السلام عليكم بيا يې راته وويل: چي د هغه سورت ځخه يو ځه راته وواېه ما سورة الذاريات د سره ورته شروع كړی، دې آيت ته چي زه ورسېدم وفي السماء رزقكم يوه لو نعره يې وكړه، وقال وجدنا ماوعدنا

ربنا حقًا، بيا يې راته وويل وهل غير هذا فقرئت فورب السماء والارض انه لحق، بيا يې يو چغه وكړه وقال سبحان الله من اغضب الجليل حتى حلف او بې قسمه يې د جليل قول ونه مانه حتى الجأه الى اليمين (حتى جليل رب يې قسم ته مجبور كړى) درې واره يې داغه مكرره كړه وخرجت معها نفسه. او د دغو خبرو سره يې روح خداى عزوجل ته وسپارى رحمه الله تعالى برحمته الخاصة انا لله وانا اليه راجعون. انتهى قول الاصمعي مع كلمات الحريق بنار العشق الحقيقي.

**فائده:** اهل معاني وايي چي هرڅومره چي انكار د مخاطب زياتيږي متكلم بايد هغومره هغو ته تاكيد په رد كي د هغه وكړي فالله سبحانه وتعالى اورد الكلام بكمال البلاغة في رد المنكرين للبعث والجزاء بالجنة والنار حيث اقسم عليه بذاته الجليلة واكده بكلمة ان ولام التاكيد والاخبار بانه حق والتشبيه بما هو من اجل البدهيات يعني مثل ما انكم تنطقون.

هَلْ اَتٰىكَ حَدِيْثُ ضَيْفِ اِبْرٰهِيْمَ الْمُكْرَمِيْنَ ﴿۲۴﴾

الاستفهام للتقرير يعني قد اتاك، والغرض من الاستفهام تعظيم شان الحديث، والتنبيه على انه وحي اليه قبل ذالك او بله فائده د استفهام تشويق دى د مخاطب واستماع ته د قصي لكه چي په پښتو كي يو سړى وبل ته ووايي فلانيه نه به يې خبر په قصه او حال د زيد.

**بوه سه:** چي ضيف په اصل كي مصدر دى د ضافه اى نزل عليه الضيف او د دې سببه مصدر دى اطلاق يې پر يوه او جماعت كړه كيږي لكه په دې آيت كي چي جماعت ځني مراد دى، بقرينة توصيفه بالمكرمين، او ګاهي جمع هم استعماليږي فيقال اضياف وضيفان، البغوي وايي اختلفوا في عدد هؤلاء الاضياف، قال ابن عباس وعطاء كانوا ثلثة جبرئيل وميكائيل واسرافيل، او محمد بن كعب وايي كان جبرئيل ومعه سبعة چي مجموع يې نهه دي، وقال مقاتل كانوا (۱۲) ملكي وهو الاشهر وكانوا على صورة الغلمان چي بربښنده مخان يعني قريب البلوغ يا بعيد البلوغ هلكان من الانس.

**بوه سه:** چي المكرمين صيغه د اسم مفعول ده، اشاره ودې ته ده چي ابراهيم دوى عزت وكړى د مخه تر دې چي ده پېژندلې چي ملكي دي يعني خيال يې د هېلمنو

پر کاوه، اکرام یې داؤ چي د دوی خدمت یې په خپله او په خپل اهل بیت یعني زوجه کاوه، او دستي یې غوښي ورته راوړې کما سیئاتي او دا عادت د انبیاء دی چي خدمت د مېلمانه په خپله کړي او کبر نه کوي او عار یې نه بولي لکه د دې زمانې متکبر ملایان چي که یې مېلمه عامي سړی وي دی یې خدمت د ځان عار بولي بلکې په مېلمه خدمت کوي، قال رسول اللهﷺ من کان یؤمن بالله والیوم الآخر فلیحسن الی جاره (د همسایه سره دي احسان کوي) او په بل روایت کي راغلي دي فلا یؤذی جاره، ومن کان یؤمن بالله والیوم الاخیر فلیکرم ضیفه (د مېلمه عزت دي کوي) ومن کان یؤمن بالله والیوم الاخیر فلیقل خیرًا او یسکت (یعني د خیر خبري دي کوي یعني چي څوک ته په ازارېږي بلکې د بل لپاره نصیحت وي نو خبري دي وکړي او که یې خبري نه وي زده نو پټه خوله دي کښېني) رواه احمد والبخاري في صحیحه ومسلم في صحیحه والترمذي وابن ماجه من حدیث ابی هریرهؓ.

حکماء د اسلام وایي: لاعار للرجل ولو کان سلطانًا (پېغور او شرم دي نه کوي سړی که څه هم بادشاه وي) ان یخدم ضیفه واباه ومعلمه (چي په خپله خدمت وکړي د مېلمه او د پلار او د استاذ) ولا تعبیر الخمة بالاطعام (او اعتبار نشته خدمت لره د مېلمه یا د پلار یا د استاذ په ډوډۍ ورکولو سره) یعني چي په مزدور یا په طالب وغیرهما سره صرف ډوډۍ بلکې په خپله به دا درې خدمتونه کوي) فیا اسفٰی علی حال اهل الزمان چي په خدمت د دې درو کسانو شرمېږي.

اِذْ دَخَلُوْا عَلَيْهِ فَقَالُوْا سَلٰمًا ۭ قَالَ سَلٰمٌ ۚ قَوْمٌ مُّنْكَرُوْنَ

چي دوی یعني مهمانان داخل سوه.

**پوه سه:** چي ظرف یعني اذ متعلق یا په حدیث پوري دی یا په ضیف پوري، او جمع د ضمیر د دخلوا چي راجع دی ضیف ته په اعتبار د معنی ضیف دی کما مر آنفًا (علیه یعني پر ابراهیمؑ) "فقالوا سلامًا" جمله فعلیه ده ای نسلم علیک سلامًا "قال" ای ابراهیمؑ په جواب کي د سلام د دوی "سلام" په جمله اسمیه سره یې جواب ورکړی ای علیکم سلام.

**فائده:** ابراهیمﷺ چي د نصب څخه د رفع وجواب ته مخ واړاوه لپاره د اثبات او دوام کما قال النحاة ان الجملة الفعلیة تدل علی الحدوث والاسمیة علی الثبات

والدوام تاچي دده جواب احسن سي ددوی تر سلام. کریمه: واذا حييتم بتحية فحينوا باحسن منها او ردوها، په حديث شريف کي راغلي دي چي يو سړی راغلی عليه الصلوة والسلام ته يې داسي سلام ورواچاوه: السلام عليکم، عليه الصلوة والسلام ورته وويل وعليکم السلام ورحمة الله، بل سړی راغلی عليه الصلوة والسلام ته يې داسي سلام وواييه السلام عليکم ورحمة الله، عليه الصلوة والسلام داسي جواب ورکړی وعليکم السلام ورحمة الله وبرکاته، بل سړی راغلی عليه الصلوة والسلام ته يې داسي سلام واوايه: السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته، عليه الصلوة والسلام ورته وويل: وعليکم السلام، دې سړي ګله وکړه چي د دمخه دوو کسانو سلام دي په زيادت د رحمة الله يا د برکاته ورسره جواب کړی زما په سلام کي دي شی نه کړی زيات؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي تا ماته شی د زيادت نه پرېښو يعني د سلام نهايت دغه دوه لفظه دي يعني ورحمة الله وبرکاته، هغه دواړه تا وويل يعني زه تاته وعليکم السلام وايم يعني سره ستا د دوو کليمو.

**درويش وايي**: چي دا معنی ده د اوردوها په آيت شريف کي ''قوم منکرون'' خبر دی د محذوف يعني انتم قوم منکرون يعني نابلده خلک ياست چي زه مو نه پېژنم.

فَرَاغَ إِلَىٰٓ أَهْلِهِۦ فَجَآءَ بِعِجْلٍ سَمِينٍ ﴿٢٦﴾

''فراغ'' يعني ذهب ابراهيم (لپاره ددې چي د مېلمنو د ډوډۍ سربښته وکړي) خپل کور ته (مبادرة الى طعام الاضياف، روايان د قصې وايي چي اکثره مال د ابراهيم بقرات وه) راتګ يې وکړی د يو ګيلګي په غوښو چي ښه چاغ ؤ.

فَقَرَّبَهُۥٓ إِلَيْهِمْ قَالَ أَلَا تَأْكُلُونَ ﴿٢٧﴾

د عجل سمين غوښي يې ددوی په مابين کي کښېښولې چي دوی يې وخوري (دوی چونکه ملکي وې طعام يې نه خاوړه، نو دوی غوښو ته لاسونه نه ورغځول ابراهيم ورته وويل چي تاسي ولي غوښي او ډوډۍ نه خورئ.

فَأَوْجَسَ مِنْهُمْ خِيفَةً ۖ قَالُوا۟ لَا تَخَفْ ۖ وَبَشَّرُوهُ بِغُلَٰمٍ عَلِيمٍ ﴿٢٨﴾

په زړه کي پيدا سوه ډده (يعني ابراهيم) له دوی څخه بېره چي ډوډۍ يې نه خوړل (ابن عباس وايي چي دی په دې پوه سو چي ملکي خو دي چي د ارسال العذاب لپاره

راغلي نه وي، ملکو چي د ابراهیم علیه السلام له چهرې څخه خوف احساس کړی، نو داسي یې ورته وویل) ته مه بېرېږه موږ رسل د خدای ج یو، او زېری یې ورکړی (یعني پر ابراهیم ع) د زوی چي اسحاق ع د ساره له خوا څخه، چي هغه غلام به و درجې ته د کمال د علم ورسېږي چي بالغ سي، او وروسته به بیا لوړي درجې ته د نبوت ورسېږي.

فَأَقْبَلَتِ امْرَأَتُهُ فِي صَرَّةٍ فَصَكَّتْ وَجْهَهَا وَقَالَتْ عَجُوزٌ عَقِيمٌ ﴿٢٩﴾

نو مخ راوګرځاوه دده ښځي (چي ساره یې نوم ؤ) یوه لویه بغاره یې وکړه (یا د تعجب له لاري یا د خوشحالۍ له کبله والاول هو الانسب بمابعده) "فصکت وجهها" ابن عباس رض وایي چي ګوتي یې سره ټولي کړې چي په پښتو یې چپلاخه بولي او خپل مخ یې په و واهه لکه د ښځو چي عادت دی په نېز د تعجب د منکر شي تندی په چپلاخه وي، او چا چي داسي ویلي دي چي ساره رض حرارت د دم د حیض احساس کړی فلطمت وجهها من الحیاء فلیس بشیئ لمنافاته لما بعده من الآیة، "وقالت عجوز عقیم" دې وویل چي زه سپین سرې او وچه یم، راوي وایي چي دا د نیوي (۹۰) کالو وه چي په دې طویله زمانه کي دا نه وه امیدواره سوې.

قَالُوا كَذَٰلِكِ قَالَ رَبُّكِ ۖ إِنَّهُ هُوَ الْحَكِيمُ الْعَلِيمُ ﴿٣٠﴾

ملکو ورته وویل، همداسي ده یعني لکه موږ چي تاته وویل دا غسي پیغام د خدای ج ستا موږ ته راکړه سوی دی، په تحقیق خدای عزوجل حکمت لري په خپلو کارو کي او خبر دی په ماکان (لکه دلته ستا په وچ والي او عقم سره) او علم لري پر ما یکون (لکه دلته ستا د زوی په زېږولو سره) ابراهیم علیه السلام ته شک پیدا سو چي دا دومره لوی جماعت د ملکو خو یوازي زما د زېري لپاره نه دی راغلی فقال.

**درویش وایي:** چي په حسن توفیق د رب جلیل شپږ ویشتم (۲۶) جزء یعني حٰم پای ته ورسېدی، فاقول الحمد لله الذي وفق عبده الضعیف الجهول المعمر لخدمة کلامه الجلیل والصلوة والسلام علی سید رسله محمد و علی آله وصحبه اجمعین، اللهم وفقني لتفسیر بقیة اجزاء القرآن العزیز وما ذالک علی الله بعزیز.

**درویش وایي:** چي زما د تفسیر د اکمال زېری به داسي اعجب وي لکه د ساره رضي الله عنها زېری د زوی اسحاق علیه السلام.

اللهم اغفر لمؤلفه و لکاتبه ولمن سعی فیه آمین.

## د تفسير ايوبي شپاړسم ټوک د مضامينو فهرست

تفسیر ایوبي حنفی۱۶ ټوک

د نصیراحمد احمدي لخوا

سکین او pdf سو.

تاریخ ۱۴-۱۰-۱۳۹۸

واتساپ- ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

د دعا محتاج احمدي!